

مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهٖ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ (الحديث)
د پلچرغي په صليبي زندان کې د اهل السنّت والجماعت
او د لامذهبو جعلي اهل حديثو د عقايدو او د مسائلو
په تشريح کې ليکل شوې کتاب
إحقاق الحق
في الدفع عن المذهب الحق
مؤلف
الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني
النجرهاري
العرفان خپرندويه علمي ټولنه
اهل السنة والجماعة افغانستان



# د خپرندویه ټولنې یادښت

دهرې ژبې وده او بداینه په علمي اثارو او تحقیقي کتابونو سره شونې ده، علـم او پوهــه د هرچا مهم او اساسي ضرورت دی، که په یوه ژبه کې داسې علمي آثار شتون ولري چې په نـورو کې نه وي نو د نورو ژبو خلک ددغې ژبې د زده کولو کوښښ کوي او ددې ژبې کتابونو نورو تــه ژباړل کیږي، پدې توګه دا ژبه د خلکو ضرورت ګرځي او خامخا دا ژبه وده کـوي د نـړۍ ژوندیو ژبو ته نن سبا د خلکو ضرورت دی ځکه دهغو ژبو خلکو کار کړی ده او کار یـې پـه خپلـه ژبـه نړیوالو ته وړاندې کړی ده.

پښتو د خدمت شعارونه او دعوې ډیرې دي خو په پښتو کې دعلمــي اثـارو چـاپولو بهیـر د میږي په تګ روان ده، په ځانګړې توګه د پښتو ژبې دیني برخه کې دا کار بیخــي کمــزوری ده، دا اوس هم ډیر داسې تکړه لیکوالان او پوهان شته چې هغوی ګڼ شمیر ناچاپ آثار لري، دوی یې د چاپ وس نه لري او د مرستې یې څوک نشته، له ډیرو شکایتونو او لویو لویو دعوو د کوچني اثر د چاپ هڅه ډیره غوره ده، ځکه له زرو خبرو یو عمل زر ځله غوره دی.

"احقاق الحق" په څلورو ټوکونو کې دښاغلي مولوي صاحب رحیم الله " الحقاني" علمي اثر دی چې په ټوله کې په کتاب الله ، نبوي احادیثواوفقهي استدلالاتو بنا دی" ټولنه یې دخپلو علمــي هڅو په لړکې دیوه علمي اثر په توګه چاپ ته په خلاص مټ اوږه ورکوي اودښاغلي لیکوال دغــه اثر ته د درنښت او قدر په سترګه ګوري .

کتاب چې په پښتو ژبه لیکل شوی دپښتو ژبې په وده اوپرمختک کې یې یوبل ګام بولي چې دټولنې دنورو علمي موخو ترڅنګ دپښتو ژبې دعلمي پرمختګ او ودې له موخې سره اړخ لګوي .

الحمد لله (العرفان) خپرندویه ټولنه خپلو هیوادوالو ته مهم، لوی او غوره تحقیقي اثر احقاق الحق وړاندې کوي مونږ په خپل لنډ نشراتي ژوند کې دا پنځم اثر خپلو درنو هیوادوالو ته په مینه ډالۍ کوو.

د اثر محتوی او منځپانګه ستاسو په مخکې ده، مونږ په دې لنډ یادښت کې په هغه خبرې نه لرو، زمونږ کار د یو اثر چاپ کول او خپلو لوستوالو ته رسول دي او دا لوی کار مو الحمد لله په ښه توګه ترسره او په پښتو کې دا لوی تحقیقي او علمي اثر (احقاق الحق) مونږ ستاسو درنو لوستوالو په خدمت کې تیار کړی.

داچې کتاب دلیکوال خپل اثر دی او ټولنه یې په متن کې دلاسوهنې حق نه لري، ځکه به نو دکتاب په منځپانګه او عباراتو دمعترضینو اعتراض ټولنې ته متوجه نه وي.

مونږ په داسې حال کې چې ښاغلي لیکوال ته دلا نورو علمي خدمتونو توفیق له متعال خدای څخه غواړو ، ددیني، علمي اوفرهنګي خدمتونو چوپړ خپل مسؤلیت بولو او ددې درانه مسؤلیت په ترسره کولو کې، ستاسې نېکو مشورو او علمي همکاریوته اړیو هیله ده خپلې دغه ډول همکاري راڅخه ونه سپموئ .

دبریو او لاخوښیو هیله من مو

محمد اکرم " نعماني"

د"العرفان" ټولنې خادم

۲۴ شعبان۱۴۳۶هق

بسم الله الرحمن الرحیم

## له څلورو ښځه دزياتو ښځو سره نكاح:

**(۱)** د غیرمقلدینو په نیزدیو سړي لپاره د څلورو ښځه زیاتې ښځې جایزی دي د څلورو حد نشته او په دلیل کې دا ایت وړاندې کوی چې: (فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ) [ ظفـرالملاخى / ص ۱٤۱/ عـرف الجادى/ ص ۱۱۱] .

**(۲) دلور سره نكاح :** کوم سړي چې د کومې ښځې سره زنا وکړه او دهغې زنا څخه یې لور پیدا شوه، نودد ې لورسره یې نکاح جایزه ده. [ عرف الجادي /ص ۱۰۹ ]

**(۳) خونـــده وره ښـــځه:** هغه ښځه ده چې شرمګاه یې تنګه وي او ډیرشهوت څخه خولې لګوي او دجماع په وخت کې لوټ په لوټ اوړي. [ لغات الحدیث پ ٦ /ص ٥٦ / الحارقه].

**(٤) د شرمګاه د نه خرابیـــدلو نســـخه:** ښځه دی د شرمګاه وینښته په پټري (پاكي ) باندې کلوي، او باسي دی یې نه، ځکه چې د وینښتو د ایستلو په وجه شرمګاه جینجریږي او جینجره شرمګاه بې خونده وي .[نذیریه/ ج ۳/ ص ۳٥٦ ].

**(٥) پټه یارانه:** په نکاح کې شاهدان شرط نه دي ځکه چې د رسول اللهﷺ دا حدیث صحیح نه دی چې: (لانكاح الابولى وشاهدى عدل) [عرف الجادى/ ص۱۰۷].

**(٦) دفرج دپاكولوطریقه:** کله چې ښځه د حیض څخه پاکه شي نو د دیوال سره دې خپله ګیده ولګوي او ودې دریږي او یوه پښه دی داسې جیګه ونیسي لکه سپې چې متیازې کوي او د مالوچو دیو غونداري څخه دې د فرج داخل ډک کړي، بیا دې یې راوباسي، نو په دې طریقه به ټول فرج پاک شي . (لغات الحدیث استبراء)

**(۷ ) فرج پرستي:** قران باندې خوشبویې لګول بدعت او حرام دی، قبرباندې خوشبویې لګول قبر پرستي ده، لیکن ښځه چې د حیض څخه پاکه شي نو په فرج باندې دې خوشبویي ولګوي. [فقه محمدیه / ج ۱/ ص۳۲]. نو په قبرباندې چې خوشبویې لګول قبر پرستي ده، نو په فرج باندې خوشبویې لګول فرج پرستي نه ده؟

**(۸) بربنده وارمه:** همچنين دليلى بركراهت نظر درباطن فرج نيامده. د شرمګاه داخل دکتلو دمکروه والى دليل نشته. [بدورالاهله/ص ۱۷۵].

**(۹) په ورنونو او دُبر کې جماع:** په ورنونوا وپه دبرکې جماع جايزه ده، هيڅ شک پکې نشته، بلکې د سنتو څخه ثابته ده. [بدورالاهله/ص ۱۷۵]

**(۱۰) وطي الازواج والاماء في الـدبر:** دوينځواودخپلوښځوسره په دبرکې دجماع کول اختلافي مسئله ده انکارپرې ندی جايز. (هدية المهدي/ج ۱/ص ۱۱۸).

**(۱۱) ولوادخل ذکره في دبرنفسه لايلزم الغسل:** (نزل الابرارمن فقه النبى المختار/ج۱ص ۲۴) که غيرمقلد (وهابي) خپله الـه دتناسل په خپل دبرکې داخل کړي، نوغسل پرې ندی فرض.

**(۱۲) دحيوانانودبرزني:** څوک چې دکوم انسان سره په دبرکې جماع وکړي (لواطت وکړي) غسل پرې فرض ندی. (هدية المهدى، ص ۳۴).

**(۱۳) دمتعه يعنې په بيه باندې د زنا قطعي لايئسنس دغيرمقلدينو څخه واخله:** غيرمقلدين وائي چې دمتعې اباحات دقران څخه ثابت دی او حرمت يې ظني دی. [نزل الابرار/ج۲/ص ۳۴] په متعه باندې انکارندی جايز. هدية المهدى، ج۱ص ۱۱۸)

**د شيطان د اعلان الفاظ:** زناکاران دې دغيرمقلدينوکلي اوبازارته ځان ورسوي چې هم ثواب دی اوهم خُرما (معاذالله). ليکن دغيرمقلدينو څخه هم خواهش کيږي چې دلامذهبو متعـه کونکو ښځولپاره دې دمتعې لوحې ولګوي اودهرقسم متعی يعنې د زنا کارې نرخ دې معلوم کړي، چې د پيغلې سره د متعې څومره نرخ دی؟ او د زړې سره يې څومره دی؟ ترڅوچې خلک په تکليف نه شي.

**د زنا مارکيټ:**

(۱۴) څوک چې په زناباندې مجبورشو دهغه لپاره زنا جايزه ده اوهيڅ حدورباندې ندی واجب. دښځې مجبوري ظاهره د اوکه سړی ووائي چې زما اراده نه وه بلکې مجبورشوم نوخبره به يې منلې شي. (عرف الجادى ص ۲۰۸) يعنې که سړي ووائي چې زما اراده دزنانه وه، ليکن انجلې راسره چيرچاړکولو اود شهوت دقوت لوجهې بې اختياره شوم نود زنا ورته بالکل چوتې ده.

**(١٥) - پردي (اجنبي) عورت ته کتل :**

د ظاهرو دلایلونه ثابته ده چې مور، خور، لور او نورو محرماتو د قُبل او د دُبر نه بغیر نور ټول بدن ته کتلی شي. (عرف الجادی/ ص ٥٢).

**(١٦) - یجوزارضاع الکبیرولوکان ذالحیة لتجویز النظر**

روضة الندیه ص ٢٣٦) نزل الابرارج ٢ص ٧٧) عرف الجادی ص ١٣٠)

یعنې جایزه ده چې ښځه پردي سړي ته دد ي لپاره تې ورکړي چې یو بل ته یې کتل روا شي اګرکه سړی دغټې ږیرې خاوندوي.

**(١٧) نظربازی:** ویجوزللمراة النظرالي الرجال الاجانب وحدیث ( افعمیا وان انتما) محمول علي انـه خاص بازواج النبي ﷺ وکذلک یجوز للرجل النظرالي فرج امراته. ( نزل الابرار/ ج ٣/ ص ٧٤)

ښځوته جایزدي چې پردیو سړیو ته وګوري، البته درسول الله ﷺ بیبیانوتـه نـه و جایز. همدارنګه سړی دخپلې ښځې شرمګاه ته کتلی شي، حالانکې الله ﷻ فرمایي : (وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ) اورسول الله فرمائي چې: ( لعن الله الناظروالمنظورالیه ).

**(١٨) د خپلې خوابنې اود پرکتۍ سره نکاح:** فلو زنا بامراة تحل له أمها و بنتها.

نزل الابرارج ٣ص ٢١ فتاوی نذیریده ج ٢ص ١٧٦) ستاریه ج ١ص ١٠٠ )ج ٤ص ١١٨ ) .

**(١٩) د مور اود انګور سره نکاح :** (لو زنابنه بامراةتحل لابیه وکذلک لوزنا ابوه بامرئته) پلار تـه د زوی د مزنیې سره نکاح جایزه ده اودد ې عکس هم جایز دی.

**(٢٠) د پلار اود زوی مشترکه ښځه:** ولوجامع احد زوجة ابیه سواء کان بالغااوغیربـالغ او صـغیرا اومراهقا لم تحرم علي ابیه.( نزل الابرار/ ج٣/ص ٢٨].

که چاد خپلې میرنۍ مور سره زنا وکړه نو په پلار یې نه حرامیږي .په بل ځای کې لیکي چې: (لو زنا بامرئة تحل لابیه و کذلک لو زنا بامرئة فتحل لابنه ) د پلار مزنیه زوی تـه حلالـه ده او د زوی مزنیه پلار تـه حلالـه ده. [نزل الابرار/ج ٢ / ص ٨ ].

**(۲۱) درې غیرمقلدین اویوه غیرمقلده :** واذاشترکت ثلاثة في وطي امة في طهر ملکهاکل واحدمنهم فیه فجاءت بولدوادعوه جمیعافیقرع بینهم ومن استحقه بالقرعة فعلیه للاخرین ثلثاالدیة .(نزل الابرار،ج۳ص ۷۵)

دیوی ښځې سره درې کسانو یوبیاپسې جماع وکړه، تردې چې بچی یې پیداشو اودرې واړو وربانديې دعوه وکړه، نوددرې واړوپه مابین کې به قرعه اندازي وشي په قرعه اندازي کې چې ماشوم دهرچا ورسیدو، نوهغو نورودواړوته دې دوه برخې دیت ورکړي.

**(۲۲) موټک (مشت زنی)**

دسړي پخپل لاس باندې مني ایستل او دښځې دکوم سخت شي په استعمال لولو باندې مني ایستل دضرورت په وقت کې جایزدي او خصوصاً په هغه وخت کې چې دنظربازۍ اویابلې کومې فتنې ویره وي، نویامشت زني ثواب لري اوکه دګناه څخه بچ کیدل مشکل و، نو بیا واجب ده. [عرف الجادی / ص ۲۰۷]

**(۲۳) په صحابه وو د موټک تهمت: (العیاذبالله )**

بعض اهل علم نقل این استمناء ازصحابه نزد غیبت ازاهل خودکرده اند. (عرف الجادی ۲۰۷) بعضې اهلوعلمو ویلي دي چې صحابه وو هم مشت زني کړی ده، کله به یې چې مسافري اوږده شوه.

**(۲٤) د استمناء دلیل:** ودرمثل این کار حرج نیست بلکه همچواستخراج دیگر فضلات موذیه بدن است. [عرف الجادی /۲۰۷]

د مشت زني دلیل دادی چې لکه څرنګه چې دبدن نه دنورو فضلاتو (متیازو) په ایستلو کې ګناه نشته همدارنګې مني هم یو فضله شی دی چې په ایستلو کې یې ګناه نشته.

**(۲۵) په موټک باندې حد او یا تعزیر:** په مشت زني باندې د (حد) یاد تعزیر لګول بلاوجه دمسلمان تکلیفول دي

**(۲٦) د نظربازۍ میله:** وظاهرِ ادله جوازِ نظرست سوی محرم، درماسوای قبل ودبر. (عرف الجادی ص۵۲)

**(۲۷) دجماع طريقې:** او اما لو جامع اجنبية بالطريق الغير المعتاد او بالحجر او الخشبة او الحديد وهلكت فعليه ارش الجناية ولامهرولاعقرنزل (نزل الابرار/ ج ۲/ ص ۵۷ )

که د کومې ښځې سره چا دُبرزنی وکړه اویایې ورته په فرج کې لرګی، تیګه اویااو سپنه ووهله او ښځه مړه شوه نو جرمانه او مهر نشته البته خون بهائی شته. غیرمقلد دجماع طریقې وخودلې، لکن دا یې واضحه نه کړه چې تیګه به خوږه وي او که زیګه؟ وړه به وي او که غټه؟ اوسپنه به زیګه وي او که خوږه؟ وړه به وي او که غټه؟ (عرف الجادی ص ۲۰۷)



بسم الله الرحمن الرحیم

# د غیر مقلد نیاز محمد نیاز کنړي مشهورپه امین الله "پشاوری"ګمراه او ګمراه کوونکي عقاید

## انبیاء کرام علیهم السلام د امین الله په نظر کې

**(۱) انبیاء کرام علیهم السلام معصوم نـدي:** انبیاء قبل النبوة اوبعد النبوة دکبائرونه معصوم دی البته صغائر ترینه صادرشویدی (۱). له دوی څخه وروسته یې د مثالونو یوه سلسله لیکلې ده چې: له فلاني نبي څخه فلانی ګناه شوې ده او له فلاني نبي څخه فلانی ګناه شوې ده. مثلاً: حضرت ابراهیم علیه السلام درې ځله دروغ ویلي دي. و غیره وغیره.

**(۲) انبیاء کرام علیهم السلام ته دمعصیت نسبت:**

معصیت په دوه قسمه دی. (معصیة اساسها الکبر) یوهغه معصیت دی چې دهغې بنیاد کبریعنی تکبردی دوهم معصیت (معصیت اساسها الحرص والشهوت) هغه دي چې دهغې بنیاد حرص اوشهوت دی. اول ددویم نه دیر سخت دی اولنی معصیت دابلیس دی اودویم معصیت دآدم علیه السلام دی. (۲).

نو آدم علیه السلام ګناه وکړه، ځکه چې حریص او شهوتي و. که یو څوک ووایي چې امین الله حریص او شهوتي دی نو لامذهبان یې برداشت کوي. او د پیغمبر په حق کې یې برداشت کوي. حالانکې امین الله په [حکمة القرآن ج / ۱ص / ۲۰۴/ جدید ص ۲۱۱ ] کې یې شهوت د کافرانو صفت ښودلی دی.

**(۳) انبیاء کرام علیهم السلام طرفه ته د زنا نسبت:** امین الله لیکلي دي چې: زنا کې فرق وي، دبعضو خلقو زنا اعلی (حقیقی، وی دبعضو وسط درجه کې وي اودبعضو ادنی وی نودانبیاء کرامو اګرچه زنا حقیقی

---

۱ - الحق الصریح ۱/ ۳۲۰ طبع اول وطبع چهارم ۱/ ۳۰۲ حکمة القران ۱/ ۳۸۹. طبع دوهم ۱/ ۳۹۹.

۲ - حکمة القرآن ۱/ ۳٦۸. جدید ایډیشن ۳۹٦/ ۱.

نشته ليكن هم شته ..... او هم يو نوع د زناده (۳). كه مونږ په ممبر اعلان وكړو چې: امين الله يو ه نوعه زاني دى ، نو آيا دى به يې برداشت كړي؟

## (۴) آدم عليه السلام عابد نه و (معاذ الله)

امين الله په حكمة القرآن كې ليكي چې شهوة او عبادت نه جمع كيږي (۴) نو كله چې ستاسو په نيز گناه دادم عليه السلام نه د شهوت په وجه وشوه او شهوة او عبادت نه جمع كيږي نتيجه دا راووته چې آدم عليه السلام عابد نه و .

په بل ځاى كې امين الله ليكي چې: (تارك الصلوة) كافر دى. [حكمة القرآن / ج ۱/ ص ۱۵۸] نو چې آدم عليه السلام بالكل عابد نه شو ، نو دده څه حكم شو ؟

**(۵) په قرآن كريم كې د انبياء كرام عليهم السلام تقصيرات هم موجود دي:** امين الله د فازلهما الشيطن په تشريح كې داسې ليكلى دي چې:

په دې كې من وجه دهغه (ادم عليه السلام تقصير دى چې ولى خټو كې گرځي او د فتنې ځاى ته ولى حاضريږي ؟(۵)

**(٦) امين الله غيرمقلد دختم نبوت څخه هم منكردى:** ځكه چې په يو ځاى كې داسې ليكي چې: ابو حنيفه چې ستاسو پيغمبر دي (٦)

## (۷) حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها د شريعت په ځاى خپل گمان ذكر كړيدى:

د عائشې د قول نه كراهت نه ثابتيږي، ځكه دى خپل گمان ذكر كړيدى (۷).

۳ -الحق الصريح ۱/۳۱۷ طبع جهارم ۱/۳۳٦ طبع اول/ باب الايمان بالقدر / د اتم نمبر حديث تشريح.

٤ - حكمة القرآن ۱/ ۱۸۸/ جديد : ۱۲۳ .

۵ - حكمة القرآن ۱/ ۳۹۰، ۳۹۴، جديد ايديشن ۴۰۴، ۴۰۰.

٦ - تحفة المناظر ص ۱۳۴

۷ - الباطل الصريح ٦ ج ص ۱۲۰

## صحابه رضی الله عنهم دامین الله بشاوري په نظر کښ

### (۸) ام المؤمنین امی عائشه صدیقه رضی الله عنها دهغې په شان کښ ګستاخي:

دعائشې مطلب دادی چې (فلانکی مسئله کښ) ماد خپل وروکتیا اوبیوقوفئ په وجه داکار وکړو.(۸).

### (۹) حضرت عائشه رضی الله عنهاخلك دعظیم خیر نه محروم کړیدي:

معاذالله زنانه دديِ عظیم خیرنه محروم کول بغیر دالله اودرسول دحکم نه صحیح نه دی (۹).

**(۱۰) صحابه وو رضی الله عنهم به دشریعت خلاف کولو** ډیرو صحابه وو به دحق خلاف کار کوه.(۱۰) بیا یې په مثال کې سیدنا ابوبکر صدیق رضی الله عنه ، حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت بلال رضی الله عنه پیش کړي دي. حضرت عمر رضی الله عنه ۵۰ فتوی دقرآن اودحدیث نه خلاف ورکړی دی (۱۱).

### (۱۱) صحابه کرام رضی الله عنه جاهل وو (معاذالله)

پیغمبر علیه الصلوة والسلام وفرمایل چې: (اوتروا یا اهل القرآن!) ددې لاندې دیو صحابي په باره کې لیکي چې: جاهلانو ته ګوره او تهجدو او وترو ته ګوره. (۱۲). همدارنګه چې پیغمبر علیه الصلوة والسلام هغه (صحابي) ته د اعادې حکم ددې له پاره کړی دی چې کېدی شي دغه صحابی جاهل وي. [الحق الصریح/ ج ۵/ ص ۹۸]

### (۱۲) حضرت عمر رضی الله تعالی عنه بدعتي و. (معاذ الله)

امین الله لیکي چې: هم داعمر رضی الله عنه خلیفه راشد دی لیکن په رمضان کې په تراویحو باندې دخلقو راجمع کولو ته ئی بدعت وئیلي سنت ئی ورته نه دي وئیلی (۱۳) یعني خپل کارئی بدعت ګڼلی نو ضرور حضرت عمر رضی الله عنه بدعتي شو معاذالله

---

۸ - فتاوی الدین الخالص ۲/ ۲۲ مسئله نمبر: ۲۰۵

۹ - الباطل الصریح ۶/ ۱۲۰

۱۰ - الحق الصریح ۱/ ۴۹۷جدید ۱/ ۴۷۱

۱۱ - دده اواز په کیسټ کې ثبت دی داکیسټ داهل سنت والجماعت میوزك سنټر سره عامه بیداکیبري

۱۲ - الحق الصریح ۳۶۹ ج ۵

۱۳ - الدین الخالص ج ۲ ص ۸۲ مسئله ۲۲۶

**(۱۳) عبدالله بن مسعود ﷜ بدعتی و معاذ الله:**

دجمعي دمانځه نه مخکې د ۴ رکعته سنتو په باره کې دعبدالله بن مسعود حدیث په باره کې لیکي چې: جواب دادی چې بالکل حدیث دابن مسعود ﷜ صحیح دي ترمذي، طبراني وغیرهما نقل کړي دي (۱۴) او بیالیکي چې ددی ځلورور کعاتو دبدعت نه ځان اوساتي (دجمعي دمانځه نه مخکې دسنتو حیثیت (ص۲۰).

**(۱۴) دصحابه کرامو رضی الله عــنهم اقــوال حجــت نــدي.** الحق الصریح ج ۱/ ص ۴۴ جدید ایډیشن ص ۴۰].

موقوف حدیث (د صحابی قول دی) په دې کې اصل دادی چې دا حجت نه دی، ځکه چې دا د صحابه کرامو اقوال او افعال دي. (۱۵)

په بل ځای کې لیکي چې: دا د صحابي اجتهاد دی. مرفوع حدیث ورسره نه شته، نو دا د امت له پاره حُجت نه دی. [الحق الصریح / ج ۳ / ص ۷۶]

## تضادات د امین الله (پشاوری)

(۱) قبرستان ته د ښځو تلل مستحب عمل دی (١٦). په بل ځای کې لیکي چې: په هغه ښځو باندې لعنت کیږي چې قبرستان ته ځي. (۱۷). د یو غیر مقلد مولوي کتاب چې په هغې دامین الله تقریظ دي لیکلي دي چې: ښځو ته قبرستان ته تلل حرام دي. (انتخاب مشکوة از عبدالله فاني ص ۳۲۰].

(۲) امین الله په یو ځای کې لیکلي دي چې امام قرطبی مالکی نه دی. [د تقلید حقیقت / ص ۲۸۹]. او په بل کتاب کې یې لیکلي دي چې علامه قرطبی الاندلسی المالکی. (۱۸)

(۳) په یو ځای کې لیکي چې: تبلیغي جماعت د فِرَقِ باطله وو څخه دي (۱۹) او په یوه ورقه کې یې یو تبلیغي ته لیکلي دي چې د تبلیغیانو عقائد کفریه دي او په یو بیان کې امین الله ویلی دي چې تبلیغیان ښه

---

١٤ - دجمعی مانځه نه مخکې دسنتوحیثیت ص ۷، ۲۲

۱۵ - الدین الخالص ص ۸۱/ ج ۲ / ۱ / ۱۰۴/ ۲/ ۱۰۴/ ۲ / ۸۰/ الحق الصریح : ۱ / ۴۹۹، ۲/ ۱۰۰/ ۴/ ۵۴۱، ۵/ ۱۳۳/ ۳۹۲ / ۳۴۹ / ج ۳ / ص : ۷٦ .

١٦ - الحق الصریح ج ۲ ص ٦۸۴

۱۷ -دمصیبتونوعلاج ٦۲

۱۸ - الحق الصریح ۳/ ۵۴۸ الدین الخالص ۱/ ۱۹۵

۱۹ - حکمة القرآن ۱/ ۱۰ طبع اول

خلک دي ، د مسلمانانو اصلاح کوي او په دين باندې پيسې لګوي. (کيسټ عنوان ، فرق او مذاهب ۱۷ تا ۱۸ منټ په مينځ کې

(۴) په يو ځای کې يې ليکلي دي چې تقليد په څلورمه صدی هجري کې رائج شويدی (۲۰) او په دوهم مقام کې په خپلو فاسدو خيالاتو سره د ايوب سختياني رحمة الله عليه په قول باندې د تقليد رد ثابتوي (۲۱) حالانکه ايوب سختياني په ۱۳۱ هجري کې تيرشويدی (۲۲)

(۵) په يو ځای کې يې ليکلي چې د جمعې غسل واجب دی او حکم د غسل مضبوط حکم دی. [الدين الخالص ج ۲/ ۵۳۳ مسئله نمبر ۴۰۴ چاپ پښتو ]. او په بل ځای کې يې ليکلي چې اجماع وشوه چې غسل مستحب دی واجب ندی. (۲۳)

(۶) اجماع سکوتی حجت ندی (۲۴) او کله يې بيا زمونږ خلاف حجت ګڼي (۲۵)

(۷) امين الله په خپل کتاب الحق الصريح ج ۱ ص ۳۰۲ طبع چهارم کې ليکلی دي چې انبياء کرام عليهم السلام د صغائر ګناهونو څخه معصوم نه دي. بيا يې په بل کتاب باندې تقريظ کړی دی چې د غير مقلد کتاب دی او هلته يې ليکلي دي چې انبياء کرام عليهم السلام د صغيره او کبيره دواړو ګناهونو څخه معصوم دي.(۲٦) .

(۸) ترک رفع اليدين په صحيح سند سره ثابت ندي الحق الصريح ج ۴/ ۱۰۴ او په بل کتاب باندې دده تقريظ دي او نظرثاني هم دده دی، هلته يې ليکلي دي چې په رفع اليدين کولو باندې هم احاديث موجود دي او ترک رفع اليدين باندې هم احاديث موجود دي د علماوو اختلاف پر اولی او غيرِ اولی کې دی. [ انتخاب مشکوة ص ۳۴۸، ۳۵۰ ] .

---

۲۰ - التحقيق السديد ۱۲۴

۲۱ - التحقيق السديد ص ۱٦۹

۲۲ - تهذيب التهذيب ۱ ج ص ۳۹۸

۲۳ - الحق الصريح ۲/ ٦۷۱ - ٦ - ۴٦

۲٤ - حكمة القرآن ج ۲ / ٦۳٦

۲۵ - الحق الصريح ج ۳ ص ۳۰۳ ج ۲ ص ٦۷۲

۲٦ - امام ابوحنيفة رحمة الله عليه ص ٦۲ از ابوعبدالله نصيراحمد المدني غيرمقلد

## امين الله بشاوري دتحريف په مقام كې

(۱) امين الله په خپل كتاب كې انما الذين آمنوا بالله ورسوله ثم لم يرتابو او جاهدوا ... فى سبيل الله حكمة القرآن ج ۱ / ۱۵۹ چهارم: ۱ / ۱۶۰ په دې ايات كې امين الله د (وجاهدوا) نه وروسته (با موالهم و انفسهم) پرينبى دى، د (وجاهدوا) نه وروسته دا نقطې مونږلګولي دي او هغه د (وجاهدوا) څخه وروسته فوراً بعد (فى سبيل الله) ليكلي دي. اصل ايات وګوري سورة الحجرات پاره ۲۶ آيت ۱۵.

(۲) بل تحريف: نقشعرمنه جلود الذين (اللذين) يخشون ربهم امين الفتاوى ج ۲ / ۹ طبع سوم]. حالانكه دقوس په مينځ كې لفظ په قرآن كې نشته

(۳) بل تحريف: ليحملوا اوزارهم كاملة يوم القيامةومن اوزار الذين (كفروا) الاساء مايزرون (۲۷)

اصل ايات داسې دى وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ اَلَاسَاء مَا يَزِرُوْنَ (نحل ۲۵).

(۴) بل تحريف: ماننسخ من آيه او لم تعلم ان الله على كل شئ قدير البقره ۱۰۶ الحق الصريح ج ۱/ ۵۰۲

اصل ايات داسې دي: مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِها نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهآ اَوْ مِثْلِها اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْر

(۵) بل تحريف يثب الله الذين آمنوا فى الحيوةالدنيا وفى الآخرة سورة ابراهيم ۲۷. [ الحق الصريح / ج ۱/ ص ۴۰۲ / طبع اول ] . اصل ايت داسې دى چې: ( يثبت الله الذين امنوا بالقول الثابت فى الحيـوة الدنيا وفى الاخرة ) .

(۶) بل تحريف: ( قل لا اجد فيمايوحى الى محرماً) [ سورة الانعام ۱۴۵ / الحق الصريح ۱/ ۴۹۰ ].

اصل ايا ت كې يُوحَى لفظ نه دى بلكې د اوحى لفظ دى.

(۷) بل تحريف: ( وتبتل اليه تبديلاً ) [المزمل/ ۸ /الحق الصريح ج ۱/ ۲۲۵ ] .

اصل الفاظ داسې دى: [ وتبتّل اليه تبتيلاً]

(۸) بل تحريف: ( والخيل والبغال والحمير لتركبوا وزينةً ) [ نحل / ۸ / الحق الصريح /ج ۱ /ص ۴۸۵ ]. حالانكه لفظ د (لتركبو )نه دى، بلكى (لتركبوها ) دى.

---

۲۷ - نحل ۲۵ الحق الصريح ج ۱ / ۴۶۹ طبع اول

(٩) بل تحريف: ( و يحملون اثقالاً مع اثقالهم ) [الحـق الصريـح /ج ١ / ٤٦٨ /طبـع اول ١/ ٤٤٣ /طبع چهارم ]. حالانكې صحيح لفظ ( وَ لَيَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ وَ اَثْقَالاً مَعَ اَثْقَالِهِمْ ) [ سورة عنكبوت ١٣]

(١٠) بل تحريف: سورة التوبة ايات نمبر ١٦ په [التحقيق السديد/ طبع ثالث / سنه (١٤١٩)هــ / ص: ١٣٧ ] كې يې داسې ليكلى دي چې ( والله بما تعملون خبيره ) الايه . ددې نه مخكې دا كتاب دوه ځلې نورهم شائع شوى دى. ددې كتاب نه وروسته دوهم كتاب (دتقليد حقيقت) ليكل شوى دى. دهغې سنه دا شاعت ١٤٣٢ هـ دى او په دې كتاب كې هم دا ايات همداسې ليكل شويدى، څرنګه چې (١٣) كاله مخكې چاپ شوى دى .

حالانكې دا ايات په اصل كې ( والله خبير بماتعملون ) دى، دغو بد نصيبو ته الله تعالى جل جلاله دومره توفيق نه دى وركړى چې دغه يو ايات (١٣) كاله كې برابر كړي (٢٨) .

* * *

٢٨ - التحقيق السـديد ص ١٣٧

قل هاتوا برهانكم ان كنتم صادقين. الآية

# دلامذهبو وهابيانو څخه دلمانځه او متعلقاتو په باره کې ۲۸۰ پوښتنې

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نـن سباهره فرقـه پـه بلـه بانـدې سـوالونه كـوي، لكـن اكثرسـوالونه غلـط وي ،لـه دې وجهـې دصـحيحو اودغلطوسوالونوپيژندل ضروري دي.

په مناظره کې دوه ډلې وي: **اول**: مدعي. **دوهم** :سايل.

**مدعي**: هغه چاته وائي چې دکوم شرعي حکم دثابتولو کوشش کوي.

**سايل**: هغه چاته وائي چې دمدعی ددعوی څخه انکارکوي

اودسوال لپاره ډيرې طريقې دي لکه ،منع ،نقض ،معارضه ،اوداسوالونه مدعی ته متوجه کيږي، ترڅو چې مدعی نوي معلوم سوالونه ندي ممکن.

**مثلا :**

رسول الله ﷺ دنبوت دعوی کړی وه، نودمنکرینولپاره دسوال حق وومګردهغې سوال حق يې لرلو چې ددعوی دنبوت سره تعلق لري ،ليکن کفاروغلط سوالونه کول ،څکه چې ددوی سوالونوددعوی دنبوت په ځای ددعوی دالوهيت سره تعلق لرلو ،لکه چې ويل به يې په مونږداسمان څخه تيږې راووروه.

نو په دی مُلکونو کې درې ډلې دي چې يوبل ته په کمين کې ناستې دي:

**اوله: اهل قُران**: دوی وائي چې مونږيواځې اويواځې قران منو، نورنه حديث مني او نه اجماع مني اونه قياس مني.

**دوهمه اهل حديث**: دوی وائي چې مونږصرف اوصرف قران او حديث منو، نورنه اِجماع مني اونه قياس.

**دريمه اهل السُنت والجماعت**: دوی قران حديث ،اجماع ،اوقياس څلورواړه مني، نو چې کله د اولې فرقې څخه سوال وشي چې په قران کې خرحلال دی اوکه حرام؟ اوپه قران کې د لمانځه څومره شرايط او څومره ارکان دي؟

يو اځې له قران کريم نه جواب راکړئ! (حديث، اجماع او قياس به په جواب کې نه پيش کوئ!) نو دا سوال صحيح دی. څکه چې ددوی د دعوی سره موافق دي اودد دې ډلې فريضه داده چې په جواب کې صرف د قران کريم

ایات پیش کړي او چې کله له دوهمی فرقې څخه سوال وشي چې په قران او حدیث دواړو کې دلمانځه څومره فرضونه او څومره سنتونه دي؟ جواب صرف له قران کریۀ او دحدیث څخه راکړئ!

نودا سوال صحیح دی، ځکه چې ددوی د دعوی سره موافق دی او ددې دلې فریضه داده چې په جواب کې دقران کریم ایات او یا د رسول الله ﷺ حدیث صحیحه صریحه پیش کړي. او که ددې دلې نه دا سوال وشي چې صرف په قران کې دلمانځه څومره فرضونه او سنتونه دي؟ نو دا سوال غلط دی، ځکه چې ددوی د دعوی سره مخالف دي او چې کله د دریمې فرقې څخه سوال وشي چې دلمانځه فرضونه، سنتونه او مستحبات په قران او په حدیث او اجماع او په قیاس کې څومره دي؟ نو دا سوال صحیح دی، ځکه چې ددوی د دعوی سره موافق دی او د دوی دا فریضه ده چې په جواب کې قران یا حدیث یا اجماع او یا قیاس پیش کړي.

او که ددې دلې څخه سوال وشي چې صرف په قران کې دلمانځه څومره فرایض سنن او مستحبات دي؟ نو دا سوال غلط دی ځکه چې ددوی د دعوی څخه مخالف دي. همدارنګه که د اهل سنت والجماعت څخه دا سوال وشي چې صِرف په قران او حدیث کې د لمانځه څومره فرایض، سنن، او واجبات دي نو دا سوال هم غلط دی، ځکه چې ددوی د دعوی څخه مخالف دی، ځکه چې ددوی دلایل صرف قران او حدیث نه دي، بلکې ددوی دلایل څلور دي: قران، حدیث، اجماع او قیاس.

نو که یو پرویزي (اهل قُران) دا دعوی وکړي چې صرف قران کافي دی، نو دده نه که سوال وشي چې دلمانځه فرضونه او سنتونه او واجبات صرف قران کې وښایه او هغه هم صرف د قران ایتونه په جواب کې پیش کړل، نو دده دعوه صحیح ثابته شوه او که صرف د قران نه یې ثابت نه کړی شو، نو بیا دده دعوه غلطه ده او دروغ ده.

او که یو لامذهبه (اهل حدیث) دا دعوی وکړي چې صرف قران او حدیث کافي دي، نو دده څخه که سوال وشي چې دلمانځه فرضونه او سنتونه او واجبات صرف په قران او په حدیث کې وښایه او ده هم په جواب کې هره جزئي مسئله په قران او په حدیث کې صراحةً ثابته کړه، نو دده دعوه صحیح ثابته شوه او که صِرف د قران او د حدیث څخه یې ثابت نه کړی شوه، نو بیا دده دعوه غلطه او دروغ ده.

**فلهذا:** مونږ به د لمانځه په باره کې یو څو سوالونه ولیکو چې: په هر مسلمان باندې د ورځې پنځه وخته فرض دی. اهل سنت والجماعت ته درخواست دی چې: که د کوم اهل قران (پرویزي) سره مخ شي، نو دا راروان سوالونه

دي په داسې طريقه ترينه وکړي چې جواب صرف په قراني اياتونه ورکړي انشاءالله تعالی دده دعوه به دروغ ثابته شي او هيڅکله به ددې سوالونو جواب څخه د قران کريم څخه درنکړی شي.

او که دکوم اهلحديث سره مخ شي نو دا سوالونه دی په داسې طريقه ترينه وکړی چې هغه په جواب کې ورته یا قرانی ايت او يا حديث صحيحه صريحه غير معارضه پيش کري، انشاءالله تاسو به وګورئ چې څنګه صُم بُکم عُمی او لاجوابه پاتې کيږي؟ او دده دعمل بالحديث دعوی به داسې باطليږي لکه څرنګه چې د پرويزيانو دعوی د عمل بالقران باطله ده. د يو اُمتی قول هم ورسره مه منئ! ځکه چې د اُمتي خبره نه قران دی او نه حديث. بلکې تقليد دی او تقليدته دوی شرک وايي.

له دې څخه وروسته دې راميدان ته شي چې مونږ ورته دلمانځه هره مسئله په قران يا حديث يا اجماع او يا قياس ثابته کړو. د لمانځه څخه مخکې چې کوم کارونه ضروري دي، هغې ته مجتهدين امامان د لمانځه شرائط وايي. دفقهی څخه معلوميږي چې تعداد د شرائطو په اجماع د امت باندې ثابت دی. رسول الله ﷺ فرمائي چې په قيامت کې به د فرايضو حساب کيږي او که په دې کې کوم کمی شوی وي نو په نوافلو به پوره کيږي نو د فرايضو، واجباتو، سننو او مستحباتو پيژندل ضروري دي.

## سوالات

**(۱) ســـوال :** پـه قـران او پـه حـديث کـې دلمانځـه څـومره شـرطونه ذکرشـوي دي؟ او کـوم کـوم دي؟ او همدارنګې د شرط جامع او مانع تعريف په قران يا په حديث کې وښايئ!

**(۲) سوال:** په قران او په حديث کې دلمانځه څومره ارکان ذکرشوي دي او کوم کوم دی؟ او د رُکن جامع او مانع تعريف قران او يا په حديث کې وښايئ!

**(۳) سوال:** په لمانځه کې واجبات څومره دي؟ او دواجب جامع او مانع تعريف په قران او په حديث کې وښايئ!

**(٤) سوال:** په لمانځه کې څومره شيان سنت دي؟ او کوم کوم دي؟ همدارنګې په قران يا په حديث کې دسنتو جامع او مانع تعريف څه دی؟

**(۵) سوال:** په لمانځه کې څومره مستحبات دي ؟ او کوم کوم دي ؟ او همدارنګې د مستحبو جامع او مانع تعريف په قران او په حديث کې وښايئ!

**(٦) سوال**: ستاسو په نيز په لمانځه کې څومره مباحات دي ؟ او کوم کوم دي ؟ او همدارنګې د مباح جامع او مانع تعريف په قران او په حديث کې وښايئ!

**(٧) سوال:** ستاسو په نيز د لمانځه مکروهات څومره دي ؟ او کوم کوم دي ؟ او د مکروه جامع او مانع تعريف څه دی ؟ هر جواب په قران او يا په حديث صحيحه، صريحه باندې را کړئ.

**(٨) سوال** : په قران او په حديث کې د مفسداتو د لمانځه تعداد څومره دي ؟ او کوم کوم دي ؟ او د فاسد تعريف څه دی ؟ په جواب کې ايت او يا حديث پيش کړئ !

**(٩) سوال** : د سهار لمونځ څو رکعته دي ؟ څو رکعته فرض او څو رکعته سنت دي ؟ په جواب کې صريح ايت يا صريح حديث پيش کړی چې رسول الله ﷺ صراحة ويلي وي چې دومره رکعته لمونځ دی او دومره په کې فرض او سنت دي د ( فرض او سنت ) لفظ صراحة وښائئ.

**(١٠) سوال** : د ماز يګر څو رکعته دي ؟ فرض دي که سنت ؟ په قران يا په حديث کې د فرض يا سنت لفظ د ماز يګر د لمانځه سره وښائی ؟

**(١١) سوال** : د ماښام څو رکعته دي ؟ څو فرض دي او څو سنت دي ؟ صراحة يې په حديث کې وښائی ؟ چې رسول الله ﷺ فرمايلي وي چې دومره رکعته دي او دغه رکعتونه پکې فرض دي او دغه پکې سنت دي.

**(١٢) سوال:** ستاسو په نيز د ماخوستن څو رکعته دي، د فرض، سنت او نفل تفصيل يې صراحة په آيت او يا په حديث کې وښائی.

**(١٣) سوال:** رسول الله ﷺ د فرضو او د نفلو او د سنتو او واجبو نيت په زړه کې کړی دی او که نه؟ که کړی يې وي څرنګه يې کړي دي ؟ تفصيل يې وښايئ.

**(١٤) سوال** : انحضرت ﷺ په زړه کې د سهار، د ماز يګر د ماښام، او د ماخوستن، د فرضو نيت څنګه کړی دی ؟

**(۱۵) سـوال** : يو اځې لمونځ کونکې به د مازيګر په لمانځه کې په زړه کې د کوم کوم شي نيت کوي ؟جواب د ايت او يا د حديث صحيح صريح غير معارض څخه پيش کړی .

**(۱٦) سوال** : مقتدي چې د مازيګر لمونځ په جماعت باندې اداکوي هغه ته رسول الله ﷺ په حديث کې د رکعتونو ،فرض وقت ، قبلې و غيره کوموکوموشيانو د نيت امر کړی دی؟ صحيح حديث وښايئ!

**(۱۷) سوال** : په زړه کې به نيت کله کوئ؟ د تکبير تحريمه څخه مخکې او که وروسته؟ او ترکومه پورې به دانيت باقي وي ؟ ترسلامه پورې او که ترکومه پورې ؟ د صحيح حديث څخه جواب راکړی .

**(۱۸) سوال** : تکبير تحريمه فرض دی که واجب دی او که سنت دی او که مستحب دی ؟تکبير تحريمه که قصداً پاتې شو څه حکم يې دی؟ او که سهوا پاتې شوه څه حکم يې دی ؟ حکم يې صراحةً په ايت يا په حديث کې وښائي .

**(۱۹) سوال** :ستاسو په نيز تکبير تحريمه د امام لپاره په اوچت اواز سنت ده او د مقتدي لپاره په پټه سنت ده دا حکم په حديث کې وښائي ؟

**(۲۰) سوال** : يواځې لمونځ کونکي ته تکبير تحريمه جهرا سنت ده او که سرا ؟ رسول الله ﷺ په دې باره کې څه فرمايلي دي؟ د تکبير سره د جهر او يا د سر لفظ د رسول الله ﷺ څخه ثابت کړئ .

**(۲۱) سوال**: د تکبير تحريمه سره رفع اليدين ته رسول الله ﷺ فرض ويلي دي او که سنت ؟

**(۲۲ ) سوال** : که چا د تکبير تحريمه سره رفع اليدين و نه کړل لمونځ يې باطل دی او که مکروه؟ رسول الله ﷺ څه فيصله کړی ده؟ د رسول الله ﷺ صريحي فيصله وښائي چې يا يې ورته باطل ويلي وي او يا مکروه

**(۲۳ ) سوال** : د تکبير تحريمه څخه وروسته تاسو لاسونه په سينه باندې ږدي نو دا فرض دي، که سنت دي او که واجب ؟ رسول الله ﷺ څه فيصله کړی ده؟ صحيح حديث وښائي چې د فرض يا سنت يا واجب لفظ د سينې سره يو ځای په کې وي .

**(۲٤) سـوال** : کوم سړی چې د نامه څخه لاندې لاسونه کيږدي د هغه لمونځ باطل دی او که مکروه ؟ صـريح حـديث وښـائي چـې رسـو الله ﷺ د باطـل يـا مکروه لفـظ ذکر کـړی وي ستاسـو اجتهادي فيصلې تـه اعتبار نشته ځکه چې په تاسو کې مجتهد نشته او نه اجتهاد منئ!

**(۲۵) سـوال :** دلاسونود ترلوڅخه وروسته دثناء ويل، ستاسو په نيزفرض دى اوكه واجب دى اوكه سنت دى ؟صريح حديث پيش كړئ !

**(۲٦) سوال:** دامام لپاره ثناء جهراسنت ده اوكه سرا ؟صحيح حديث پيش كړئ .

**(۲۷) سوال:** په كوم صحيح، صريح، غيرمعارض حديث كې دا حكم شته چې مقتديان دى ثناء سِراً وايي؟

**(۲۸) سوال:** په حديث كريمه كې دي چې درسول الله ﷺ يو مقتدي صحابي داستفتاح دعاء په اواچت اوازلوستله، رسول الله ﷺ ورته خوشخبري وركړه، چې دولسو فرشتوستادعاپورته كوله، غير مقلد مقتدي په دې حديث ولې عمل نه كوي؟ اوثناء ولې په اوچت اوازسره نه وائي ؟په[ نسائى مترجم / ص ۳۵٦ /ج ۱/ ص ۳۰۰ اوپه مسلم اردو /ج ۲/ص ۳ ] كې د جهر ذكر دى .

**(۲۹) سـوال :** درسـول الله ﷺ څخـه دثنـاء په بـاره كې دولـس صيغې ثـابتي دي، نورسول الله ﷺ دټولو صيغودلوستلو اويادلو حكم كړى دى اوكه نه ديوى خاصي ثناء تعين خپله رسول الله ﷺ كړى دى؟ يعنې رسول الله ﷺ په كوم ځاى كې فرمايلي دي چې دافلانكې ثناء لولئ اوباقي يوولس مه لولئ !.

**(۳۰) سوال :** ددې دولسو ثناګانو لپاره دري طريقې دي، يو دا چې يوه هم ونه لولى، دوهم دا چې دولس واړه ولولى، دريم دا چې يوائې يوه پكې ولولي اويولس پريږدى، په حديث كې كومې طريقې ته بهتره ويلي شوي ده ؟ دامتي فيصله به نه پيش كوئ چې فلان عالم په فلان كتاب كې يوى ته قوي ويلي دي اونوروته يې ضعيف ويلي دي اويافلان عالم ويلي دي چې په ټولو عمل روا دى، ځكه امتي چې دافيصله كوي نوخامخا مجتهدبه وي اود مجتهد خبره منل خوتقليد دى اوتقليد خوستاسو په نزد شرک دى، نوصرف درسول الله ﷺ فيصله پيش كړئ .

**(۳۱) سوال:** د رسول الله ﷺ څخه خو دولس واړه ذكرونه ثابت دي، لكن د امر صيغه صرف د(سبحنک اللّٰهُمَّ الخ ) په باره كې راغلى ده، نودنوروپه باره كې صيغه دامركوم ځاى كې راغلې ده ؟

**(۳۲) سوال :** درسول الله ﷺ څخه وروسته خلفاء رضى الله عنهم د(سبحنک اللّٰهُمَّ ) څخه بغيرپه بلې كومې ثنا مواظبت كړى دى ؟په جواب كې صحيح، صريح، غيرمعارض حديث پيش كړئ!

**(۳۳) سوال:** که کوم سړی ثناء مونځ لوستله لمونځ یې صحیح دی او که باطل دی او که مکروه ؟ رسول الله ﷺ په څه شي تصریح کړی ده ؟ او همدارنګه که په قصد چاپریښود له څه حکم یې دی ؟ او که په سهوه ترینه پاتې شوه څه حکم یې دی ؟

**(۳٤) سوال :** که کوم سړي دثناء په ځای التحیات الخ ولولي نو لمونځ به دوباره کوي؟ او که سجده سهوه به کوي؟ رسول الله ﷺ څه فیصله کړې ده ؟

**(۳۵) سوال :** په کوم صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث کې صراحةً راغلي دي چې رسول الله ﷺ دثناء پسې متصلا (اعوذبالله من الشیطن الرجیم) لوستلې ده؟ .

**(۳٦) سوال :** اعوذبالله لوستل په لمانځه کې فرض دی، که واجب دی او که سنت دی؟ رسول الله ﷺ په څه شي تصریح کړی ده؟

**(۳۷) سوال :** رسول الله ﷺ صحابه وورضی الله عنهم ته اعوذبالله دلمانځه څخه مخکې ورخودلې وه او که دلمانځه په مینځ کې یې درسول الله ﷺ څخه اوریدلې وه ؟

**(۳۸) سوال :** اعوذبالله الخ په لمانځه کې جهرا سنت ده او که سرا ؟ صریح حدیث پیش کړئ!

**(۳۹) سوال :** ایا رسول الله ﷺ په دوهم، په دریم او په څلورم رکعت کې د اعوذبالله دلوستلو څخه منع کړې ده؟ د (اذاقرات القران فاستعذبالله) څخه څه شی ثابتیږي ؟

**(٤۰) سوال :** عبدالله بن زبیر ﷺ جماعت باندې لمونځ ورکولو او جهرا یې اعوذبالله ولوستله، دعبدالله بن زبیر ﷺ او دده دمقتدیانو دالمونځ صحیح دی او که مکروه؟ په حدیثو کې صراحةً څرنګه فیصله شوی ده ؟

**(٤۱) سوال :** بعضې غیرمقلدین دجماعت په وخت کې لیدل کیږي چې ددوی امام بسم الله الرحمن الرحیم په اوچت اواز (جهرا) لولي او مقتدیان یې په پټه (سِراً) لولي، نو ایا په کوم صحیح حدیث کې دا فرق موجود دی، چې دامام لپاره بسم الله الرحمن الرحیم جهراً سنت ده او دمقتدي لپاره سِراً سُنت ده ؟

**(٤۲) سوال:** رسول الله ﷺ او خلفاءراشدینو په جهري بسم الله مواظبت کړی دی او که په سري بسم الله ؟

**(٤۳) سوال :** عبدالله بن عباس ﷺ بسم الله بالجهر ته د ځنګلیانو فعل ویلی دی (مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ص ٤۱۱) نو دده دا فیصله صحیح ده او که غلطه؟ په جواب کې ایت یا حدیث پیش کړئ !

**(٤٤) سـوال** : حافظ زیلعی په نصب الرایه او علامه ابن تیمیه په فتاوی کې فرمائي چې کله امام دارقطني د جهر د بسم الله روایات راجمع کړل او یوه رساله یې ولیکله نو بعضې مالکیه ورته راغلل او قسم یې ورته ورکړو چې په دې کې صحیح احادیث شته او که نه ؟ نو امام دارقطني اعتراف وکړو چې : ( کل ماروي عـن النبي ﷺ في الجهر بالتسمیة فلیس بصحیح ). [ج ۱ص ۳۵۸، وص ۳۵۹].

یعنې د جهر د بسم الله ټول احادیث ضعیفه دي، نو د امام دارقطني ، امام ابن تیمیه او د حافظ زیلعی دا فیصله صحیح ده او که غلطه ؟ په صحیح حدیث جواب راکړئ!

**(٤٥) سوال** : په بخاری او په مسلم شریف کې د جهر د بسم الله یو روایت هم نشته، نو که د جهر په باره کې صحیح حدیث وي، امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله ولې نه ذکر کاوه؟ حالانکه امام بخاری رحمه الله په احنافو باندې په اعتراض کولو کې ډیره دلچسپي لري.

**(٤٦) سوال** : په لمانځه کې قیام فرض دی ځکه چې الله ﷻ امر کړی دی چې (قوموا لله قانتین )

همدارنګې رکوع او سجده فرض ده، ځکه چې الله ﷻ امر کړی دی چې ( وارکعوا واسجدوا....) نو چې سورة فاتحې ته تاسو فرض وائي، نو الله ﷻ په کوم ځای کې د سورة فاتحې د لوستلو امر کړی دی ؟

**(٤٧) سوال** : د قران کریم په کوم ایت کې راغلي دي چې د امام پسې د سورة فاتحې لوستل فرض دی او د باقي یو سلو دیارلسو سورتونو لوستل منع او حرام دي ؟.

**(٤٨ ) سوال**: د بخاری او د مسلم په کوم حدیث کې صراحة راغلي دي، چې د امام پسې د سورة فاتحې لوستل فرض دي او د باقي قران لوستل منع او حرام دي او کوم مقتدي چې سورة فاتحه ونه لولي لمونځ یې باطل او حرام دی ؟

**(٤٩ ) سوال** : رسول الله ﷺ چې د خپلې مبارکې زندګی اخري لمونځ په ابوبکر صدیق رضی الله عنه پسې وکړو، نو ایا رسول الله ﷺ په ابوبکر صدیق رضی الله عنه پسې سورة فاتحه لوستلې وه او که نه ؟

**(٥٠ ) سوال** : الله ﷻ فرمائي : (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَأَنْصِتُوْا) الایه او کله چې ولوستلې شي قران نو غوږ کیږدئ تاسې هغه ته او چپ اوسئ تاسې، لپاره د دې چې رحم درباندې وشي، د دې تشریح صحابه وو داسې کړې ده.

**حاصله:** چې داايت دلمانځه په باره کې نازل شوی دی او دامام او مقتدي وظيفه يې جدا کړې ده پداسې طريقه چې: په دی ايت کې دامام وظيفه. (قرات کول دي) او دمقتدي وظيفه: (چپ و دريدل دي)

يعني مقتدي به دامام پسې الحمدلله او بل سورة نه لولي داتشريح لاندې صحابه وو او تابعينو (رضوان الله تعالى عليهم) کړې ده:

(۱) عبدالله بن مسعود ﷺ: (تفسيرابن جرير، ج ۹ص ۱۰۳).

(۲) عبدالله بن عباس ﷺ: (تفسيرابن كثير، ج ۲ص ۲۸) (تفسيرابن جرير، ج ۹ص ۱۰۳) (تفسيرروح المعانى، ج ۹ ص ۱۵۰) (كتاب القرات ص ۸۸)

(۳) حضرت مقدادبن اسود ﷺ: (تفسيرمظهرى، ج ۳ص ۵۰۷)

(٤) امام مجاهدرحمه الله: (تفسيرابن جرير، ج ۹ ص ۱۰۳) (تفسيرابن كثير، ج ۲ص ۲۸۱) (كتاب القرائت، ص ۱۰)

(۵) حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله: (تفسيرابن جرير، ج ۹ص ۱۰۳) (كتاب القرائت، ص ۱۹)

(٦) حضرت سعيدبن جبير ﷺ: (تفسيرابن جرير، ج ۹ ص ۱۰۳) (تفسيرابن كثير، ج ۲ص ۲۸۱) (كتاب القرائت، ص ۹۱)

(۷) حضرت حسن بصري رحمه الله:

(۹،۸) حضرت عبيدبن عمير او حضرت عطاء بن ابى رباح رحمهم الله: (تفسيرابن جرير، ج ۹ص ۱۰۳)

(۱۰- ۱٦) حضرت ضحاک، ابراهيم نخعى قتادة، شعبى، سدى، عبدالرحمن بن زيدبن اسلم رحمهم الله تعالى. (تفسيرابن كثير، ج ۲ص ۲۸۱)

(۱۷) حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله: (مغنى ابن قدامه ص ٦۰۵ ج ۱) و (فتاوى ابن تيميه، ج ۲ص ۱۲۸)

(۱۸) جمهورصحابه تابعين اوتبع تابعين رضى الله عنهم: (فتاوى كبرى لابن تيميه، ج ۲ص ۱٦۸).

(۱۹) اوهمدامختاره ده دصاحب د (۱ تفسيركشاف (ج ۱ص ۲۳) (۲ تفسيرمظهرى (ج ۳ص ۵۰۷) (۳ تفسير بيضاوى (ص ۳۰۸ /٤ تفسيرروح المعانى / ج ۹ ص ۱۵۱/ ۵ معالم التنزيل / ۲۷۲/٦ مغنى ابن قدامه، ج ۱ص ۷/٦۰۵ ابوالسعود/ج٤ص ۵۰۳ /۸ /فتاوى الكبرى لابن تيميه/ج ۲ص ۱٦۸) وغيره ده.

نو ددې ايت لپاره ددومره صحابه وو او تابعينو او تبع تابعينو او مفسرينو دا تشريح صحيح ده او که غلطه ده ؟ په جواب کې صحيح حديث پيش کړي .

**(۵۱) سوال** : په کوم صحيح حديث کې راغلي دي چې مذکور ايت کريمه د کافرانو په باره کې نازل شوي دي مسلمان دی ورباندې عمل نکوي ؟.

**(۵۲) سوال:** غيرمقلدين وائي چې دا ايت کريمه د خطبې په باره کې نازل شوی دی .حالانکې دا ايت کريمه مکی دی، نو په کوم صحيح حديث کې راغلي دي چې په مکه کې ددې ايت د نزول په وخت کې د جمعې دلمانځه خطبه لوستل کيده ؟

**(۵۳) سوال** : کوم مقتدي چې د امام سره په رکوع کې شريک شي هغه نه خپله فاتحه لوستلي وي او نه يې دامام څخه اوريدلي وي، نو ايا رسول الله ﷺ دغه ته ددې رکعت دراګرزلو حکم کړی دی ؟

**(۵٤) سوال** : مقتدي چې د امام سره په رکوع کې شريک شي نو ستاسو په نيزخو دده څخه فرض پاتې شو ( قرائت خلف الامام ) نو رسول الله ﷺ خپله ددې مقتدي په باره کې څه فيصله کړی ده؟

**(۵۵) سوال** : رسول الله ﷺ په يو ځای کې فرمائي چې د الحمد لله څخه بغير لمونځ نه کيږي ( لاصلوة الابفاتحة الکتاب) په بل ځای کې فرمائي چې د خطبې څخه بغير د جمعې لمونځ نه کيږي (لا جمعة الا بخطبة).
نو په دويم حديث کې خو ټول امت ستاسو په شمول دا وائي چې هرسړی دی ځانته ځانته خطبه نه لولي، بلکې د خطيب خطبه د ټولو مقتديانو لپاره کافي ده برابره خبره ده چې هغه د خطيب اوازاوري او که نه يې اوري، او برابره خبره ده چې د خطبې دلوستلو په وخت کې موجود وي او که د خطبې د ختميدلو څخه وروسته راغلي وي، نو خطيب چې خطبه ولوستله، د ټولو مقتديانو له طرفه اداء شوه، مقتدي دی يې ځانته ځانته نه لولي نو په اول حديث کې هم همدا حکم دی چې هرسړی دی ځانته ځانته الحمد لله نه وائي ، بلکې د امام الحمد لله د ټولو مقتديانو لپاره کافي ده، برابره خبره ده چې هغه د امام اوازاوري او که نه يې اوري ،د الحمد لله دلوستلو په وخت کې موجود وي او که وروسته راغلي وي او په رکوع کې شريک شوي وي .

نو سوال دا دی : چې په اول حديث کې تاسو د امام فاتحه د مقتديانو لپاره کافي نه ګڼئ! او په دوهم حديث کې د امام خطبه د مقتديانو لپاره کافي ګڼئ! حالانکې عربی الفاظ ددواړو حديثونو يو شی دی ؟ نو دا فرق

رسول الله ﷺ په کوم ځای کې کړی دی ؟ صحیح حدیث پیش کړئ ؟ چې رسول الله ﷺ فرمایلي وي چې د (لا خطبة ) او د ( لاصلوة ) په منځ کې یې فرق کړی وي ؟

**(٥٦ ) ســــوال :** پـه یو شپه او ورځ کـې اولـس ( ۱۷ ) رکعتـه لمـونځ فـرض دی غیرمقلـدین پـه شپږ ورکعتونو کې د امام پسې په اوچت اوازباندې امین وائي او په یولسو رکعتونو کې د امام پسې په پټه امین وائي، نو یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث داسې پیش کړئ چې رسول الله ﷺ په شپږ ورکعتونو کې د امام پسې جهراامین ته سنت ویلي وي او په یولسو رکعتونو کې یې د امام پسې سرا امین ته سنت ویلي وي .

**(٥٧ ) سـوال :** یـو صحیح، صریح، غیرمعـارض حدیث پیش کړئ، چې پـه پـوره درویشت کالـه دوره د نبوت کې د رسول الله ﷺ کوم صحابی صرف یوه ورځ د رسول الله ﷺ پسې په شپږ ورکعتونو کې جهرا ( په اوچت اواز ) امـین ویلـي وي او پـه یولسـو رکعتونو کې یـې سـرا ( په پټـه ) امـین ویلـي وي، یعنـې د ټولو اولسو رکعتونو حکم حدیث کې وښائی ؟

**( ٥٨ ) سوال :** یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث پیش کړئ چې په هغې کې صراحة راغلې وي، چې په پوره دیرش کاله دوره د خلافت راشده کې په زرګونو صحابه وو کې صرف یو صحابی صرف یوه ورځ په شپږ ورکعتونو کې جهراامین ویلي وي او په یو ولسو رکعتونو کې یې سرا امین ویلي وي. یعنې یوائې د شپږ ورکعتونو حال مه بیانوئ، بلکې دیولسو نورو رکعتونو حکم هم صراحة په حدیث کې وښائي .

**(٥٩) سوال :** صرف یو صحیح، صرُیح، غیرمعارض حدیث پیش کړی چې رسول الله ﷺ فرمایلي وي، چې د امام لپاره همیشه په شپږ ورکعتونو کې امین جهرا سنت دی او په یولسو رکعتونو کې سرا سنت دی ؟

**(٦٠) سوال :** یو صحیح، صریح، غیرمعـارض حدیث پیش کړئ چې کوم خلیفة راشد د خپل امامت په دوران کې صرف یوه ورځ په شپږ ورکعتونو کې امین جهرا ویلی وي او پـه یو ولسـو رکعتونو کې یې سِراً ویلی وي؟

**(٦١ ) سوال :** یو صحیح، صریح، غیرمعـارض حدیث پیش کړی چې کله اهلحدیث مقتدي چې قرائت خلف الامام کوي، پـه جماعت کې پـه داسې حال کې شریک شي، چې امـام ولا الضـالین تـه رسیدلي وي نو ایا د دې مقتدي لپاره دوه ځلې امین سنت دی یو ځلې د امام سره په اوچت اواز د خپلې فاتحې څخه مخکې

اودوهم ځلي خفية دخپلي فاتحې په اخرکي ؟اوکه صرف دامام سره دخپلې فاتحې څخه مخکې ؟اوکه صرف دخپلې فاتحې په اخرکي ؟.

**(٦٢) سوال** : يو صريح، حديث پيش کړی چې دمقتدي څخه چې کوم رکعتونه تيرشوي وي اودامام دسلام څخه وروسته يې کوي دهغه لپاره امين خفية سنت دی .

**(٦٣) سوال** :دغيرمقلدينو مشهورمناظرمستري نورحسين په خپله رساله .(امين بالجهر) ص ١٨ کې ليکي چې عبدالله بن عمرﷺ هميشه امين بالجهرکولواونوروته به يې هم امرکولوپه امين بالجهرباندی . (اوحواله يې په بخاری ورکړې ده (جلداول ص ١٠٨ ) حالانکې داباطل دروغ دي، د بخاري په دې روايت کې دجهرلفظ بالکل نشته، نودغيرمقلدينو څخه سوال کووچې تاسوخوخپلې هری خبری ته دقران اوحديث خبره وائي نورسول اللهﷺ په کوم ځای کې په دومره دروغواوتحريفونوامرکړی دی ؟

**(٦٤) ســوال**:صحابه وو اوتابعينورضوان الله عنهم چې کله داملکونه فتحه کړل اودی خلکوته يې لمونځ وروښودلو، نو امين بالجهريې ورښودلی و او که امين بالخفيه يې ورښودلی و ؟.

**(٦٥) ســوال** :په هندوستان باندې دانګريزانودتسلط نه مخکې په دی ملکونوکې دولس سوه کاله مسلمانانولمونځ کولو نو کوم يوپکې امين بالجهرويلی دي ؟

**(٦٦) سوال**: دغيرمقلدينو( وهابيانو) مشهورمؤرخ امام خان نوشهری ليکلي دی چې (مولناشافخراله ابادی اول ځلي دډهلي په جامع مسجدکې امين بالجهروويلو اودتقليدبکارت يې مات کړو)) نقوش ابوالوفا ص ۳۴ )اودادانګريزانو،دوره وه، نوستاسو امين دده په تقليدکې امين بالجهر شو اوکه امين بالشر؟.

دوهـم امـين بـالجهردانګريزانويو ملازم حـافظ محمديوسـف پنشـز(انګريـزی مـلازم)وويلـو (نقـوش ابوالوفا ص ۴۲: اودده څخه وروسته پدی مسئله کې جګړې شروع شوې، نواياداامين بـالجهردی اوکه امين بالشر؟ اودغه دامين بالشرلوستونکی ملازم بيادقاديانيت په حال کې مړشو .(اشاعت السنة ص ۱۱۴ ،ج ۲۱)

دامـين بالجهرپـه مسئله کې اولـه چيلنج بـازي اواشتهاربازي مولـوی محمدحـسين بټـالوي شـروع کـړه، محمدحـسين بټـالوي دمـرزاغلام احمـدقادياني سـره ډيرامـدادکړی وواودهغـه څخـه يـې ډيـره دُعاخـستې وه.(اخباراهلحديث امرتسر ص ۹ کالم ۱ يوديرشم جنوری ،۱۹۰۸)

بيا نورد فتنې بازارپه کې مولوی ثناء الله گرم کړو، هغه مولوی ثناء الله چې په خپله فتاوی کې يې ليکلي دي چې( زما مذهب او عمل دا دی چې د هر کلمه گوي پسې لمونځ جايزدی، شيعه وي او که قاديانی ) (کافر) .( اخبار اهلحديث ص۶ _ ۶۱۹۱۵)۱۲اپريل )

دهغه څخه وروسته ورباندې عبدالله روپړي زورنه ووهل، هغه عبدالله روپړي چې دده په باره کې مياشرف الدين (وهابی ) ليکی چې ( هغه لاعلم ،حاسد ،خودغرضه،کافرگر او د صراط مستقيم نه منحرف و )

**(۶۷) سوال :** همدغه مشهور غير مقلد مناظر عبدالله روپړي کتاب ليکلي دی، په نامه دد ( اهلحديث کې امتيازی مسائل )

ددې کتاب په شپږ او يايمه صفحه کې يې ليکلي دي چې دابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چې کله رسول الله ﷺ ( غير المغضوب عليهم ولا الضالين )ولوستلو ، نو ورپسې يې امين وويلو تردې چې داول صف صحابه وواريدلو ( رواه ابوداود وابن ماجه ). او ابن ماجه ويلي دي چې رسول الله ﷺ چې کله سورة فاتحه ختمه کړه نو امين يې وويلو تردې چې مخکې صف واوريدلو بيا مسجد کې کړنگار جوړ شو ،صاحب دنيل الاوطار ليکلي ،ي چې دا حديث دارقطني هم روايت کړی دی او اسنادته يې صحيح ويلی دی ،اوحاکم هم روايت کړی دی، او دبخاری او دمسلم په شرط يې ورته صحيح ويلي دي او بيهقي هم روايت کړی دی او حسن يې ورته ويلی دی.

## دشوکاني او عبدالله روپړي فريبونه

(۱) دابن ماجه په دې حديث کې داالفاظ هم شته چې ( فترک الناس التامين ) يعنې ټولو خلکو امين پريښودلو ، دا لفظ نه رانقلوي ، نو دا کتمان سبيل اليهود دی او که نه ؟

(۲) ددې حديث يو روای بشيربن رافع نهايت ضعيف دی ( ميزان الاعتدال ،ج ا ص ۱۴۷) دده ضعف نه بيانوي، نو دا کتمان سبيل اليهود دی او که نه ؟

(۳) ددې حديث يو راوی (ابن عم ابی هريرة ﷺ ) مجهول دی دوی دا خبره پټوی، نو دا کتمان سبيل اليهود دی او که نه ؟

(۴) په دارقطنی کې دمسجد د کړنگهار حديث بالکل نه شته ،نو سند ته به يې څرنگه صحيح ويلي وي ؟.

(۵) په مستدرک حاکم کې هم نشته، نو څرنگه به يې داويلي وي چې دادبخاری او د مسلم په شرط صحيح دی؟

(٦) په بهیقی کې هم دا حدیث نشته، نو په یو حدیث کې درې دروغ او درې دوهکې قران دی او که حدیث؟

**(٦٨) سوال :** غیرمقلدین دا مین بالجهر لپاره یو روایت د وائل بن حجر ؓ پیش کوي، دابوداود شریف څخه. په دې روایت کې سره د دې چې ضعیف دی، ځکه چې یو روای یې سفیان دغیرمقلدینو په نیز مدلس دی ،بل علاء بن صالح شیعه دي بل محمد بن کثیر ضعیف دی ،او د دې څخه وروسته خپله وائل بن حجر ؓ وضاحت کوي چې دا امین یې په ټول عمر کې درې ځلې وویلو مجمع الزوایـد ،ج ۲ص ۸۷ او ځکه چې (ما اراه الایعلمنا) یعني دادرې ځله امین صرف د لمانځه د ښودلو لپاره و، لکه د ماشومانو د تعلیم لپاره چې استاذ په جهر لمونځ کوي .التعلیق الحسن ،ج ۱ص ۹۲) کتاب الکنی والاسماء ص۱۹٦ ج ۱ نو دوائل بن حجر ؓ دا فیصله صحیح ده او که غلطه ده ؟ په جواب کې صحیح حدیث پیش کړئ .

**(٦٩) سوال:** غیرمقلدین بل دلیل دا مین بالجهر لپاره حدیث دام الحصین ؓ پیش کوي. حالانکې د دې حدیث په سند کې نضربن شمیل متعصب دی ،هارون الاعور غالي شیعه دی ،اسماعیل بن مسلم ضعیف دی ،ابن ام الحصین مجهول دی (تهذیب التهذیب ،ج ۱ص ۳۲۲) نو غیرمقلدین د دې حدیث صحت د قران او حدیث څخه څرنګه ثابتوي ؟

**(۷۰) سوال :** رسول الله ﷺ چې د خپلې مبارکې زندګي اخري لمونځ د حضرت ابوبکرصدیق ؓ پسې وکړو په هغې کې یې امین جهرا ویلی وو اکه سرا ؟.

**(۷۱) سوال :** که امام د ظهر او یا د عصر په لمانځه کې فاتحه او سورت په اوچت اواز ولوستلو، لمونځ یې فاسد دی او که مکروه ؟.

**(۷۲) سوال :** که امام د مغرب ،د عشاء ،او د فجر په لمونځونو کې فاتحه او سورة سرا ولوستلو لمونځ یې فاسد دی که مکروه؟

**(۷۳) سوال :** که یو سړی اول قل هو الله احد او بیا فاتحه ولوستله نو سجده سهوه پرې واجبیږي او که نه؟.

**(۷٤) سوال :** د سورة فاتحې څخه بعد سورة لوستل فرض دي او که واجب دي او که سنت ؟صراحة یې په حدیث کې وښائي .

**(۷۵) سوال :**د قرائت تعریف په قران او په حدیث کې څرنګه شوی دی؟ او همدارنګې د جهر او د سِر تعریف څرنګه شوی دی؟

**(۷٦) سـوال** : پـه خلافـت راشـده ،خلافـت أمـوی ، خـلاف عباسـی ،خـوارزمي ،سلجوقی اوترکی، خلافتونو کې په مسجدنبوی کې امین بالجهر لوستل کیده او که امین بالسر؟

**(۷۷) سوال** :د سهار په سنتونو کې قرائت جهراً سنت دی او که سِراً ؟ صحیح صریح حدیث پیش کړئ !

**(۷۸) سوال** : دسهار فرض چې یو اځې کوي نو قرائت جهرا سنت دی او که سرا ؟صریح حکم د رسول الله ﷺ پیش کړئ.

**(۷۹) سـوال**: د رسول الله ﷺ څخه په بعضې وختونو کې د بعضې خاصو سورتونو لوستل ثابت دي، نو ایا دغې سورتونو لوستل سنت دی او که ندی ؟او که چا دې سورتونو څخه علاوه بل سورة ولوستلو لمونځ یې خلاف سنت دی او که نه دی؟ په جواب کې صحیح او صریح حدیث پیش کړئ .

**(۸۰) سوال** : په لمانځه کې په امام باندې درې سکتات :یوه د فاتحې څخه مخکې، یوه د فاتحې څخه وروسته ،اویوه د سورة څخه بعد واجب ده او که نه ده؟ او کوم امام چې دا سکتات ونکړي د هغه پسې لمونځ خلاف سنت دی او که نه دی ؟.

**(۸۱) سوال** : رکوع ته د تللو څخه مخکې رفع الیدین سنت مؤکد دی ؟ او که سنت غیر مؤکد ؟ په حدیث کې یې څه حکم دی؟

**(۸۲) سوال** : کوم سړی چې رفع الیدین ونه کړي لمونځ یې وشو او که نه؟ په صریح حدیث کې یې حکم بیان کړی چې رسول الله ﷺ ویلي وي چې یاشوی دی اویاندی شوی .

**(۸۳) سوال**: غیرمقلدین وایي چې د عشره مبشره وو څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د خپل مبارک عمر تر پایه پورې رفع الیدین کړی دی. نو د عشره مبشره وو دا روایتونه په صحیح سند د توثیق د روایتونو سره پیش کړئ !

**(۸٤) سـوال** : غیرمقلدین وائي چې د رفع الیدین لپاره څلور سوه احادیث او اثار دي د دې څلور سوه صحابه وونو مونه څه دی ؟

**(۸۵) سوال** : یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث پیش کړی چې په هغې کې راغلي دي چې د امام لپاره رکوع ته د تللو په وخت کې الله اکبر په اوچت اواز سُنت دی او د مقتدي لپاره په پټه ویل سنت دي .

**(۸٦) سوال :** يو حديث صحيح صريحه غير معارضه پيش کړی چې په هغې کې صراحةً راغلي وي چې په رکوع کې سبحان ربی العظيم سراً ويل سُنت دي

**(۸۷) سوال :** د رسول الله ﷺ څخه په رکوع کې او ه قسمه تسبيحات روايت شوي دي، په دوی کې يې مواظبت په کوم يو کړی دی؟ صريح حديث پيش کړئ !

**(۸۸) سوال:** ايا رسول الله ﷺ د ( فسبح باسم ربک العظيم ) د نزول څخه وروسته کومه تسبيح ويلې ده؟ ايا د سبحان ربی العظيم او سبحان ربی الاعلی څخه بغيرې بله کومه تسبيح ويلی ده ؟

**( ۸۹ ) سوال:** که کوم سړی سهواً په رکوع کې سبحان ربی الاعلی ووايي سجده سهوه ورباندې لازميږي اوکه نه ؟

**( ۹۰ ) سوال:** که کوم سړی په رکوع کې په اوچت اواز باندې سبحان ربی العظيم ووائي لمونځ يې باطل دی که مکروه ؟

**( ۹۱ ) سوال :** د رکوع څخه وروسته په قومه کې د لاسونو ترل سنت دي اوکه زوړندنيول ؟ صحيح صريح حديث پيش کړئ !

**( ۹۲ ) سوال :** يو صحيح حديث پيش کړئ چې په هغې کې راغلي وي چې د مقتدي لپاره د رکوع څخه وروسته د قومې ذکر سِراً سُنت دی !

**( ۹۳ ) ســوال:** يو صحيح، صريح حديث پيش کړئ چې د منفرد لپاره د رکوع څخه وروسته د قومې ذکر سرا سنت دی ؟

**( ۹٤ ) سوال:** که کوم منفرد يا مقتدي د قومې ذکر جهراً ولولي، لمونځ يې مکروه دی که باطل دی اوکه صحيح ؟

**( ۹۵ ) سوال:** که کوم لمونځ کونکی په رکوع يا په قومه کې هيڅ ونه لولي لمونځ يې باطل دی اوکه مکروه ؟ صحيح صريح حديث پيش کړئ.

**(۹٦) سوال:** په وِترو کې د دُعا په شان لاسونه پورته کول او قنوت لوستل، بيا يې په مخ کش کول او سجدې ته تلل، په کوم حديث کې دي ؟

**(۹۷) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ چې په هغې کې صراحةً راغلي وي چې سجدې ته د تللو په وخت کې الله اکبر ويل د امام لپاره جهراً او د مقتدي لپاره سراً سنت دي.

**(۹۸) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ چې په هغې کې صراحةً راغلي وي چې سجدې ته د تللو او د سجدې څخه د پورته کېدلو لپاره رفع اليدين ته يې ممنوع او حرام ويلي وي.

**(۹۹) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ، چې د سجدې تسبيحاتو ته يې سراً سنت ويلي وي.

**(۱۰۰) سوال:** يو حديث پيش کړئ چې د سجدې تسبيحاتو ته يې جهراً باطل يا مکروه ويلي وي

**(۱۰۱) سوال:** د دواړو سجدو په مينځ کې دعا جهراً سنت ده او که سراً؟ صحيح او صريح حديث پيش کړئ!

**(۱۰۲) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ چې دې دعا ته يې فرض يا سُنت يا واجب او يا نفل ويلي وي!

**(۱۰۳) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ چې د دې دعا ترک ته يې باطل، يا مکروه، يا حرام ويلي وي؟

**(۱۰٤) سوال:** يو صحيح، صريح غير معارض حديث پيش کړئ چې د دې دعا په ترک باندې يې د سجده سهوی د لزوم يا د عدم لزوم حکم کړی وي.

**(۱۰۵) سوال:** ايا په کوم صحيح، صريح حديث کې شته، چې د دواړو سجدو په مينځ کې په ګوته باندې اشاره کول منع او حرام دي؟

**(۱۰٦) سوال:** د مسند احمد په يو حديث کې د دې اشارې ذکر دی نو غير مقلدين ولې ورته د خپل عادت مطابق سنت نه وائي؟ او ولې ور باندې عمل نه کوي؟

**(۱۰۷) سوال:** ايا په کوم صحيح، صريح حديث کې شته چې جلسه د استراحة سنت مؤکده ده؟

**(۱۰۸) سوال:** ايا په کوم صحيح، صريح حديث کې دا فيصله شوې ده چې د جلسې د استراحت د کولو حديث قوي دی او د نه کولو حديث ضعيفه دی؟

**(۱۰۹) سوال :** امام شعبي رحمه الله چې د سوونو صحابه وو سره يې ملاقات شوى دى؛ فرمائي چې حضرت عمر ﷺ او حضرت علي ﷺ جلسه د استراحت نه كوله. (ابن ابى شيبه ،ج ۱ص ۳۹۴ نصب الرايه ج ۱ص ۳۸۹). نو ايا دې خلفا راشيدينو لمونځ دسنتو څخه مخالف وو؟.

**(۱۱۰) سوال :** حضرت نعمان بن عياش رحمه الله فرمائي چې ما ډير صحابه ليدلي چې جلسه د استراحت يې نه كوله. (ابن ابى شيبه/ج ۱/ص ۳۹۴)

سوال : نو ايا دى ټولو صحابه وو خلاف سنت لمونځ كولو؟

**(۱۱۱) سوال :** حضرت ابو قلابه رحمه الله فرمائي چې ما د بودا عمرو بن سلمه رحمه الله څخه بغير بل هيڅ څوک په جلسه د استراحت ندى ليدلي. (بخارى ،ج ۱ص ۱۱۳)

نو ايا ددې ټولو صحابه وو ، تابعينو او تبع تابعينو لمونځ د سنتو څخه مخالف وو؟

**(۱۱۲) سوال :** ايا په كوم صحيح، صريح غير معارض حديث كې شته چې دوهم ركعت ته د پورته كيدلو په وقت كې دامام لپاره جهراً الله اكبر سنت دى او د مقتدي او د منفرد لپاره سراً سنت دى؟

**(۱۱۳) سوال :** په كوم صحيح، صريح، غير معارض حديث كې راغلي دي چې دوهم ركعت ته د پورته كيدلو په وقت كې رفع اليدين كول منع او حرام دي؟

**(۱۱٤) سوال :** په كوم حديث صحيحه صريحه كې شته چې په دوهم ركعت كې د ثناء لوستل منع او حرام دي او كه چا ولوستله لمونځ يې باطل دي او يا مكروه دى؟

**(۱۱۵) سوال :** ددوهم ركعت څخه وروستنۍ قعده فرض ده كه واجب ده او كه سنت ده او كه نفل؟ صريح حديث پيش كړئ؟

**(۱۱٦ ) سوال :** په دې قعده كې تشهد لوستل فرض دي او كه واجب دي او كه سنت دي او كه نفل؟ رسول الله ﷺ ورته څه ويلي دي؟

**(۱۱۷ ) سوال :** كه يو سړى په قعده كې سهوه شي او د التحيات پرځاى الحمدلله ووائي لمونځ يې باطل دى او كه مكروه؟

**(۱۱۸) سوال :** كه څوک تشهد په اوچت اواز ولولي لمونځ يې باطل دى او كه مكروه؟

باغیان دي او دباغیانو د سزا مستحق دي. دانگریزي حکومت په خلاف جهاد کول د سنتو څخه مخالفت دی او دایمان د موحدینو څخه مخالف دی. دانگریزي حکومت په خلاف اسلحه را اخیستل د ایمان او د اسلام څخه مخالف دی. (ترجمان وهابیه، ص ۱۶)

خلاصه دا چې د تقلید شخصي د پریښودلو اصل سبب دانگریزانو په خلاف د جهاد مخالفت و او جهاد ته حرام ویل و، مسلمانان په فروعي اختلافاتو کې مصروفول و، د امام اعظم رحمه الله د تقلید شخصي په حرمت نه له دوی سره کوم قراني ایت وو او نه ورسره کوم حدیث و او نه ورسره د امت اجماع وه. بلکې د دوی سره صرف او صرف یو دلیل و چې هغه د ملکې وکټورېٔ اشتهار و.

**(۱۱) په جرم اعتراف:** مولوی محمد مبارک غیر مقلد چې د مولوی عطاء الله حنیف خاص شاگرد و؛ لیکي چې: د جماعت غرباء اهلحدیث بنیاد د محدثینو د مخالفت لپاره ایښودل شوی دی او یواځې دغه مقصدیې نه و، لکې د سید احمد شهید رحمه الله د تحریک مجاهدین مخالفت به یې کولو او انگریزان به یې خوشحالول. نواب صدیق حسن خان لیکي چې:

(۱۲) د مذهب تقلید واجب ندی او اقرار او قول پوره کول او په خپل عهد او میثاق قائم کیدل، د ټولو فرضونو څخه غټ فرض دی او د حاکمانو اطاعت او د رئیسانو انقیاد د ټولو واجبو څخه غټ واجب دی. (ترجمان وهابیه، ص ۲۹)

یعنې تقلید نه دی واجب، بلکې دانگریزانو اطاعت غټ واجب دی.

(۱۳) ټول اهل سنت والجماعت امام ابوحنیفه رحمه الله ته امام اعظم وایي حنفي وي، که شافعي وي او که مالکي وي او که حنبلي وي؛ د ټولو په نزد امام اعظم دی. (تذکرة الحفاظ ذهبی ج۲ ص ۱۵۸) فقیه الملة والاسلام دی (ذهبی ص ۸۴ خلاصه خزرجی ص ۴۴۵)

احد ایمة الاسلام والسادة الاعلام واحدالایمة الاربعة اصحاب المذاهب المطبوعة ( البدایه والنهایه ج ۱۰ص ۱۰۷ ) دی

لیکن د غیر مقلدینو په نزد امام ابوحنیفه رحمه الله ته امام اعظم ویل شرک او کفر دی، ځکه چې د دوی د ټول جماعت له طرفه د دې القابو ادرس بدل و، لکه چې د دوی د یو خط څخه ظاهرېږي چې ملکې وکټوري ته یې لیکلي وو.

(۱۴) مضمون یې داسې دی چې: په حضور د فیض گنجور کوئین ملکه عالیه معظمه وکټوریه دي گریټ قیصره هند بارک الله فی سلطنتها. مونږ ممبران د اهلحدیث د جماعت د خپل ټول جماعت له طرفه ملکې عالیې معظمې ته د جوبلي د جشن د زړه له کومې مبارکي وایو.

ستاسو په سلطنت کې چې کومه مذهبي ازادي راغلې ده د هغې څخه زمونږ جماعت ته ګټه برخه په نصیب شوی ده، ځکه مذهبي ازادي زمونږ جماعت ته حاصله شوي ده په خلاف د نورو اسلامي فرقو، له دی وجهې ستاسو د سلطنت په استحکام باندې د اجماعت ډیر خوشحاله دی او دوی د زړه څخه د مبارکې چیغې په ډیر زور سره در ته وایي (اشاعة السنة ج ۹ ص ۲۰٦ شماره نمبر ۷).

(۱۵) مولنا عبد الخالق صاحب چې د دې فرقې د شیخ الکل میا نذیر حسین خُسر دی لیکلي دي چې: د دې نوې فرقې باني مباني عبد الحق دی، چې دیو څو ورځو څخه په بنارس کې اوسیدو، حضرت امیر المؤمنین سید احمد شهید د بعضې غلطو حرکاتو په وجه د خپل جماعت څخه خارج کړو او د حرمینو د علماو څخه یې د ده د قتل فتوی راوړه، مګر په څه چل د هغه څخه وتښتید لو او بچ شو. (الحیاة بعد الممات ص ۲۲۸) نتائج التقلید ص ۳ تنبیه المضالین ص ۱۳)

(۱۶) بیا لیکي چې: د ام المومنین رضی الله عنها ګستاخ مولوی عبد الحق بنارسي باني غیر مقلدیت په ښکاره ویل چې عایشه رضی الله تعالی عنها د حضرت علی ﷺ سره جنګیدلې ده، که توبه یې نه وي ایستلې، نو مرتده مره شوی ده (معاذ الله)

او دا به یې هم ویل چې د صحابه وو رضی الله عنهم علم زما د علم څخه ډیر کم و، ځکه چې په هغوی کې د هریو پنځه پنځه احادیث یاد و او ماته د دوی ټول احادیث یاد دي. (کشف الحجاب ص ۴۲) مصنفه قاری عبد الرحمن صاحب شاګرد شاه اسحق صاحب.

## (۱۷) بل اعتراف

**نواب صدیق حسن خان غیرمقلد لیکلي چې:** په دې زمانه کې یوه ریاکاره او شهرت پسنده فرقه راپیدا شوې ده، چې د هر قسم خامیو او نقصانونو باوجود د ځان لپاره د قران او د حدیث د علم او په هغې باندې د عمل دعوه کوي، حالانکې د علم او د عمل او د عرفان سره د دې فرقې د لرې څخه هم تعلق نشته، دا خلک د علومو عالیه وو او آلیه وو د واړو څخه بالکل جاهل دي (الحطه ص ۵۳)

او دا خلک د معاملاتو په مسایلو کې په حدیثو کې د پوهې څخه بالکل خالي دي او د اهل سنتو په طریقه د یوې مسئلې استنباط هم نه شي کولی، دوی په حدیث باندې د عمل په ځای د ژبې په چالاکي او د سنتو د اتباع په ځای په شیطاني وسوسو اکتفاء کوي او دې ته عین دین وایي، دا خلک د اسلام د حلاوت څخه خالي الذهن دي او د نورو مسلمانانو په نسبت غټ تنګ زړي دي او د مسلمانانو په خلاف ډیر سخت زړي دي. (الحطه ص ۱۵۱)

يقولون عن قول خيرالبرية وهم شرالبرية ( الحطه ص ١٥٦)

په الله ﷺ مې دې قسم وي چې څومره د تعجب خبره ده؟ دا خلک ځانونو ته خالص موحدين وايي او نورو خلکو ته بدعتيان او مشرکان وايي. حالانکه دوی د ټولو نه زيات غالي او د دين په باره کې غټ متعصب دي. فما هذا دين ان هذا الا فتنة في الارض و فساد کبير. ( الحطه ص١٥٤ وص ١٥٦)

## (١٨) بل اعتراف:

د غيرمقلدينو مشهور محدث او مؤرخ شاهجهان پورې په (١٩٠٠) عيسوي کې يو کتاب وليکه په نامه د (الارشاد الی سبيل الرشاد) په هغې کې يې ليکلي دي چې :

دا يو څه زماني څخه په هندوستان کې يوه نابلده فرقه راپيدا شوې ده ، چې خلک ورسره بالکل نا اشنا دي، مخکې به ډير لږ د دې خيال والا خلک وو. د دوی نوم اوس اوس او ريدل کيږي. دوی ځان ته اهلحديث يا موحد يا محمدی وايي، مګر مخالفين ورته وهابيان او غيرمقلدين او لامذهبه وايي. چونکې دا خلک رکوع ته د تللو په وخت کې او د رکوع څخه د سر او چتولو په وخت کې لاسونه جګوي، لکه څرنګه يې چې په تکبير تحريمه کې جګوي، له دې وجهې څخه دوی ته په بنګال کې (رفع اليديني ) هم ويل کيږي. ( الارشادالی سبيل الرشادص ٣ص مع حاشيه)

## ( وهابي )

چونکې په هغه زمانه کې د عثماني اسلامي خلافت په خلاف د يهودو او نصاراوو په سازش باندې د محمد بن عبدالوهاب جماعت په عربو کې د قتل او غارت بازار ګرم کړی و ، ډير مزارونه يې وران کړل، حتی چې سعود د رسول الله ﷺ د روضې مبارکې د ورانولو قصد هم وکړو ، مګر بيا يې ورانه نه کړله او په ابتداء کې يې اعلان وکړو چې د بيت الله شريف حج ته به د وهابيانو څخه سوی بل څوک نه راځي ، عثمانيانو يې د حج څخه منع کړل او ترډيرو وختو پورې خلک د حج څخه محروم وو او د شام او د عربو ډيرو خلکو ته حج په نصيب نه شو. ( ترجمان وهابيه ص ٣٦ ) او دوی د عربو خلکو خصوصاً د حرمينو او سيدونکو ته ډير تکليفونه ورسول. (ترجمان وهابيه ص ٤٠ )

له دې وجهې عالم اسلام د دوی څخه ډير نفرت کولو. مولوی فضل رسول بديوانې د خپلو مخالفينو د بدنامولو لپاره مجاهدينو ته وهابيان ويل. ( ترجمان وهابيه ،ص ٤٤ص ٤٧ )

نو غير مقلدينو سره فکر پيدا شو چې وهابيان مجاهدينو ته او د حکومت برطانيه باغيانو ته وايي، نو د دې لپاره چې انګريزان ورباندې شکمن نه شي، نو فوراً يې د انګريزانو د خوشحالولو لپاره کتابونه وليکل چې: يو يې په نامه د (ترجمان وهابيه ) و. په هغې کې په يو بل ځای کې ليکلي دي چې :

**(۱۹) مجاهدین :** مجاهدین حنفیان دي، چاوریدلي دي چې ترننه پورې کوم موحد، متبع سنت، په قران او په حدیث باندې چلیدونکي؛ بې وفایي کړې ده. اود اقرار د پریښودو مرتکب شوی دی، یابغاوت ته اماده شوی دی، کومو خلکو چې په زمانه د غدر کې شر او فساد کولو اود انګریزي دولت د حاکمانو سره یې عناد کولو؛ هغه ټول حنفیان وو. (ترجمان وهابیه ص ۲۵)

(۲۰) کله چې انګریزانو دې زره علماوو ته اعدام ورکړو، په لکونو عوام یې اعدام او قتل کړل او تراوو ورځوپورې د قتل او غارت بازار ګرم و، په زرګونو کورنی جلاوطنه شوې، نو ددې مظلومانو په باره کې نواب صدیق حسن خان لیکي چې: (اود حاکمانو اطاعت او رئیسانو ته انقیاد په ملت واجب دی اود ټولو واجباتو څخه غټ واجب دی. (ترجمان وهابیه ص ۷)

**(۲۱) متفقه فتوی:** جهاد او مذهبي جنګ په مقابله د انګریزي دولت کې هغه دولت چې ټولو ته یې مذهبي ازادي ورکړې ده، د شریعت له رویه ممنوع او حرام دی او کومو خلکو چې د انګریزي دولت په خلاف اسلحه را اخیستې ده او مذهبی جهاد کوي؛ داخلک ټول باغیان دي اود باغیانو د سزا مستحق دي. په دې فتوی باندې د ټولو غیرمقلدینو متفقه طورباندې دستخط دی. (ترجمان وهابیه ص ٦۱)

د انګریزي دولت په خلاف اسلحه را اخیستل د اسلام او د ایمان خلاف عمل دی. (ترجمان وهابیه، ص ۱۲۱)

## وکیل اهلحدیث هند محمدحسین بټالوي

(۲۲): د انګریزي دولت په خلاف مذهبي جهاد هیڅکله نه دی جایز. (الاقتصاد فی مسایل الجهاد، ص ۱۹).

(۲۳) : هندوستان سره له دې چې د عیسایي سلطنت په قبضه کې دی؛ دارالاسلام دی، په دې ملک باندې هیڅ بادشاه ته حمله نه ده جایزه، دعربو وي او که دعجمو، د سوډان مهدی وي او که خپله حضرت سلطان شاه د ایران وي او که امیر د خراسان وي. (الاقتصاد ص ۲۵)

(۲۴): دغه عیسایي حکومت سره غدر کول او په ځان او مال سره وربانډې تعرض کول حرام دی (الاقتصاد ص ۳۴).

(۲۵) دا هغه خلک دي چې تقریراً او تحریراً غایب او حاضر د انګریزي حکومت وفاداران دي او ددوی په خدمت او معاونت کې سرګرم دي. (الاقتصاد ص ۴۸)

(۲۶) د انګریزي دولت په خلاف جنګیدل او د جنګیدونکو سره هر قسم امداد کول صراحةً غدر او حرام دي. (الاقتصاد ص ۴۹).

(۲۷): له دوی سره جنګیدل شرعي جهاد نه دی، بلکې عناد او فساد دی، څوک چې د سنه ۱۸۵۷ په فساد کې شریک شوي دي، هغه ګناهګاران دي، مفسدین او باغیان او بدکرداره دي، په دوی کې اکثر عوام کالانعام دي او کوم چې یکې خواص او علماء دي هغوی هم د اصلي علومو د دین څخه ناخبره دي، پوهان علماء هیڅکله په دې فساد کې نه شریکیږي. (الا قتصاد ص ۴۹)

(۲۸): هغه خلک چې ځانونو ته مجاهدین وایي په حرام مرګ باندې مره کیږي، د جنتونو د خوشحالیو څخه محروم وي، داسې فسادونو ته جهاد ویل او په دې کې د شهادت په شوق شریکیدل سراسر جهالت او حماقت دی. (الا قتصاد ص ۷۱)

(۲۹): مشهور غیر مقلد عالم مولوي مسعود عالم ندوي لیکلي دي چې: د معتبرو او ثقه راویانو بیان دي چې محمد حسین بټالوي ته د دې رسالې (الاقتصاد) په عوض کې د انګریزانو له خوا دیرې ځمکې ورکړل شوي. (پهلی اسلامی تحریک ۲۹)

(۳۰): یو بل غیر مقلد عالم مولوي عبدالمجید سوهدروي لیکلي دي چې: مولوی حسین بټالوي د اشاعة السنة په ذریعه د اهلحدیثو دیر خدمت وکړو او د وهابي نوم دده په کوششونو سره په سرکاري دفترونو او کاغذونو کې منسوخ شو او دا جماعت یې د اهلحدیثو په نوم نامداره کړو، دده د انګریزي حکومت هم پوره خدمت وکړو او په انعام کې ورته دیر جائداد ونه هم په لاس ورغلل. (سیرت ثنائي ص ۳۷۲)

(۳۱): د هغې عریضې متن چې دوی انګریزي دولت ته لیکلې وه داسې دی چې: په خدمت د جناب سیکرټري ګورنمنټ! مونږ ستاسو په خدمت کې د لاندې لیکو د اجازت او معافي غوښتونکي یو. په سنه ۱۸۸٦ء کې مونږ خپله میاشتنی رساله اشاعة السنة شائع کړه، په هغې کې مونږ د دې خبرې اظهار کړي و چې د وهابي لفظ عموماً د باغي او د نمک حرام په معنا کې استعمالیږي، لهذا د دې لفظ استعمال د غې د لې ته چې اهلحدیث ورته وایي او همیشه د انګریزي حکومت نمک حلال او خیرخواهان دي. او دا خبره بیا بیا ثابته شوې هم ده او سرکاري خط او کتابت کې منلی شوې ده، مونږ په پوره ادب او انکساري سره ګورنمنټ ته درخواست کوو چې هغوی په سرکاري طور سره دا د وهابي لفظ منسوخ کړي او د دې لفظ د ممانعت حکم نافذ کړي او مونږ د اهلحدیثو په نوم سره مخاطب کړي.

په دې عریضه د ټولو صوبو د اهلحدیثو دستخطونه ثبت دي. [اشاعة السنة ص ۲۴ شماره نمبر ۲].

بسم الله الرحمن الرحيم

## دحرمینو د علماوو او د غیرمقلدینو سخت اختلاف

| نمبر | دمکې معظمې اودمدينې منورې دخلکو نظريه | نمبر | د هند، پاک، افغان دغير مقلدينو (نظريه) |
|---|---|---|---|
| ۱ | دمکـــې اومـــدينې خلـــق د صـــحابه ﷺ کرامو داجمـاع او دامـت داجمـاع قايـل دی. (۱) | ۱ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين دصحابه کرامو داجماع او د امت داجماع نه منکردی. (۲) |
| ۲ | دمکې اومدينې خلق دقياس شرعی قائـل دی. (۳) | ۲ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دقياس شرعی نه منکردی. (۴) |
| ۳ | دمکې اودمدينې دخلکو په نزد هر يوکس ته داجتهاد حق ندې حاصل. (۵) | ۳ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدين) په نزد هرعالم او جاهـل تـه داجتهـاد اودتحقيـق کولـو حق حاصل دی. (٦) |
| ۴ | دمکې اومـدينې دخلکـو پـه نظر کې دغيـر مجتهـد دپـاره اجتهـاد حـرام اوتقليـد واجب دی. (۷) | ۴ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدينو ) په نزد دغير مجتهـد دپـاره هـم. تقليـد کـول حـرام او اجتهاد کول واجب دی. (۸) |

۱ - مکتوب الشيخ محمدبن عبدالله السبيل بحواله شرعی فيصلې ٦۴۸ ،تاريخ رهابيت حقائق کې ائني مين ص ص ۱۷۱.

۲ - طريق محمدی ص ۱۸۱، عرف الجادی ص ۱۱۱، آپی عقيده سيکهی ص ۲۷۳

۳ - فتاوی ابن تيميه ج ۱۹ ص ۷٦۲. بحواله شرعی فيصلې.

٤ - معيارالحق ص ۷۹،۱۳۱ هدية المهدی ص ۸۲، عرف الجادی ص ۳، عقيده مسلم ص ۴۹، فتاوی ستاريه ج ۱ ص ۱۷۸.

۵ - شرعی فيصلې ۱۳۴، رهابيت حقائق کې آئينی مين ص ۹۸.

٦ - آپی عقيده سيکهی ص ۲۵۳.

۷ - شرعی فيصلې ص ۱۵۷

۸ - مجوعه رسائل بهاولپور ص ۱۹ تا ۲۳، عقيده مسلم ازگوند لوی ص ٦۸، دين مين تقليد کا مسئله از زبيرعلی زئی، آپی عقيده سيکهی ص ۲۹۰.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵ | دمکې او مدينې بعضې خلق دامام احمدبن حنبل او بعضې نورونورو مذاهبو ثلاثه وو مقلدين دی.(۹) | ۵ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدينو) په نزد دهر يو امام تقليد حرام او شرک دی. (۱۰) |
| ٦ | دمکې او دمدينې دخلکو په نزد ټول مقلدين احناف، شوافع مالکيان، حنبليان اهلسنت والجماعت فرقه ناجيه دی. (۱۱) | ٦ | فرقه اهل حديث (غير مقلدينو) په نزد دالله پاک دلوئ جنت مالکان صرف (اهل حديث) دی باقی ټول. بدعتيان مشرکان دي |
| ۷ | د مکې او دمدينې والا دفقهې قائل دی.(۱۲) | ۷ | فرقه اهل حديث( غيرمقلدين) دفقهې نه منکردی. (۱۳) |
| ۸ | په مکې او مدينې کې د فقهې نظام موجود دې. (۱۴) | ۸ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دفقهې نظام دکفر برابر گڼري.(۱۵) |
| ۹ | دمکې او مدينې دخلکو به نزد دپيغمبر ﷺ دسنتو پشان دخلفائې راشدينو سنت هم ددين حصه ده. | ۹ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دخلفائې راشدينو دسنت نه منکر دی.(۱٦) |
| ۱۰ | دمکې او مدينې خلک د پيغمبر ﷺ صحابهٔ دحق معيار گڼري. | ۱۰ | فرقه اهل حديث ( غير مقلدين) صحابه کرام معيار دحق نه مني او ددې نه منکردی. (۱۷) |
| ۱۱ | دمکې او مدينې خلق د ايصال ثواب قائل | ۱۱ | فرقه اهل حديث ( غير مقلد ين) دايصال ثواب |

۹ - سيرت شيخ محمدبن عبدالوهاب ص ٥٦ ،مکتوب الشيخ محمدبن عبدالله السبيل بحواله شرعی فيصل ص ۲۱۷، تاريخ وهابيت حقائق کې آيينی مين ص ۹۸.

۱۰ - الظفرالمبين ص ۱۷، عقيده مسلم ازگوندلوی، طريق محمدی ص ۱۸۷.

۱۱ - شرعی فيصل ص ٦٥۳، تاريخ وهابيت حقائق کې آينې مين ص ۹۷.

۱۲ - شرعی فيصل ص ۳۲۰،تاريخ وهابيت حقائق کې آينی مين ص ٦۷،۹۸،۱۷۴.

۱۳ - ترجمان وهابيه ص ۲۴، عقيده مسلم ص ۴۷ برفقه کې معنی کې تحريف کردی.

۱٤ - ترجمان وهابيه ص ۳۲۲، تاريخ وهابيت ص ٦۷.

۱۵ - التحقيق فی جواب التقليد.

۱٦ - بدورالاهله ج ۱ ص ۲۸، عرف الجادی ص ۱۰۱، ۲۰۷، فتاوی نذيريه ج ۲ ص ۱۹٦، سيرت ثنائی ص ۱۹٦.

۱۷ طريق محمدی ص ۸۷، فتاوی ثنائيه ج ۲ ص ۲۵۲، فتاوی ستاريه ج ۲ ص ٦٦.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | دی. (۱۸) | | نه منکر دی. (۱۹) |
| ۱۲ | دمکې اومدینې دخلکو په نزد نبي ﷺ په قبر مبارک کې ژوندی دی. او د خلکو صلوة او سلام أوري. (۲۰) | ۱۲ | فرقه اهل حدیث (غیر مقلدین) دحیاة النبی ﷺ نه منکر دی او څوک چې دسماع الموتی قائل دی هغوئی ته مشرکان وائی. (۲۱) |
| ۱۳ | دمکې اومدینې دخلکو په نزد دپیغمبر اقدس ﷺ د روضې مبارکې حفاظت او خدمت ضروری دی. | ۱۳ | دفرقه اهل حدیث (غیر مقلدینو) په نزد دنبی کریم روضه شرک او بدعت دی. او ددې روضې ورانول واجب دی. (۲۲) |
| ۱۴ | دمکې اومدینې دخلقو په نزد په یو مجلس کې ورکړی شوی درې (۳) طلاقونه به هم درې شمیرلی کیږي. (۲۳) | ۱٤ | فرقه اهل حدیث (غیر مقلدین) په یو مجلس کې درې طلاقه هم یو شماری او ښځه دخاوند دپاره حلاله گنړی. (۲۴) |
| ۱۵ | د مکې اومدینې خلک د درې طلاقو نه پس دشرعی حلالې قائل دی. | ۱۵ | فرقه اهل حدیث (غیر مقلدین) ددرې طلاقو نه پس دشرعی حلالې نه منکر دی (۲۵) |
| ۱٦ | دمکې اومدینې خلق سرتور سرمونځ نه کوي او په بازار کې هم سرتور سرنه گرزی. (۲٦) | ۱٦ | فرقه اهل حدیث (غیر مقلدین) سرتور نمونځ کوي او سنت ئې هم گنړی. (۲۷) |
| ۱۷ | دمکې اومدینې والا په لمانځه کې دنامه دپاسه یادنامه دلاندې لاس تړی. او هیڅ یو ته | ۱۷ | فرقه اهل حدیث (غیر مقلدین) په لمانځه کې لاسونه په سینه تړی. او خپل عمل سنت گنړی، |

۱۸ -تاریخ وهابیت حقائق کې آینې مین.

۱۹ - ترجمان وهابیه ص ۱٦۲.

۲۰ - تاریخ وهابیت ص ۹۰، ۱۴۱، فتاوی ابن تیمیه ج ۱۸ ص ۳۴۲.

۲۱ - فتاوی ثنائیه ج ۱ ص ۱۰۷، عقیده مسلم ازگوندلوی ص ۳۵۵ ملخصا، مجموعه رسائل بهاولپور ص ۱۰۸.

۲۲ - عرف الجادی ٦۰، الروضة الندیه ج ۱ ص ۱۷۸، یه مزاریه میلی ص ۱٦.

۲۳ - مجله البحوث الاسلامیه.

۲٤ - فتاوی ثنائیه ج ۲ ص ۲۱۵،۵ فتاوی اهل حدیث ج ۲ ص ۵۰۵، اهل حدیث کامذهب ص ۹۵، تنویرالافاق فی مسئلة الطلاق.

۲۵ - حلاله کی چهری.

۲٦ مجله البحوث الاسلامیه.

۲۷ - محمدی نماز ص ۱۷۲ ۱۷۳.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | خلاف سُنّت نه وايي. | | او دنامه دلاندې لاسونه تړل خلاف سنت او بې کاره عمل ګڼي. (۲۸) |
| ۱۸ | دمکې او دمدينې امامان دسحر ماښام او ماخستن په لمانځه کې دسورة فاتحې نه وړاندې بسم الله په (زوره تيز آواز) نه لوّلي. او نه ئې سنت ګڼي. | ۱۸ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دسحر، ماښام او ماسختن به لمونځونو کې بسم الله په روزه لولي او دا سنت ګڼي. (۲۹) |
| ۱۹ | دمکې او دمدينې خلک سجدې ته دتللو په وخت کې دګوندونه وړاندې لاسونه په زمکه نګدي. (۳۰) | ۱۹ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) سجدې ته دتللو په وخت دګوندو نه وړاندې په زمکه لاسونه ګدي او دا سنت ګڼي. (۳۱) |
| ۲۰ | دمکې او مدينې دخلکو په نزد جلسهٔ استراحت سنت نه ده. او په کوّلو کې ئې څه نقصان نشته. | ۲۰ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) جلسه استراحت ډيره زياته ضروري ګڼي. (۳۲) |
| ۲۱ | دمکې او دمدينې خلکو په نزد امام پسې سوة فاتحه لوستل واجب ندې او امام پسې دنه لوستونکي لمونځ صحيح دی. (۳۳) | ۲۱ | دفرقه اهل حديث په نزد دامام پسې فاتحه لوستل فرض دي بغير دفاتحې دمقتدی نمونځ باطل دی. (۳۴) |
| ۲۲ | دمکې او مدينې خلکو په نزد کوم کس چې دامام سره د رکوع په حالت کې ملاؤ شي نو | ۲۲ | فرقه اهل حديث په نزد امام پسې دفاتحې دلوستلو نه غير کوم يو سړی چې دامام سره درکوع |

۲۸ - قول حق ص ٦۲، صلوة النبی ﷺ ۱۵۷، اختلاف امت کاالمیه ص ۷۸.

۲۹ - صلوة النبی کی حسین مناظر.

۳۰ - کیفیة صلوة النبي ﷺ للشیخ عبدالعزیز بن عبدالله بن باز.

۳۱ - محمدی نماز ص ۱۴۰.

۳۲ - رسول اکرم ﷺ کا طریقه نماز ص ۸۳، عرف الجادی ص ۳۰.

۳۳ - کیفیة صلوة النبی ﷺ.

۳٤ - فتاوی نذیریه ج ۱ ص ۳۹۸، عرف الجادی ص ٢٦.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | دهغه رکعت اوشي. | | په حالت کې شامل شي نو دهغه رکعت ونشو، نو هغه به دوباره رکعت ادا کوي. (۳۵) |
| ۲۳ | مکې اومدینې والا د رمضان په میاشت کې اوددې میاشتې نه بغیر هم درې رکعته وتر کوي. (۳٦) | ۲۳ | فرقه اهل حدیث دروژې په میاشت کې درې او بغیر دروژې نه یو رکعت وتر اداکوي.(۳۷) |
| ۲۴ | دمکې اومدینې والا د جمعې په نمانځه کې ددوهٔ اذانونو قایل دی اوداسنت گنړی. | ۲۴ | فرقه اهل حدیث دجمعې دیو اذان قائل دی. اوددوئم اذان نه منکر دی. اودې ته بدعت وائی. (۳۸) |
| ۲۵ | دمکې اومدینې امامان د جمعې په خطبه کې دخلفائې راشدینو اودصحابه ﷺ کرامو ذکرکؤل فخرگنړی. | ۲۵ | دفرقه اهل حدیثو په نزد دجمعې په خطبه کې حضراتو خلفائی راشدینو اودصحابه کرامو ذکر کؤل بدعت دی. (۳۹) |
| ۲٦ | دمکې اومدینې والاؤ په نزد (۲۰) شل رکعته تراویح مسنون دی. دپیغمبر ﷺ دزمانې نه واخله تردې وخته پورې په مسجد حرام اومسجدنبوی کې صرف اوصرف (۲۰) شل رکعته تراویح اداء کیږي. | ۲٦ | فرقه اهل حدیث (۲۰) شل رکعته سنت ترایحو ته بدعت وائی او اته رکعته تراویح کوي. (۴۰) |
| ۲۷ | مکې اومدینې والا دجنازې لمونځ ورو ورو آوازسره لولی. (۴۱) | ۲۷ | دفرقه اهل حدیث دجنازې نمونځ جهراً لؤلی. (۴۲) |
| ۲۸ | دمکې اومدینې خلکو په نزد داحادیثو په رڼاکې د ښځو اوسړو په لمانځه کې فرق دی. | ۲۸ | فرقه اهل حدیثو په نزد دزنانهٔ اودسړو دنمانځه په طریقه کې هیڅ فرق نشته. بلکه داخلق فرق کؤلو ته په |

۳۵ -دستورالمتقی ص ۱۱۱، نزل الابرار ج ۱ ص ۱۳۳، فتاوی نذیریه ج ۱ ص ۴۹٦، عرف الجادی ٢٦.

۳٦ - الهدی النبوة للشیخ محمدصابونی.

۳۷ - دستورالمتقی ص ۱۴۴، عرف الجادی ص ۳۳.

۳۸ - فتاوی ستاریه ج ۳ ص ۸۵و ۸۷، فتاوی علمآء هند ج ۲ ص ۱۷۹.

۳۹ - هدیة المهتدی ج ۱ ص ۱۱۰ نزل الابرار ج ۱ ص ۱۵۳.

۴۰ - دستورلتقی ص ۱۴۲، صلوة الرسول.

۴۱ - رساله التراویح للشیخ عطیه سالم مدرس مسجد نبوی ﷺ وقاضی مدینه منوره، رساله ینابیع لمهر غلام رسول.

۴۲ - فتاوی ثنائیه ج ۱ ص ۵۲، فتاوی علماء حدیث ج ۵ ص ۱۵۲.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | دين کې مداخلت وائي. (۴۳) |
| ۲۹ | د مکې او د مدينې د خلکو په نزد امام ابو حنيفه رحمه الله د مسلمانانو امام دی چې د هغوئ متبعين به تر قيامته پورې موجود وی. (۴۴) | ۲۹ | د فرقه اهل حديثو په نزد امام ابو حنيفه رحمه الله جهمي مرجي، بدعتي او گمراه وو. العياذ بالله. (۴۵) |
| ۳۰ | د مکې او د مدينې خلک خلفائې راشدين رضی الله عنهم د نصوص شرعيه وو فرمانبردار گڼي. | ۳۰ | او غير مقلدين ليکي چې: د خلفای راشدينو رضي الله عنهم هغه احکام چې هغه د نصوص شرعيهٔ نه خلاف وو امت هغه احکام رد کړی دی. (۴۶) |

د حرمينو علماء غير مقلدين نه دي. بلکه هغوي اکثر حنبلي مذهبي دي. لامذهبان د عوامو په ذهنونو کي دا وسوسه وراچوي چې د حرمينو حکومت او امامان زمونږ په شان غير مقلدين دي. که زمونږ مسلک غلط وي نو په حرمينو کي به نه وو، بيا که څوک ترينه پوښتنه وکړي چې ستاسو سره د دي څه دليل دي چې د حرمينو حکومت او امامان غير مقلدين دي؟ نو غير مقلدين ورته جواب ورکوي چې گوره هغوي هم زمونږ په شان رفع اليدين او آمين بالجهر او قراءت خلف الامام کوي، حالانکه دا خبره بالکل غلطه ده، ځکه چې په دوه دري مسئلو کي شرکت د مذهب د وحدت دليل نه شي کيدلي، که داسي شي نو بيا خو به روافض (شيعه گان) هم وائي چې د حرمينو حکومت او امامان روافض دي، او شيعه گان دي، ځکه چې رفع اليدين او قراءت خلف الامام خو شيعه گان هم کوي. د لامذهبو او د حرمينو او د سنيو علماؤ د رفع اليدين په مينځ کي ډير فرقونه دي. اول دا چه د حرمينو علماء په مانځه کي رفع اليدين کوي. ليکن ور سره دا هم مني چې د نبي عليه السلام د صحابه ؤو، او د تابعينو، او د تبع تابعينو څخه ترک د رفع اليدين هم ثابت دي، او غير مقلدين دا نه مني. دوهم دا چې اهل حرم دا مني چې د ترک د رفع اليدين والا مونځ د سنتو سره مطابق دي. ليکن غير مقلدين دروغ وائي چې نبي عليه السلام په ټوله زندگۍ کي يو مونځ هم بې رفع اليدين نه دي کړي. دريم دا چې د اهل

۴۳ - دستورالمتقی ص ۱۵۱، صلوة الرسول.

۴۴ - تاريخ وهابيت حقائق کي آينی مين.

۴۵ - مجموعه مقالات پرسلفی کاجائز ص ۵۴۸.

۴۶ - تنويرالآفاق فی مسئلة الطلاق ص ۱۰۷.

حرمینو څخه چې پوښتنه وشي چې تاسو رفع الیدین ولې کوي ؟ نو هغوي صفا وائي چې مونږ حنبلیان یو . او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز رفع الیدین راجح دي . او د لامذهبو څخه چې پوښتنه وشي چې تاسو رفع الیدین ولې کوي ؟ نو دوي وائي چې زما تحقیق دا دي چې رفع الیدین ضروري دي .

## د لامذهبو (غیر مقلدین) داهل الحرمین څخه د براءة اعلان

د حرمینو اکثر علماء حنبلیان دي . او بیا په حنبلیانو کې په یو حنبلي عالم محمد بن عبدالوهاب باندې زیات اعتماد کوي ، بل طرفته د دې ملکونو د غیر مقلدینو سرگروه نواب صدیق حسن خان لیکي چې: عبدالوهاب او د ده څوي محمد دواړه حنبلیان وو . او زمونږ د ملکونو خلک یا حنفیان دي ، او یا عاملین بالحدیث دي . او یا شیعه گان د ي .په دې ملکونو کې یو حنبلي هم نشته . ترجمان وهابیه صـ ۳۲ همدارنګه لیکي چې : محمد بن عبد الوهاب النجدي حنبلي وو . او مونږ د هیڅ په مذهب هم نه یو .ترجمان وهابیه صـ ۲۱]. همدارنګه لیکي چې : محمد بن عبد الوهاب د امام احمد بن حنبل په مذهب وو . محمد بن سعود او د ده زوي عبدالعزیز د محمد بن عبدالوهاب مذهب ته ډیر رواج ورکړو . ترجمان وهابیه صـ ۳۲].

### ۱... د رسول الله علیه السلام عمل او فرمان

د مکې او د مدینې والا وو په نیز د رسول الله علیه السلام فرمان او عمل هم حجت دي . [فقه الایمة الاربعة ص۲۰۳ روضة الناظر لابن قدامه الحنبلي صـ ٤٦]او د لا مذهبو په نیز د رسول الله علیه السلام فرمان او عمل حجت نه دي . [بدور الاهله صـ ۷۸ ، طریق محمدي صـ ۵۹].

### ۲ ... په یو وخت دخومره ښځوسره نکاح جائزه ده ؛

د مکې او د مدینې د خلکو په نیز په یو وخت کې د څلورو څخه د زیاتو ښځو سره نکاح نه ده جائزه، العدة شرح العمدة في فقه احمد بن حنبل صـ ۳۷۳ منارالسبیل في شرح الدلیل ج ۲ صـ ۱۴۴ ] او د فرقه اهلحدیث غیر مقلدینو په نیز چې د څومره ښځو سره غواړي نکاح کولې شي . [عرف الجادي صـ ۱۱۱].

### ۳ ... د نکاح لپاره شاهدان

د مکې او د مدینې د خلکو په نیز په نکاح کې دوه شاهدان شرط دي ، [عمدة الفقه ص۹۰] او د اهل حدیثو د فرقې غیر مقلدینو په نیز د نکاح لپاره د شاهدانو ضرورت نشته، [عرف الجادي ص۱۰۷].

## ٤ ... د اهلحديث لقب

په مکه او په مدينه کي د اهلحديث په نوم هيځ مسجد . هيځ مدرسه او هيځ محله نشته او د اهلحديثو غير مقلدينو د فرقي مسجدونه او مدرسي د اهل حديثو په نوم باندي دي .

## ٥ ... د اهل حديث معني

د مکي او د مديني خلک اهل حديث يو علمي لقب گڼي لکه اهل النحو ، او اهل الصرف ، وغيره يوه خاصه مذهبي فرقه ئي نه گڼي . او د اهلحديثو غير مقلدينو فرقه ئي د يوي ډلگۍ يعني د منکرينو د فقي لپاره لقب گڼي .

## ٦... په نريو جرابو باندي مسح

د مکي او د مديني خلک په نريو جرابو باندي مسح ته حرامه وائي . عمدة الفقه صـ ١٦] او د اهلحديثو غير مقلدينو فرقه په نريو جرابو باندي مسح کوي .

## ٧...د ښځي سره لواطت

د مکي او د مديني خلک د ښځي سره لواطت ته حرام وائي ، المغني ج ٨ صـ ١٣١او د اهل حديثو فرقه غيرمقلدين ئي جائز گڼي ، نزل الابرار ج ٢ صـ ٣٥ هدية المهدي صـ ١١٨]

## ٨... د استرحت جلسه

د مکي او د مديني د خلکو په نيز جلسه د استراحت ضروري نه ده ، عمدة الفقه صـ ٢٥] او د فرقه اهلحديث غير مقلدين په نيز سخته ضروري ده ، عرف الجادي صـ ٨٣ صلوة الرسول صـ ٢٢٨].

## ٩... په خطبه کـي د خلفائ راشدينو ذکر

د حرمينو خلک په خطبه کي د خلفاء راشدينو ذکر کوي ، المغني ج ٢ صـ ١٥٧ او فرقه اهل حديث غير مقلدين په خطبه کي د خلفاء راشدينو د ذکر کولو ته بدعت وائي . [هدية مهدي صـ ١١٠ ، نـزل الابـرار ج ١ صـ ١٥٣]

## ۱۰... په مسجدونو کـي محرابونه

په مکه او په مدينه کي په هر مسجد کي محراب شته ، او فرقه اهلحديث غير مقلدين په مسجد کي د محراب جوړولو ته بدعت وائي ، فتاوي ستاريه ج ۱ صـ ۳۶ ، فتاوي اهل حديث ج ۱ صـ ۳۱۳

## ۱۱... د مانځه لپاره د بدن پاکوالي

د مکي او د مديني د خلکو په نيز د مانځه لپاره د بدن پاکوالي شرط دي ، عمـدة الفقـه صـــ ۲۳] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د بدن پاکوالي نه دي ضروري . [بدور الاهله صـــ ۳۸].

## ۱۲... د مانځه لپاره د جامو پاکوالي

د مکي او د مديني د خلکو په نيز د مانځه لپاره د جامو پاکوالي شرط دي ، عمـدة الفقـه صـــ ۲۳ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د جامو پاکوالي شرط نه دي .[کنز الحقائق صـــ ۲۷ ، بـدور الاهله صـــ ۳۹ و صـــ ٤٠] .

## ۱۳... د ځائ پاکوالي

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز په مانځه کي د ځائ پاکوالي شرط دي ، العدة شرح العمـدة ص۶۸ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د ځائ پاکوالي شرط نه دي ،[کـنز الحقـائق صـــ ۲۷، بدور الاهله صـ ٤٠]

## ١٤... په مانځه کـي تلل راتلل

د مکي او د مديني د خلکو په نيز په مانځه کي په تللو راتللو سره مونځ فاسديږي، منارالسبيل ج ۱ صـــ ۱۰۹ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز په مانځه کي په تللو راتللو سره مونځ نه فاسديږي . [کنز الحقـائق صـــ ۲۷ ، فتاوي نذيريه ج ۱ صـــ ۵۰۸].

## ۱۵... د قرباني ورځي

د مکي او ده مـديني د خلکو پـه نيز د قربانۍ ورځي دري دي . يعني ۱۰-۱۱-۱۲ د ذولحجي ، عمـدة الفقه صـــ ۵۱] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د قربانۍ ورځي څلور دي . يعني ۱۰-۱۱- ۱۲-۱۳ د ذولحجي . فتاوي نذيريه ج ۳ صـــ ۲٤٠ رسائل بهاولپوري صـــ ۱۲۵].

## ۱٦... د قرباني د کونګو تعداد

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز يوه قرباني صرف د يو سړي لپاره کافي ده ، عمـدة الفقـه صـــ ۱٥۱او دفرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز يوه قرباني د ټول کور لپاره کافي ده ، اګر چې په کور کې سل کسان وي ، فتاوي نذيريه ج ۳ صـــ ۲٤٥ فتاوي اهلحديث ج ۲ ص۸۷ رسائل بهاولپوري ص۱۲٦].

## ۱۷... په چرګ او په هګۍ باندې قرباني

د مکي او ده مديني د خلکو په چرګ او په هګۍ باندي قرباني نه صحيح کيږي ، منارالسبيل ج۱ ص۲۷۰ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز په چرګ او په هګۍ باندي هم قرباني صحيح کيږي .فتاوي سـتاريه ج ٤ ص۱٤۰].

## ۱۸... د ختو خوړل

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز د ختو خوړل حرام دي ، منارالسبيل ج ۲ صـــ ۳۷۷

او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د ختو خوړل جائز دي ، عرف الجادي صـــ ۲۳٦

## ۱۹... د مږک او ملا چرګک خوړل

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز د مږک او د ملا چرګک خوړل حرام دي ، منارالسبيل ج ۲ صـــ ۳۷۳

او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مږک او د ملا چرګک خوړل حلال دي ، کنز الحقائق صـــ ۱۸٦

## ۲۰... د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل حرام دي ، منارالسبيل ج ۲ صـــ ۳۷۲

او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل حلال دي ،کنز الحقائق صـــ ۱۸٦

## ۲۱... د عرفې ښځه مخکـي همبستري

د مکي او ده مـديني د خلکو پـه نيـز پـه حج کـي د وقـوف عرفـي ښځـه مخکـي پـه همبسـتري باندي حـج فاسديږي ،العدة ۱۷٤ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز نه فاسديږي ، عرف الجادي صـــ ۱۰۱

## ۲۲... د مونځونو قضائي

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز چې کوم مونځونه قضا شوي دي د عذر له وجي يا بغير د عذر ځخه د هغي قضائي شنه ، المغني ج ۱ صـ ٦٤١] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز چې کوم مونځونه بلا عذره قضا شي ، د هغي قضائي نه شته ، فتاوي اهلحديث ج ۱ صـ ٤١٥

## ۲۳... د مونځ فساد

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز چې د امام مونځ فاسد شي نو د مقتديانو مونځ هم ورسره فاسديږي، منارالسبيل ج ۱ صـ ۱۱۱] او د فرقه اهل حديث غير مقلدينو په نيز چې د امام مونځ فاسد شي نو د مقتديانو مونځ ورسره نه فاسديږي ، فتاوي اهلحديث ج ۲ صـ ۲٤۱ و ۲٤۲

## ٢٤... په مانځه کـي ستر د عورت

د مکي او ده مديني د خلکو په نيز په مانځه کي د عورت پټول فرض دي . او د ښځي ټول بدن عورت دي، ما سوي د مخ ، د لاسونو او قدمونو ځخه ، عمدة الفقه في المذهب الحنبلي صـ ۲۲ والمغني ج ۱ صـ ٦١٥] او د فرقه اهل حديث سرگروه نواب صديق حسن خان ليکي چې : د ښځي بربنډ مونځ هم صحيح دي . د ميړه په ځنګ کي وي او که د بل چا به ځنګ کي وي . په هر صورت کي صحيح دي . بـدور الاهلـه صـــ ۳۹ ، عـرف الجادي صـ ۲۲ و هکذا في نزل الابرار ج ۱ صـ ٦٥].

❊ ❊ ❊

عن ابي هريرة ﷺ قال : وعدنا رسول الله ﷺ غزوة الهند فان ادركتها انفق فيها نفسي ومالي وان قتلت كنت افضل الشهداء وان رجعت فانا ابوهريرة المحرر. (الحديث نسائي ، ج٢\ ص : ٥٢ ).

وعن ثوبان عن النبي ﷺ عصابتان من امتي حررهما الله تعالى من النار عصابة تغزو الهند وعصابة تكون مع عيسى بن مريم عليهما السلام. (نسائي ج٢\ ص ٥٢ ، مسند احمد، ج٥ /ص: ٢٧٨ ، مجمع الزوايد، ج٥/ ص: ٢٨٢)

الحمدلله هند احنافو فتح كړی دی، نو درسول الله ﷺ ددې پيش گوئي مصداق احناف دي

# نعمة المنان في تذكرة النعمان

للشيخ عبد السلام الحقّاني ( نوربوړوي)

بسم الله الرحمن الرحيم

يو څو مباحث په لنډ تعارف او تذكره دامام الائمة سراج الامة امامنا الاعظم ابی حنيفة رحمه الله تعالی کې:

# لومړی مبحث

## دامام ابوحنيفة رحمه الله نسب:

دنسب په بيان کې مختلف اقوال دي خو کوم چې ډير راجح او محقق اقوال دي هغه به ذکر کړو

**اول قول** :دده دلمسي عمربن حمادبن ابي حنيفة رحمه الله تعالی څخه دنيکه نسب داسې رانقل شوی:

ابو حنيفة نعمان بن ثابت بن زوطی بن ماه الفارسی التيمي.

دامام ابو حنيفة رحمه الله نوم نعمان دپلار نوم يې ثابت او دنيکه نوم يې زُوطی او دهغه پلار ماه نوميده زوطی دکابل دښار اوسيدونکی وو چې اوس موجوده دارالخلافة دافغانستان ده او داغلام دتيم الله بن بکربن ثعلبة بن بکربن وائل وو بيا مسلمان شو او هغه بيا ازاد کړو نو ددې وجې نه ده ته زوطی الفارسي التيمي ويلی شي چې دامولی دتيم الله قبيلي وه او ثابت په اسلام باندې پيدا شوی وو. (مرقـات ج۱ص ۷۸ عقودالجمـان ص۳۹) مطبعه مکتبه نعمانية محله جنګي پشاور)

**دوهم قول** :دده دبل لمسي اسماعيل بن حمادبن ابي حنيفة رحمهم الله دی هغه وايي چې دابو حنيفة نوم نعمان او دپلار نوم يې ثابت او دنيکه نوم يې هم نعمان وو ، دغور نيکه نوم يې المرزبان وو ، او هغه دفارس په احرار او ازادو بچيانو کې وه او قسم په الله چې کله هم په مونږ باندې غلامي نده تيرشوی او نه زمونږ په نسب کې څوک دچاغلام پاتې شوي دي، او زما نيکه په (۸۰) هجری کال کې پيدا شوی ، زمونږه نيکه ثابت حضرت علی بن ابی طالب ﷺ ته تللی وو هغه ورته لاس په سرباندې کيښود او دعاېې ورته وکړه چې الله دې په ده او دده په اولاد برکت کيږدی ، او مونږ اميد لرو چې دغه دعا به زمونږ په حق کې قبوله شوي وي. (عقـود الجمـان ۱ص۴۰مرقات ج۱ص ۷۸)، مونږ لندبايد ووايو که چيرته دامام اعظم رحمه الله نيکه زوطی مولی دتيم قبيلي شي بنا په قول اول نو داهم دده په باره کې څه عيب او نقصان ندی ځکه چې دانسان اصلي کمال او عزت په دين کې دی ، الله ﷻ فرمايي : (إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللهِ أَتْقَاكُمْ) سورة حجرات اية (۱۳)

**ترجمه** : يقيناپه تاسو کې ډير عزتمند هغه کس دی چې دالله تعالی نه ډيرويريږي اوزيات تقوی واله وي نودعزت مدارپه تقوی باندې دی نه په مال اونسب باندې.

(۲) دخندق په ورځ دسلمان فارسي ﷺپه حق کې نبي کريم ﷺووېل چې: (سَلْمَانُ مِنَّااهلَ البيت) سلمان زمونږنه دی يعنې داهل بيتونه دی ، نوداهل بيتو نه شمار کړې شو . اوده د غلامی ژوند تير کړی وو اوډير زيات تعداد علماء وو باندې داسې ژوند تير شوی دی خو بيا هم ټول مسلمانان دهغوی په فضيلت باندې ګواه دي. ديوڅو علماء تذکره په تبييض الصحيفة ص : ۴۳: شوې ده په دې عبارت: ثم هذا الحسن وبن سيرين وعطاء بن أبي رباح وسعيدبن جبير كلهم من الموالى ومن ينكر فضلهم على المسلمين فى العلم والفتوى والارشاد التدريس. اوزمونږ دامام لقب ابو حنيفة دی اوأئيمه وو کې يې لقب امام اعظم دی اوس داچې :

## ده ته ولې ابوحنيفة وايې؟

پدې باره کې مختلف اقوال شته .

**(۱) قول** :داچې حنيفة مؤنث دحنيف دی او معنی دحنيف ده (المسلم المائل الي الدين الحنيفُ) اوعلامه ابن قيم رحمه الله يې معنی کړيده ( المقبل علي الله المعرض عمن سواه) اودقران کريم بيان (فَاتَّبِعُوْا مِلَّـةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا).

اوکلمة د(أبو) دلته په معنی دملازم اوصاحب سره ده معنی دا شوه چې امام صاحب دملت ابراهيم سره لازم اوملازم اوورمائل اومقبل وه ، يعنې په ملة ابراهيم باندې مين اوقربان وه نوابو حنيفة مخفف دابو الملة الحنيفة نه دی .

**دوهم قول** : داچې داهل عراق په ژبه اولغت کې حنيفة دوات دسياهي بوتل ته وايې اود(ابو) معنی همغه ملازم اوصاحب ده نومعنی داچې وه امام صاحب ملازم دسياهي بوتل سره داځکه چې امام صاحب دعلمي وسائلو سره ډيرزيات تعلق لرلونوهم پدې وجه ابوحنيفة سره مشهورشوی .(عقودالجمان ص۴۳)

**دريم قول** :بعض اهل العلم وايې چې حنيفة دحنفيّة نه جوړشوی اوحنفيّة دعراقيانولغت کې داوبو دبمبي سرته وايې نومعنی داچې داوبودبمبي سرسره ملازم داپدې وجه وه چې امام صاحب داوبو مستعملوپه باره کې ډيرزيات محتاط وه.

نو داحتياط د وجه نه به يې د نل او يمبي او بو نه ډيره استفاده کوله پدې وجه باندې يې ابو حنيفه سره شهرت پيدا کړو چې عراقيانو به ورته ابو حنيفة ويلو لکه اهل عراق دده و کان مالک ته ابو محل وايي او دډوډۍ مالک ته ابو الخبز وايي. ( کتاب ترجمة الامام ابي حنيفه ص ٤٠/ عقود الجمان، ص: ٤٣).

**خلورم قول** : داچې دده دلور نوم حنيفة وه معنى داچې پلار د حنيفه بيا به دا اسم کنيه شي، دا ډير ضعيف قول دى ځکه دامام ابو حنيفة رحمه الله دحماد نه ماسوى نور اولاد نه وو په اتفاق دټولو اصحاب المناقب باندې. (عقود الجمان ص ٤٣) ص :٢٨٥).

**دوهم مبحث** : په ولادت او وفات دامام ابو حنيفة رحمه الله کې قوي او مثبت او راجح چې اکثر علماوو پرې قول کړى هغه دادى چې امام ابو حنيفة رحمه الله په سنه ٨٠ هـ د ٦٩٩) مـ ) سره سم د عراق په دار الحکومت کوفې ښار کې پيدا شوى دى چې دده دزيږدنى پر مهال عبد الملک بن مروان اموى خليفه وو او حجاج بن يوسف ثقفي دعراق والي وو او وفات يې په مياشت درجب په (١٥٠هـ کې داوياکالو په عمر د اسلامي امت دغه ستر او ځلانده علمي لمر ډوب او فنا کړى شو او وفات يې په بغداد کې وو او دفن کړى شو په مقبره دخيزوران کې او هلته يې قبر مشهور دى خلک يې زيارت کوي. او دجنازې لمونځ پرې شپږ ځلې شوى او دزيات ازدحام نه دده په دفن کولو باندې څوک قادر نه وه. (تبييض الصحيفة ص ١٣٤ عقود الجمان ص ٤٤ص ٢٨٥)

نعيم بن يحى رحمه الله وايي چې امام ابو حنيفه رحمه الله ته زهر ورکړى شوي وو او په ډير ناشنا او غريب حالت کې وفات شو. (عقود الجمان ص ٢٨٣) او ابو حسان الزيادي وايي کله چې امام ابو حنيفه رحمه الله دخپل مرگ احساس وکړو نو په سجده باندې پرې وتو او روح ترينه دسجدې په حالت کې پرواز وکړو. (عقود الجمان ص ٢٨٤)

او حسن بن عمارة قاضي بغداد ورته غسل ورکړو او ابو رجاء بن عبد الله بن واقد الهروي پرې اوبه اچولې او غسل نه وروسته حسن بن عمارة رحمه الله ورته ويل الله دې په تا باندې رحم وکړي د ريش ٣٠ کاله تا روژه ماته نه کړه او څلويښت ٤٠ کاله دى د شپې چېرته بالخت ته تکيه ونه کړه او ويې ويل چې زمونږ نه لوى فقيه عابد ډير زاهد او ډير د خير د خصلتونو جامع او ډير په سنتو او نيکيو سمبال حالت کې دې مرگ ومونده او ځانه وروسته خلق مو په غم کې واچول. ( عقود الجمان ص ٢٨٥)

ابورجاء وايي چي د امام صاحب جنازي ته دبغداد خلق راجمع شوه او دوی دخالق المخلوق نه بغير بل چاشمارلی نه شو او نعيم بن يحيى وايي چي اټکلي حساب دهغه خلکوچي جنازه يې کړې وه پنځوس زره اويازيات وه لمونځ دجنازې پرې شپږځله شوی يو دجنازه کوونکو نه حسن بن عمارة او اخري لمونځ خپل ځوی حماد پرې اداء کړو او ډير ازدحام له وجهې نه يې په دفن کولو باندې څوک قادر نه وو د ماذيگرنه وروسته يې بيادفن وشو. ( عقود الجمان ص ۲۸۵)

خطيب او ابو محمد الحارثي او يو جماعت نور دوی نه ماسوی روايت کړی دی حاصل دروايۀ يې دادی چي ابو جعفر المنصور امام ابو حنيفة رحمه الله د کوفې څخه بغداد ته راوغوښت او طلب د ولايت القضاء يې ترينه وکړه چي ته به قاضي القضات شي دټول اسلامي ښارونو قاضيان به ستادلاس لاندې وي نو امام صاحب داقبوله نه کړه او په ډيرو علتونو يې عذرپيش کړو منصور ډير قوي قسم وکړو ويې ويل کچيرته دا کارونه کړې نو خامخا به دې محبس کې واچوم او ډير قوي سختي به درسره وکړم.

بيا امام صاحب انکار وکړو نو بيا يې ونيولو او محبس کې بندي کړو او بيا به يې ورته أستاذي او جرگې محبس ته ورليږلې چي ورته وو ايې که زما مطالبه قبول کړې راخارج به دې کړم بيا امام صاحب قوي انکار او منع وکړه دقبوليت د قضاء نه بيا منصور امر وکړ چي دادې هره ورځ راوباسل شي او لس لس دورې او کوړې دې ووهل کړې شي او په بازارونو کې دې پرې چيغې او اوازونه وکړې شي، بيا راويستل شو او سخت ووهل شو په سختو دردناکو وهلو چي د وهلو اثار يې په جسد باندې ښکاريدل.

اوبازار کې اوازونه هم پرې وشول او په پوندو مبارکو يې وينې بهيدلې او محبس ته واپس کړی شو او بيا يې محبس کې پرې قوي سختي راوستله په خوراک او څښاک کې او لس ورځې يې دوامدار دا کار پرې وکړو او لس لس دورې يې ووهلو کله چي وهل مسلسل شو امام صاحب وژړل او زياتي دعاوې وکړې، ددې نه پنځه ورځې پس بيا وفات شو. رحمة الله عليه ورضي الله تعالي عنه. ( عقودالجمان ص ۲۸۳)

دامام صاحب نه درې ځلي دقضاء غوښتنه شوې دا درې واړه تفصيلي واقعات دمناقب په کتابونو کې بيان شوي دي فضل بن دکين ويلي دي امام ابو حنيفة رحمه الله تعالى باندې يو غرپ زهر وڅښل شو او ددې يو غرپ نه وفات شو او داسي هم خبرشوی يم: چي کله امام صاحب دمنصور په مخکې پيش کړی شو هغه ورته سويق راوغوښتل او امريې ورته دڅښلو وکړو او هغه انکار وکړو.

منصور ورته وویل چې خامخا به یې څښښې بیا اکراه پرې وشوه او د زور نه یې ورسره کار واخست او ورې
څښل بیا ذرو د ریده منصور وته وویل کوم ځای ته روان شوی ؟ ده ورته وویل کوم ځای ته چې تا لیږلی یم یعنې
محبس ته روان شوم بیا محبس ته بوتللی شو او هملته وفات شو .(عقود الجمـان ص ۲۸٤) او صحیح قول
همدا دی چې دا په جیل ( محبس ) کې وفات شوی دی. (تاریخ بغداد ج : ۱۳: ص ۳۲۸)

داوو ده وفات چې د نبي کریم ﷺ په غیر اختیاري سنتو کې هم متبع شو نبي کریم ﷺ هم د زهرو له وجې
شهید شو او امام ابو حنیفه رحمه الله هم د زهرو له وجې شهید شو . ټول علماء او د حوائجو خاوندان د امام صاحب
د قبر زیارت کوي او د ده د قبر سره توسل کوي په قضاء د حوائجو باندې او بیا د حوائجو د پوروالي روایت هم
کوي یو د هغوی ځینې امام شافعي رحمه الله دی کله به چې په بغداد کې وه

علي بن میمون وایې چې ما د امام شافعي رحمه الله نه اوریدلي چې هغه به ویل چې بیشکه یقینا زه په امام
ابو حنیفه رحمه الله باندې تبرک حاصلوم او د ده قبر ته د زیارت لپاره رازم او کله چې راته یو حاجت او ضرورت
راپیښ شي نو دوه رکعته لمونځ کوم او د امام صاحب قبر ته رازم او د ده د قبر سره د الله ﷻ نه سوال کوم او ډیر زر
مې حاجت پوره شي) (عقود الجمان ص۲۸۷). او کله چې امام شافعي رحمه الله د ده د قبر زیارت کولو او هلته یې
د سهار دوه رکعته لمونځ کولو نو رفع الیدین یې نه کول او نه یې قنوت ویلو بیا یې وویل چې زمونږ ادب د داسې
امام سره ډیر زیات بنه دی د دې نه چې مونږ د ده په حضور د ده د مخالفت اظهار وکړو .(مرقـات ج۱\ص ۸۱/
(عقود الجمان، ص: ۲۸۸)

علامة الخنلجی رحمه الله فرمائي چې کومه شپه باندې چې امام ابو حنیفه رحمه الله وفات شوی و
پیریانو (جنیاتو) هم ژړل او اوازونه د ژړا یې خلکو اوریدل . ( عقود الجمان، ص: ۲۸۷) صدقة المقابری دا یو
مجاب الدعوة شخص و ، دا وایي چې کله امام ابو حنیفه رحمه الله د خیزران په مقبره کې دفن شو ، ما درې شپې
په هاتفي اواز کې دا لاندې اشعار واوریدل .

ذهب الفقه فلافقه لكم      فاتقوا الله وكونوا خلفاً
مات نعمان فمن هذا الذى      يحيى الليل اذاما سجفا

(عقود الجمان، ص: ۲۸۷)

## په علم فقه باندې دامام ابوحنيفه دمشغولتيا سبب او علت

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي : علم کلام مې زده کړو تردې پورې چې مشار اليه بالبنان په کې وګرزيدم همدارنګه تول علوم راته نصب العين و ، بيا مې هر فن بيل بيل مطالعه کړو اوفکر مې وکړو دهر فن په عاقبت اوانجام اونفعه کې ومې ويل چې خپله مشغله علم کلام ګرزوم ،بيا مې سوچ اوفکر وکړو نوعاقبت اونفعه دعلم کلام ډيره کمه وه ځکه کله چې انسان کمال ته په کې ورسيږي او احتياج ورته پيداشي نو دجهري وينا طاقت په کې نوي اودهرې بدي نسبت ورته کيږي اوخلک ورته صاحب الهوی وايي ، بيا مې فکر وکړو چې مشغله به علم ادب اوعلم نحو وګرزوم خوبيا مې وويل چې ددې انجام خودادی چې ماشومانو ته به ناست يي اوادب اونحو به ورزده کوي بيا مې وويل چې مشغله به علم الشعر وګرزوم چې دده په انجام کې مې سوچ اوفکر وکړو نو مدح اوهجو اودروغ و ، بيا مې فکر وکړو په علم القراة کې نودهغه عاقبت داوو چې ماشومان به درته دورونه کوي اوپاوونه به درته اوروي اوتابه ورته غوږ نيولي وي ، نوداهم دماشومانو سره مشغله وه بيا مې فکرو کړو چې علم الحديث به مشغله وګرزوم بيا مې چې سوچ وکړو چې داخواوږد عمر غواړي اوکشران بې تجربې ځوانان به درنه تاوو وي اوترقيامته پورې به درباندې د دروغو اوسوء الحفظ الزامات لګول کيږي ، بيا مې فکر وکړو په علم فقه کې نو هرڅومره مې چې نظر په کې تاو راتاوو کړو نوددې علم جلالة ډيرزيات وو اوکوم عيب مې پکې په ګوته نه کړو اوعاقبت اوانجام يې هم ناسته پاسته وه دعلماوو فقهاء ومشايخ اوبصراو خلکو سره او داداء الفرائض اواقامة الدين اونور عبادات پيژندل اوطلب الدنيا والاخرة يعني ددنيا او اخرت کاميابږوندون بغير دفقه نه نه کيدلو نوهمدافقه مې خپله مشغله وګرزوله.

(عقودالجمان، ص : ۱۳۶)

## دريم مبحث

**دامام ابوحنيفه صورت اوسيرت:** امام ابويوسف رحمه الله فرمايي : چې امام ابوحنيفه رحمه الله په رجالو کې ددرميانه قدواله وو ، نه ډيراوږدوو اونه ډيرلنډوو اوپه انسانانو کې د ډيرزيات ښاسته صورت واله وو ،اوپه خبرو کې ډيرزيات دبلاغت خاوندو ، اوپه خپلو بياناتو کې دډيرزيات پوره کمال خاوند و ، اودډيرزيات خوږ اواز خاوند و ، اودخپل مقصد او مراد ډيرزيات اوښه وضاحت کوونکی وو ، په مجلس کې به ډيرزيات خوندوو.

او دفضل بن دکين رحمه الله نه روايت دی چې امام ابو حنيفه رحمه الله د ښائسته مخ او دخائسته ږيرې او دخائسته جامو او دخائسته پڼو اوپيزار خاوند و ، او ډير زيات دهيبت او دهشت او رعب خاوند وو او عبدالله بن مبارک رحمه الله فرمايي چې امام ابو حنيفه رحمه الله د ډيرزيات خائسته مخ او ښائسته لباس او جامو خاوند وو. (عقود الجمان ص ٤٤- ٤٥).

حماد بن ابي حنيفة رحمهما الله وايي ، چې امام ابو حنيفة رحمه الله د ښائسته شکل ، لباس خاوند وو، او دزيات عطرو ،خوشبو استعمالونکی وو ، او دخوشبو په استعمال کې يې شهرت لرو کله به چې کورته راتلو او يابه تلو مخکې د دينه چې چا به ليدلی و دده خوشبوبه يې محسوس کوله او خوشبونه به پيژندل کيدو. ابو مطيع رحمه الله وايې چې امام ابو حنيفة رحمه الله باندې مې دجمعې په ورځ يو ځادر او يو قميص وليدلو، چې دد واړو قيمت څلورسوه درهمه وو . (عقود الجمان ،ص: ۲۴۱) (مرقات ،ج/۱ ص : ۷۸).

سعيد بن منصور وايي چې دفضيل بن عياض نه مي اوريدلي هغه به ويل امام ابو حنيفة رحمه الله يو فقيه سړی و. چې په فقه او پوهه باندې معروف و ، او په تقوی باندې مشهور و ، او دپراخه مال خاوند و او په سخاکولو باندې معروف و ، هرڅوک به چې ورته راغی ورته به يې څه ورکول ، دعلم په زده کړه کې دزيات صبر خاوند و ، په شپه او ورځ دواړو کې به يې ډيری کمې خبرې کولې ، زيات به چپ و ترديې چې کله به يو مسأله د حلال يا حرام راغله نو ډيرزيات ښه په حق سره جواب ورکونکی و ، او دبادشاهانو د مال او تحفو نه به ډير ازاده تښتيدلو ، چې مسأله به ورته راغله نو پدې کې به يې دصحيح حديث پيروي کوله ،او که نه به وو ، بيا به يې د قول دصحابو يا د تابعينو پيروي کوله او که به دا هم نوو نو بيا به يې قياس کولو ، خوندور قياس. (تبييض الصحيفه ص ۱۲۳ تاريخ بغداد ج۱۳\ص ۳٤۰)

يو ځل معافي بن عمران الموصلي په خپله حلقه د درس کې ناست و ، او دتعليم وتعلم خبرې يې کولې په دې دوران کې هغوی او فرمائيل چې په امام ابو حنيفة رحمه الله کې لس خبرې داسې دي که چيرته د هغې نه يوه خبره هم په چا کې وای نو هغه به د خپلې قبيلې رئيس او سردار وای.

(۱) پرهيزگاري .

(۲) رښتياويل .

(۳) عفت ( پاک دامني ) .

(۴) دخلقو خاطر او مدارات کول .

(۵) ربنتوني محبت کول .

(٦) په نفعمندو خبرو توجه کول .

(۷) ربنتنی خوبونه .

(۸) صحیح او درستې خبرې کول .

(۹) زیاتره خاموش او سیدل .

(۱۰) دعاجزه خلقو مدد کول ، که به دوست وو ، او یا دښمن . (الخیرات الحسان ص ۱٤۲) عقود الجمان ص ۲۳۸).

## دامام ابوحنیفة رحمه الله دعبادت او تدریس یوه واقعه

دمسعربن کدام نه خطیب ابو محمد الحارثي او ابو عبد الله بن خسرو یو روایت نقل کړی دی چې زه دامام اعظم صاحب لیدو کتو لپاره دهغوی جماعت ته لاړم ، ما وکتل چې امام صاحب دسحر دلمونځ کولو نه پس خلقو ته ددین دتعلیم په ورکولو کې مشغول شو او د تعلیم په دې شغل کې تر ماسپخین پورې په یو مخ لګیا وو . بیا د لمانځه لپاره دامجلس چوتې شو او دلمانځه نه پس تر ماذیګره او ماذیګرنه تر ماښامه او دماښام نه تر ماسختن پورې ددرس دامشغله دغسې روان وه ، دتعلیم او تدریس دغې ګران او پرلپسې دیني خدمت په لیدلو ګوته په خوله شوم امام صاحب دماسخوتن لمونځ نه وروسته کورته لاړو زه دې فکر او سودا واخیستم چې هرکله امام صاحب دتعلیم او تدریس په کار کې داسې مشغول دی نو دکتابونو کتلو او نفلي عباداتو او ثوابي کارونو ته څرنګه او زکار یږي زه لاپدې فکر کې وم

خلک دماسخوتن لمانځه نه وروسته کورنو ته لاړ ، څه ګورم چې امام صاحب پاکې صافې جامې اغوستی عطرېې لګولي دي خوشبو ترې هرې خواته خوره وره وه ، چې جماعت ته رانښوتو او ښه دروند ، سنګین . په قلاره او استقامت سره دمسجد په یو ګوټ کې په لمانځه باندې شروع شو تردې چې صبا راو ختلو دټولې شپې دعبادت نه چې فارغ شو کورته لاړو څه وخت پس بیا جماعت ته راغی جامې یې بدلې کړې وي دسحر لمونځ یې دجماعت سره او کړو نو بیا دنورو وختونو پشان هم هغه دتعلیم او تدریس کارته یې ملا وتړله چې تر ماسخوتنه پورې دغسې مشغول وو ما په زړه کې وویل چې پرون ټوله ورځ یې بې ارامه او بیګاه ټوله شپه یې شب کیره

کړي ده نونن شپې ته به خامخاارآم او خوب کوي ولې بله شپه یې هم هغه څه او کړل څه چې یې په اوله شپه کړي و، تردې چې دریمه شپه بیا ماهغسې نندار ه او کړه لکه چې مې دوه شپې وړاندې کړې وه ددې نه پس ماپه زړه کې دافیصله اوکړه چې ترڅوپورې زه ژوندې یم او امام صاحب ژوندې وي نو دده ملګرتیا او خدمت او مجلس به چیرته پرې نږدم غرض داچې د امام اعظم صاحب سره تر مرګه د پاتې کیدو پخه اراده مې او کړه او په جماعت کې پوخ استوګن شوم په دې دومره موده کې ماچیرته امام صاحب دورځې بې دروژې او د شپې دقیام یعنې لمونځ نه بغیر نه دی لیدلې البته دماسپخین نه وړاندې به یې څه ساعت سترګې پټولې او په عامو حالاتو کې یې هم دغه پاخه عادتونه وو.

دابن ابي معاذ رحمه الله نه روایت دی وایي چې مسعربن کدام رحمه الله دیربختوربنده و، چې د امام اعظم صاحب په مسجد کې یې په داسې حالت کې ساه ورکړه چې الله پاک ته یې دعاجزي سربنکته په سجده پرورت وو. رحمة الله وعلى الامام الاعظم عليه. (حدائق الحنفية ص ٦٦ تبييض الصحيفه ص ١٢٥).

اسدبن عمررحمه الله و وایې چې امام ابوحنیفة رحمه الله د (وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا) مطابق ترڅلوینېتوکالو د ماسخوتن په اودس دسحر مونځ کړی دی او دشپې به یې قرآن مجید په یو رکعت کې لوستلو. (مفتاح السعادة، ج٢\ ص: ٧٨، بغدادى، ج ١٣\ ص: ٣٥٤، ذيل الجواهر، ج٢\ ص: ١٩٣\ وفيات الاعيان لابن خلكان ج ٥ص ٤١٣) (واخبارابي حنيفة واصحابه ص ٥٦).

## او دا اكثار في العبادة بدعت نه دی:

امام زين العابدين على بن حسين المتوفى (٩٤هـ) به په یوه شپه او ورځ کې زر رکعته نفل کول. (تهذيب التهذيب، ج٧\١\ ص: ٣٠٦) (وتذكرة الحفاظ، ج١ص: ٧١).

همدارنګه امام ميمون المتوفى (١١٧هـ) به کله په یوشپه او یوه ورځ کې زر رکعته لمونځ کولو، یوځلې یې په اولسو ورځو کې اولس زره رکعته لمونځ کړی وو. (تهذيب التهذيب، ج١٠\١\ ص: ٣٩٢)

همدارنګه حضرت مرة بن شرحبيل المتوفى (٥٤هـ) به روزانه زر رکعته لمونځ کولو. (البداية والنهاية، ج٨\١ ص، ٧٠)

همدارنګه به على بن عبدالله بن عباس المتوفى (١١٧هـ) روزانه زر رکعته لمونځ کولو. (تهذيب التهذيب. ج٧\١\ ص: ٣٥٨)

همدارنگه حضرت عمیر بن هانی رحمه الله المتوفی (۱۱۰ هـ) به روزانه زر رکعته لمونځ کولو او ورسره به یې یولاکهـ واري تسبیح لوسته. (ترمذی شریف، ج۲\ص: ۱۷۷) (تهذیب التهذیب، ج۸\\ص: ۱۰۱، وفیض الباری ج۴\ص: ۱۹۸).

همدارنگه امام شعبة بن الحجاج صایم الدهرو و. (مقدمة تحفة الاحوذی، ص: ۲۲۲). همدارنگه امام وکیع صایم الدهر وو. (بغدادی، ج۱۳\ص: ۴۷۰) همدارنگه امام بخاری رحمه الله صایم الدهر و. (میزان الکبری، ج۱\ص: ۵۰) اوپه احادیثو کې چې دصیام الدهر څخه منع راغلې ده، دهغې څخه هغه روژه مراد ده چې په ایام منهیه وو کې هم ونیولی شي. (نووی شرح مسلم، ج۱ص: ۳۶۵، وفتح الباری، ج۵\ص: ۱۲۶)

همدارنگه مشهور محدث امام یزید بن هارون رحمه الله المتوفی (۲۰۶هـ) دڅلویښتو کالو څخه زیات دماسخوتن پر اودس باندې دسهار لمونځ کړی دی. (تذکرة الحفاظ، ج۱\ص: ۲۹۲، بغدادی، ج۴\ص: ۳۲۷)

همدارنگه امام سلیمان بن طرحان رحمه الله المتوفی (۱۴۳هـ) هم دسهار لمونځ دماسخوتن پر اودس کړی دی اوداهم په څلویښت کالو باندې محمول دی. (طبقات ابن سعد دوهم، ج۷\ص: ۱۸، دول الاسلام، ج۱ص: ۷۳)

خارجة بن مصعب وایې ختم القرآن المجید څلورو امامانو په یو رکعت کې کړی: عثمان بن عفان رضي الله عنه اوتمیم الداری رضي الله عنه اوسعید بن جبیر رحمه الله اوابوحنیفة رحمه الله تعالی اوپه روایت دقاضي ابوالقاسم بن کاس کې دالفظ هم شته چې داختم القران په داخل دکعبه شریفه کې و، اویحی بن نهروایې چې دامام ابوحنیفة رحمه الله داعادت ووچې دروژې په میاشت کې به یې دقرآن مجید شپیته (۶۰) ختمونه کول. (عقود الجمان ص ۱۷۸)

په عقود الجمان کې دا اسد بن عمرو روایت دی چې امام ابوحنیفة رحمه الله ترڅلوښتو کالوپورې دماسخوتن په اودس دسحر لمونځ کړی، بل عادت ده دا وو چې په اکثره شپو کې به یې په یو رکعت کې ټول قرآن لوستلو، او دشپې به ده دومره ژړا اوریدل کیده، تردې پورې چې دګاونډیانو ترحم اوزړه سواندی به پرې راغله. اوداهم محفوظ ده چې پیشکه ده قرآن مجید اوه زره (۷۰۰۰) واری ختم کړی دی په هغه ځای باندې چې دې پکې دفن او وفات شوی دی. (عقود الجمان ص ۱۷٤) (مرقات ج۱ ص ۷۹)

مخکې مونږ وویل چې دا څه بدعت نه دی ،ددومره تقوی اویاددومره تلاوت کولو والا چې په یورکعت کې یې قرآن کریم ختم کړی وي ، په امت مرحومه کې بې شماره تیر شوي دي ، په صحابه وو کې حضرت عثمان بن عفان ﷺ (المتوفی : (۳۵هـ) شهیداً) به د وترو په یو رکعت کې قران شریف ختمولو . (ترمذی شریف، ج۱\ص : ۱۱۸، قیـام اللیـل ، ص : ۶۱ ، طبقـات ابـن سـعد ،ج ۲\ص : ۵۲ ، ذیـل الجـواهر ،ج۲\ص : ۴۹۳) اوحضرت تمیم الداری ﷺ المتوفی (۴۰هـ) به په شپه کې قران شریف ختمولو. (طحاوی ،ج۱ص :۲۰۵)( تهذیب التهذیب ، ج۱۱\ص : ۵۱۱ ) (ذیل الجواهر ،ج۲\ص : ۴۳۹) حضرت عبد الله بن زبیر ﷺ المتوفی (۷۳هـ) به هم په شپه کې قران شریف ختمولو . (طحاوی ،ج۱ص :۲۰۵) (قیـام اللیـل ، ص : ۶۳) او په تابعینو کې حضرت سعید بن جبیر رحمه الله المتوفی (۹۴هـ) په یوشپه کې قران شریف ختمولو . (ترمذی شریف ، ج۱\ص : ۱۱۸، طحاوی ، ج۱\۲۰۵ ، ذیل الجواهر ،ج۲\ص : ۴۹۳، تذکرة الحفاظ ،ج۱ص : ۷۲)

په ایمه وو کې امام شافعی رحمه الله به په رمضان کې شپیته واري قران شریف ختمولو . (تذکرة الحفاظ ،ج۱ص : ۳۲۹) یحیی بن سعید القطان به په څلورویشت ساعتو کې یو ځل قران شریف ختمولو . (بغدای ،ج۱۴\تهذیب الاسماء واللغات ،ج۲\ص :۱۵۴) حضرت امام وکیع بن جراح رحمه الله به په یوه شپه کې قران شریف ختمولو . (تاریخ بغداد ، ج ۱۳\ص : ۴۷۰)

ابوعاصم ضحاک ابن مخلد رحمه الله وایي چې دامام ابوحنیفه رحمه الله د زیات قیام اللیل څخه په میخ باندې نامداره کیده . (عقود الجمان ، ص : ۱۷۴)

امام سفیان بن عیینه رحمه الله وایې چې الله پاک دې په امام ابوحنیفة باندې رحم وکړي چې ډیرزیات لمونځ گذاره انسان و ، زمونږ په وخت کې مکې مکرمې ته دامام ابوحنیفة رحمه الله نه بل زیات لمونځ کونکی څوک نه دی راغلي . (عقودالجمان ص ۱۷۵مرقات ج۱ص ۷۹).

په الکامل للهزلي کې دي چې امام ابوحنیفة رحمه الله کله وفات شو نودیو گاوندي ځوی خپل پلارته وویل ای پلاره له هغه ستن چې مابه هره شپه دامام ابوحنیفة رحمه الله په چت باندې لیدله څه شوله ؟ پلار یې وویل ای بچیه هغه ستن نوه هغه ستن دشریعت وه (امام ابوحنیفة رحمه الله ) .( عقودالجمان ص ۱۸۲)

یحیی بن معین وایې : چې دخپل استاذیحیی بن سعیدالقطان نه مااوریدلي دي چې هغه به ویل قسم په الله چې مونږ دامام ابوحنیفة رحمه الله سره ناسته اومجلس کړی دی اومونږ دهغه نه اوریدنه اودهغه شاگردي

کړې ده قسم په الله چې کله به مې ورته نظر وکړو ما به دهغه په مخ مبارک کې پېژندل چې واقعې داد الله عزوجل نه زيات ويريږي .(عقود الجمان ص ۱۸٤)

علامة مسعر وايې چې دامام ابو حنيفة داعادت وو چې کله به يې يوشی دخپل اهل او عيال لپاره اخيستونو هغه ومره خرچ به يې په شيوخ العلماء باندې هم کولو او هغه ارنګه فعل به يې په جامو کې هم کولو او کله به يې چې خپل اهل او عيال ته دبهر نه د راغلو اوچوميوو ياتازه فروټو داخستلو اراده وکړه ،نو اول به يې دا شيوخ العلماو ته واخستل بيا به يې خپل ځان او خپل اهل و عيال ته واخستل . (عقود الجمان ص ۱۹۱)

وکيع بن جراح رحمه الله وايې چې امام ابو حنيفة رحمه الله ته يو سړی راغلو ، ورته يې وويل چې زه دوه جامو ته مجبوريم او تا ته مې اراده کړې چې راسره دانيکي وکړې او يدغه جامو باندې زما دا قصد دی چې خپل ځان پرې جوړکړم ديو سړی مخکې چې هغه مازوم کوي ( لورراته راکوي ) .

امام صاحب ورته وويل دوه جمعې صبر وکړه او هغه صبر وکړو بيا دوه جمعې وروسته راغی بيا امام صاحب ورته وويل چې ترصبا پورې نور صبر وکړه بيا صبا ته راغی امام صاحب ورته دوه جامې راويستلې چې ددواړه قيمت دشل دينارونه زيات وو او ورسره يو دينار هم وو ، ورته يې وويل چې ما ستانوم باندې بغداد ته ځه سامان ليګلی وو هغه خرڅ شو او دا ستا جامې يې راوچتې کړې او زما راس المال ما ته واپس راغلو سره ديو دينار که چيرته تا قبول کړی خو وشوه او که دې نکړې قبولې نو زه دا دواړه خرڅوم او سره ديو ديناره يې ستا دخوانه خيرات کوم (عقود الجمان ص ۱۹٤)

امام ابو يوسف رحمه الله وايې : خلکو به ويل امام ابو حنيفة رحمه الله ، الله پاک خائسته کړی دی په خپل علم او عمل او سخا او خرچ او اخلاق قرانيو باندې.(عقود الجمان ص ۱۹٤- ۱٦۳)

يزيد بن هارن وايې چې زه د ډيرو خلکو سره مخ شوم لکن ما هيڅوک دامام ابو حنيفة نه زيات عاقل هوښيار او د زيات فضيلت واله او زيات ويردونکې دالله تعالی څخه ونه ليدلو همدارنګه عبد الله بن مبارک وايې چې ما يو سړې هم دامام صاحب څخه زيات عاقل نه دی ليدلی . (عقود الجمان ص ۲۰۱)

علی بن عاصم وايې که دامام ابو حنيفة رحمه الله عقل دنيمې دنيا دخلکو دعقلونو سره وزن کړای شي نو دده عقل به پرې راجح او زيات ، وزندار وي . ( عقود الجمان ص ۲۰۰).

بکربن خنیس وايي که چیرته جمع شي عقل دامام صاحب او عقول د ټول مخلوق چې دده په زمانه کې وه نو دده عقل به پرې راجح او زیات وزنداروي. (عقود الجمان ص ۲۰۲)

شدادبن حکیم رحمه الله وايي چې ما دامام ابو حنیفة رحمه الله نه زیات قوي فقیه ندی لیدلی او قاضي ابو عبدالله صیمری وايي څوک چې اراده لری چې د روند والی او د جهل د ذلت نه خارج شم او د فقه خوند دې حاصل کړم نو هغه دې دامام ابو حنیفة رحمه الله د مذهب کتابو کې نظر او مطالعه وکړي .(عقود الجمان ص ۱٦۰). وکیع بن جراح وايي چې ما هیڅ یو کس سره ملاقات ندی کړی چې هغه زیات فقیه او پوه وي دامام ابو حنیفة رحمه الله نه او یا زیات لمونځگذاره وي ددنه .

یحیی بن معین وايي چې فقهاء څلوردي ابو حنیفة او سفیان او مالک او اوزاعي رحمهم الله تعالی .(عقود الجمان ص ۱٦٤)

قاضي امام ابویوسف یعقوب بن ابراهیم وايي چې زه خامخا امام ابو حنیفة رحمه الله ته دعاکوم د خپل مور او پلار نه مخکې یقیناً مې دامام ابو حنیفة رحمه الله نه اوریدلي ویل به یې چې زه دعاکوم حضرت حماد رحمه الله ته سره د خپل مور او پلار ه او قاضي یحیی بن اکثم وايي چې کله به دامام ابویوسف رحمه الله نه د مسئلې پوښتنه وشوه نو جواب به یې ورکولو بیا به یې ویل چې دا وینا دامام ابو حنیفة ده او چاچې امام ابو حنیفه د خپل ځان او دالله پاک په مینځ کې وګرزولو نو هغه خپل دین پاک او محفوظ کړو .( عقود الجمان ص ۱٦۳)

امام عبدالله بن داود الخریبي وايي چې په اهل اسلامو باندې واجب دي چې امام ابو حنیفة رحمه الله ته په خپلو لمونځونو کې دالله تعالی نه دعاوي وغواړي .(عقود الجمان ص ۱٦۰)

نصربن علي وايي چې ما دعبدالله بن داود الخریبي نه اوریدلي دي چې د امام ابو حنیفة په حق کې خلق دوه قسمه دي ، یو حاسدان او بل جاهلان خوزما په نیزبنه حال پدې دواړو کې د جاهلانو دی .(عقود الجمان ۱٦۰) او دې ته ورته الفاظ (تبییض الصحیفه ص ۱۲٤ص ۱۲۱) کې هم شته . امام شافعي رحمه الله ویلي چې زما په علم کې زیات فقیه دامام ابو حنیفه نه بل هیڅوک نشته ( عقود الجمان ص ۱۵۳)

او دامام شافعی رحمه الله نه روایت دی چې دامام مالک رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه او یاده ترې وکړه چې ایا تاسو امام ابو حنیفة رحمه الله لیدلی وو هغه وویل لیدلی مې وو داسې یو سړی وو که د رسره خبرې کړي

وايي پدې چې دغه ستن دسروزروده نودرباندې به غالب شوی وو په دلائلو کې او درته به يې ثابته کړې وه چې دا دسروزروده. (مرقات ج۱ ص ۸۱عقودالجمان ص ۱۵۲).

امام شافعي رحمه الله وايي چې خلک په فقه کې دامام ابوحنيفة رحمه الله عيال او اولاددی اوپه بل روايت کې راغلي دي امام شافعي ويلي چې څوک اراده لري چې معرفت اوتبحرپه فقه کې حاصل کړی نودامام ابوحنيفة اودهغه دملګروسره دی ځان ملګری اولازم کړی. (مرقات ج۱ص ۷۹تبييض الصحيفه ص ۱۲۳عقودالجمان ص ۱۵۳). اوبعض علماء فرمايي : دامام شافعی رحمه الله نه پوښتنه وشوه : من ابوحنيفة رحمه الله قال : ماأدراک ما ابوحنيفة ثم ماادراک ماابوحنيفة ابوحنيفة بحر عميق لا تلج .

نضربن شميل وايي چې خلک دفقه نه غافل او ويده وو ، تردې چې امام ابوحنيفة رحمه الله راويښ اوراپيدارکړه په هغه څه چې ده استنباط اوبيان او راخلاصه کړي دي –دقران اوسنت نه .(مرقات ج۱ص ۷۹تبييض الصحيفه ص ۱۲۳عقود الجمان ص ۱۶۱)

دسفيان ثوري رحمه الله ورور وفات شوی وو ډيرخلک يې تعزيت ته جمعه شوي وو په دغه وقت کې امام ابوحنيفة سره دملګرو راغلو سفيان ثوري ورته را اوچت شو او مخي ته ورته راغلو ډيراکرام يې وکړو او بيا يې پخپل ځای باندې کينولو او ورته مخي ته کيناستلو کله چې خلک لاړل نو خپلو ملګرو سفيان ثوري ته وويل ډيرناشنا کار دې وکړو هغه وويل په علم کې لوی مقام لري ، که دعلم له وجې ورته نوی ودريدلی ، نودعمرلو جې به ودريدم ، اوکه دعمردو جې نوی ، نودفقه دوجې نه ودريدم ، که ددې نه نوی ، نودزياتې تقوی دوجې به ورته ودريدم ( مرقات ج۱\ص ۷۹ تبييض الصحيفه ص ۱۲۷) صاحب عقود الجمان يو ولس صفحې صفات مختصه دده ذکر کړی په تفصيل سره مونږبه دهغې ذکر اجمالاً وکړو.

(۱) امام صاحب په داسې زمانه کی پيدا شوی وو چې لوی لوی جماعتونه دصحابو موجود وو ، نودا دهغې اهل قرون نه دی چې نبي کريم ﷺ يې په خيريت اوعدالت باندې ګواهي ورکړې ده چې خيرالناس قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم)

(۲) امام ابوحنيفه صاحب تابعي دی بعضې صحابه يې ليدلي دي او اوريدلي يې هم ترينه کړې دي يو جماعت مصنيفينو د مناقبو دامام صاحب ويلي دي ، چې امام صاحب داتوصحابه سرېو اويوې ښځې نه

اوريدل كړي دي او بعضو ويلي دي چې اوه سري يو ښځه وه بعضي ويلي دي چې شپږسري يو ښځه او بعضو ويلي دي چې پنځه سړي او يوه ښځه ده او بعضو زيات خودلي دي اجمالي نومونه ديو ځو به ذكر كړو.

(١) حضرت انس بن مالك ﷺ المتوفي سـ ٩٣.ھ) .

(٢)حضرت عمروبن حريث ﷺ المتوفى سـ ٨٥ھ) .

(٣)حضرت عبدالله بن ابي اوفى ﷺ المتوفى سـ ٨٧ھ.

(٤) حضرت واثلة بن الاسقع ﷺ المتوفى سـ ٨٥ھ).

(٥) حضرت ابوطفيل عامربن واثلة ﷺ المتوفى سـ١٠٢ھ) .

(٦) حضرت السائب بن يزيدﷺ المتوفى سـ ٩٩ھ) .

(٧) حضرت عبدالله بن بسرﷺ المتوفى سـ ٩٦ھ).

(٨) حضرت محمودبن الربيع ﷺ المتوفى سـ ٩٩ھ) .

(٩) اويوه ښځه حضرت عائشة بنت عجردﷺ .

اوهمدارنګه د عبدالله بن انيس او عبدالله بن الحارث بن الجزء الزبيدى او جابربن عبدالله و معقل بن يسار او سائب بن خلاد او محمود بن لبيد رضى الله عنهم څخه يې هم اوريدل كړي دي او همدارنګه ذكر شوي دي د مناقبو په كتابونو كې د دوى تفصيلي بيان او د امام صاحب ورسره ليدنه كتنه او اوريدل د دې لپاره رجوع وكړئ د مناقبو كتابو ته لكه عقود الجمان ص ٥٠ الى ٦١ وتبييض الصحيفه ص ٦١ _ ٦٩ او تعليق په تبيض ته او داسې نورو ته.

(٣) دريم صفت خاصه امام صاحب په زمانه د تابعينو كې مجتهد او مفتي وو .

(٤) دده نه ډيرو لويو لويو امامانو روايتونه كړي دي وروسته به ذكر شي انشاءالله تعالي .

(٥) امام صاحب د څلور زره شيوخو استاذانو نه چې تابعين وو تحصيل كړى .

(٦) د ټولو ملكرو او شاګردانو ورسره اتفاق و چې دا اتفاق ديو امام سره هم دده نه وروسته ندى شوى.

(٧) امام صاحب اول هغه څوک وو چې تدوين د علم فقه يې وكړو او مرتب يې كړو په بابونو باندې اول د طهارت ،دويم د صلاة ، دريم د صوم ، څلورم ټول عبادات ، بيا معاملات ، بيا به يې ختم ول په ميراث باندې اول واضع د كتاب الفرائض او د كتاب الشروط دى، بيا امام مالک رحمه الله د موطاء په ترتيب كې دده اتباع وكړه

(۸) دده مذهب زيات خوردى په اقاليمو كې لكه : هند ،روم ، اوبلاد د ماوراء النهر او اكثره ښارونه دعجمو . همدارنګه لكه افغانستان ، پاكستان او تركيه او اكثره هندوستان .

(۹) امام صاحب په خپل ځان خرچ كولو او په اهل علم باندې به يې هم خرچ كولو د خپل كسب نه او د بادشاهانو او خانانو تحفې به يې نه قبلولې .

(۱۰) امام صاحب محبس كې په مظلوم حالت او د زهرو په وجه د سجدې په حالت كې وفات شو .

(۱۱) دده زيات عبادت او زهد او تقوى او سخا او زيات حجونه او شجاعت او اخلاق او داسې نور دا په طريقه دتواتر سره مشهوردي، داصفات صاحب عقود الجمان ديرپه تفصيل سره ذكر كړي . (ص ۱۴۷- تر۱۵۲)

عمربن حماد بن ابي حنيفة رحمهم الله وايي چې د امام صاحب دريخمو تاجروو او دده مشهور دوكان و وپه سراى دعمروبن حريث كې . (سيراعلام النبلاء ج٦/ ص٥٢١تهذيب التهذيب ج١٠/ ص٤٤٩)

## دامام صاحب صفات كماليه په تجارت كې

(۱) دغني زړه واله وو او دچانه به يې طمعه نه كوله .

(۲) دلوى امانت خاوندوو .

(۳) ډيرزيات سماحت او سخاوت پكې وو .

(۴) ډيرديندار او رشتيا ويونكى وو په تجارت كې يعنې په تجارتي امورو كې د حضرت ابوبكر صديق مشابه وو، بكيربن معروف رحمه الله وايي چې ما هيڅ يو سړى هم نه دى ليدلى زيات خايسته سيرت خاوند دحضرت محمد ﷺ په امت كې د امام ابوحنيفة رحمه الله نه .(عقودالجمان ص ۱۸۹)

## دامام صاحب احتياط قدم په قدم باندې

يو ځل په كوفه كې يو چيلي غصب شوې وه امام صاحب رحمه الله پرې خبر شو نو د خلقو نه يې تحقيق وكړو چې دچيلې عمر څومره كيدى شي درايو اتفاق په دې باندې شو چې يو چيلي يا د پسه عمر اوه كالو پورې كيدى شي ،نو د چيلو غوښه يې تراوه كالو پورې ونه خوړله .

پدغه زمانه كې هغوى رحمه الله يو فوجي اوليدو چې دچيلې غوښه يې وخوړله او د هغې نسري يې د كوفې په نهر كې او غورځوله هغوى رحمه الله د ماهي د عمر متعلق تپوس او كړو او د هغې تحقيق يې وكړو درايو اتفاق

پـه دې بانـدې وشـو چـې دمـاهي عمريو کـال وي نولهـذا امـام صـاحب تريو کالـه پـورې دمـاهي غوښـه ونـه خوړله.(الخيرات الحسان ص ۱۰۰)

## امام ابوحنيفة رحمه الله سل ځلې الله رب العزة په خوب ليدلى دى

امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي : ماالله رب العزة ﷻ يوکم سل ځلې په خوب کې وليدلو ، بيا مې دځان سره دافيصله وکړه ، که سې په سلم ځل باندې وليدلو نو زه به ترينه خامخا داسوال کوم چې دامخلوق به ستا دعذاب څخه په ورځ دقيامت کې په څه باندې بچ شي ، نو بيا مې په سلم ځل باندې وليدلو سوال مې ترينه وکړو چې يارب عزجلالک وجل ثناءک وتقدست أسماءک په څه به دامخلوق ستا له عذابه په ورځ دقيامت بچ شي الله سبحانه وتعالى وفرمايل : هرڅوک چې دالاندې کلمات سحر اوماښام وايي ، نو زما دعذابه به محفوظ وي. (سبحان الله الابد الابد سبحان الله الواحد الاحد سبحان الله الفرد الصمد سبحان الله رافع السماء بغير عمد سبحان من بسط الارض على ماء جمد سبحان من قسم الرزق ولم ينس احداً سبحان من خلق الارض فاحصاهم عدد سبحان من لم يتخذ زوجة ولا ولداً سبحان الله الذى لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفواً احد ) (عقود الجمان ، ص : ۲۸۹)

## دامام ابوحنيفة رحمه الله فراست

اسماعيل بن حماد بن ابي حنيفة رحمه الله فرمايي چې زمونږيو ژرنده ګرى ګاونډى وو نهايت متعصب رافضي شيعه وو دهغه سره دوه قچرې وې دتعصب نه يې په يوه قچره باندې ابوبکرنوم کيخودلى وو اوپه بله باندې عمراتفاقا يو قچريوشپه په لغته باندې ووهلو اوسريې پرې وچولو او مړشو ، امام صاحب چې کله پرې خبر شو هغه ورويل تاسوتفتيش اومعلومات وکړئ دابه هغه قچروهلي وي چې ده نوم عمرپرې کيخودلى وو .

هغوى چې معلومات وکړو همغه قچرې وهلى وو . ابن حجرده وجه دابنودلې ده چې حضرت عمر رضي الله عنه مظهر دجلال وو اوحضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه مظهر دجمال وو . (تبييض الصحيفة ص ۱۲۰ سيرة النعمان ص ۸٦).

قال ابن المباک فى مدح الامام الاعظم :

لقد زان البلاد ومن عليها امام المسلمين ابوحنيفة
بآثار وفقه فى حديث كآثر الزبور على الصحيفة

فما فی المشرقین له نظیر ولا بالمغربین ولا بکوفة
رأیت العائبین له سفاهاً خلاف الحق مع حجج ضعیفة

وقال البعض فی مدحه :

ایا جبلی لنعمان ان حصاکما لتحصی وماتحصی فضائل نعمان
جلائل کتب الفقه طالع تجدبها د قائق نعمان شقائق نعمان

قال ابو المؤید موفق بن احمد المکی :

غدا مذهب النعمان خیرالمذاهب کذا القمر الوضاح خیر الکواکب
تفقه فی خیرالقرون مع التقی فمذهبه لا شک خیر المذاهب

## بشارت دقرآن اودحدیث پرامام ابوحنیفه

اودابشارت دمحمدرسول اللهﷺلویه اوښکاره معجزه ده.

(۱) الله تعالی فرمایي : (وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّايَلْحَقُوْا بِهِمْ) سورة جمعه.

**ترجمه:** اوالله لیږلی دی محمدﷺپه مینځ دنوروراتلونکو کې له مؤمنانونه چې ندي رسیدلي دوی هغوی (پخوانیو) ته په فضیلت کې

(۲) دسورة محمداخري اية (وَاِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُوْنُوْا اَمْثَالَكُمْ)

**ترجمه:** اوکه وګرځيدې تاسې له ايمان اوسخانه نوالله پاک به بدل راولي يوقوم بل بې له تاسې بيابه نه وي هغوی پشان دتاسې په اعراض کې داحکام الهيه ونه، درسول اللهﷺځينې چې کله داول ايات په باره کې اوددې دوهم ايات باره کې پوښتنه وشوه چې يارسول اللهﷺ دغه بل قوم به څوک وی نورسول اللهﷺدسلمان فارسي په اوږه لاس کيخوداووې فرمائل چې که دين ،وفی رواية ايمان، اوبل رواية کې ،علم دثرياستوري ته جيګ شي نويوسړی اوبل رواية کې څه کسه سړي به يې را حاصل کړي يعنې راکوزبه يې کړي خودفارس اولاده اوبچې به وي فارس مطلق عجم ته ويل کيدل نوښکاره خبره ده چې عجم کې دسلمان فارسي نه وروسته دامام صاحب نه زيات عالم اوفقيه بل نشته.

امام مالک رحمه الله مدينه منوره کې وو، احبحی عرب وو . اما شافعي رحمه الله قريش مطلبی عرب دی. امام احمد رحمه الله مکه مکرمه کې وو عرب دی، فتعين الامام الاعظم ابي حنيفة رحمه الله تعالى . (تبييض الصحيفة ٦٠)

تفسير شبير احمد عثماني چې مشهور دی په تفسير کابلي سره هغه ددې دواړه اياتو لاندې ليکلی دي چې په زرهاوو علماوو دا ايت دامام صاحب لپاره پيش گويي گرزولې ده.

**حديث الرسول ﷺ:**

درسول الله ﷺ په ډيرو احاديثو کې ترثريا ستوری پورې درجل فارس دعلمي پرواز ذکر راغلی دی. (بخاري ج٢\ص ٧٢٧ مسلم ج٢ص ٣١٢ ترمذی ص ٤٧٦) اوپه نورو ډير احاديثو کې دخير القرون دخيريت اوبهتروالي ذکر دی. [بخاري ج١/ ص٣٦٢/ ٥١٥/ ٩٥١/ ٩٨٥ مسلم ج٢/ ص ٣٠٨/ ٣٠٩ ترمذی ص٢٤٣ ص٥٤٨) نو دواړه قسم احاديث چې سره يو ځای کړی نتيجه به يې صرف او صرف امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله شي ځکه هغه رجل فارس چې په خير القرون کې يې دين مرتب کړی و، صرف او صرف امام صاحب وو او ددغه ملازمت ددين حنفي له وجهې دهرخاص او عام په ژبه امام صاحب ته دابو حنيفة کنيت او دا امام اعظم لقب جاري کړی شو، ځکه چې په يو حديث کې رسول الله ﷺ همدغه لقب ته اشاره کړې ده رسول الله ﷺ فرمايي: چې (اعظم الناس فى الاسلام نصيباً اهل فارس).

**يوبل حديث درسول الله ﷺ:** دحديث مفهوم پداسې ډول دی:

بيشکه الله پاک نه اوباسي علم دخلکو نه ليکن قبض کوي الله پاک علماء (وفات کوي) پس او چت به شي ددوی سره علم اوپه خلکو کې به جاهلان مشران پاتې شي او فتوی به ورکوي بغير دعلم نه پس خپله به هم گمراهان وي او نور به هم گمراهان کوي (مسلم ج٢ص ٣٤٠)

نو ډير افسوس دهغه چا په حال چې دقرآن دبشارت مصداق او د رسول الله ﷺ دبشارت مصداق يعنې دخير القرون درجل فارس تقليد پرېږدي او دانگريز ددورې جاهلان خپل مشران کني.

# څلورم مبحث

## دامام ابوحنيفة رحمه الله استاذان:

دامام صاحب ديرزيات استاذان وو اوزيادت دمشائخ دلالت کوي په زيادت فهم دانسان باندې ځکه دهرشيخ نه جدا جدا فوائد حاصل شي نوانسان ته الله مکمل د فهم لارې پرانځې اودهرعالم سره خپل فوائدعلميه دي چې هغه خپلو شاګردانو ته بيان کوي، نودغه رنګه امام ابوحنيفه رحمه الله ديو مرجع نه علم نه ووزده کړی بلکې دمختلفو علماوو نه يې زده کړه کړې وه چې په هغې کې محدثين هم وو اوبعض فقهاء وو اوبعض اهل بيت وو ، بعضو علماوو په خپلو کتابونو کې ليکلي دي چې امام صاحب داهل بيت علماوو دمجالسونه استفاده کړيده اوداهل بيتو سره يې زياته مينه اومحبت کولو . (الفقه الحنفية وادلته ج۱ ص ۱۸) اوبعضې کتابونو کې دده داستاذانو شمير څلور زره ليکلی دی. (عقود الجمان ص : ۶۲ تبييض الصحيفة ص : ۷۱).

حافظ ابن حجر الهيثمي په الخيرات الحسان کې ليکلي دي چې دده استاذان ديردي په دې مختصرکتاب کې ذکرنه کيږي او ابو حفص وايي چې دده مشائخ څلورزره وو اوبعضې وايي چې دا څلور زره شيوخ صرف تابعين وو (التعليق علي تبييض الصحيفه ص ۷۰) اوپه عقود الجمان کې څلورم فصل کې دحروف هجا په ترتيب د امام صاحب استاذان يې ددرې سونه زيات ذکرکړی دی ما چې حساب کړل غالبا درې سوا ودوه ويشت وه (۳۲۲) اوابتدايې په محمدنامې استاذباندې کړيده لوجه دتبرک نه د حضرت محمد ﷺ په نوم باندې. (عقودالجمان ص ۶۲ مطبعه مکتبه نعمانيه محله جنګي پشاور اوحافظ ذهبی په سيراعلام النبلاء ج۷ ص۶۳۳).

اوپه تذکرة الحفاظ کې ج۱\ص۲۰۷ دامام صاحب ديرواستاذانو تذکره شويده اوخطيب بغدادليکلي چې يوځل امام ابوحنيفة رحمه الله دابو جعفر منصورخواته راغی اودهغه سره عيسی بن موسی هم په دغه محل کې ناست وو چې داهم لوی عالم وه اوهغه دامام صاحب تعارف وکړو منصورته چې په دنياکې دا پدې زمانه کې ددنيالوی عالم دی نومنصورامام صاحب ته وايې چې تادچانه زده کړه کړې ده نوامام صاحب ورته وويل چې دحضرت عمربن الخطاب ﷺ د شاګردانو نه او دحضرت علي کرم الله وجهه دشاګردانو نه اود حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دشاګردانو نه اود حضرت عبدالله بن عباس ﷺ د شاګردانو نه اودحضرت ابن عباس ﷺ په دورکې

په مخ دځمکه باندې دده نه زيات لوی عالم نه و، نو منصور امام صاحب ته وويل خوشحالي ده يقيناتا مضبوط کړی دی په علم کې خپل نفس چې ستاځنګه خوښه شوی ده. (تاريخ بغدا د۱۷۹صفحې نه تر۱۸۳پورې تبيض الصحيفه ۷۰)

او امام جلال الدين سيوطي رحمه الله په تبييض الصحيفة کې د اويا (۷۰) صفحي نه ترشپږاتيا صفحې پورې دده استاذان ذکر کړي چې داتيا ۸۰ پورته دی او ددوی پوره حالات او تذکره محمد عاشق الهي په تعليق على تبييض الصحيفة باندې کړی دی.

دلته دټولو ذکر نه کيږي خو صرف يو استاذ به يې ذکر کړو مشت نمونه خروار حماد بن ابي سليمان رحمه الله تعالى او دا په مسلم الاشعري الکوفي الفقيه سره مشهور وو ده دانس او زيد بن وهب او سعيد بن مسيب او سعيد بن جبير او عکرمة او ابي وائل او ابراهيم النخعي وغيرهم رحمهم الله نه اکثره روايات نقل کوي او دده نه نور أيمة لکه شعبه او حماد بن سلمه مسعر بن کدام هشام الدستوايي او ابو حنيفة حکم بن عتيبه اعمش مغيره او داسې نور رحمهم الله تعالى نقل کوي، امام عجلي رحمه الله وايي دا دکوفې او سيدونکې وو او ثقه وو او دابراهيم النخعي په شاګردانو کې ډيرپوه و. (التهـذيب ج۳ص ۱٦) او دده په باره کې علماء وايي چې دا ډير سخي او ډير مالداره و، په رمضان المبارک کې به يې هرمابنام پنځه سوه (۵۰۰) کسانو ته افطار يعنې روژماتي ورکولو، شعبه رحمه الله وايي دا ډير ربښتني وو او امام ابو حنيفة رحمه الله اتلس (۱۸) کاله دده سره شاګردي کړې وه او هغه ورله دفراغت سند ورکړی وو. (شذرات الذهب ج۱ص ۱۵۷ تاريخ بغداد ج۱۳ص ۳۲۳).

## پنځم مبحث

### دامام صاحب شاګردان:

دامام صاحب نه ګڼ شمير محدثينو او فقهاء استفاده کړې ده مشهور عالم دين امام مزی رحمه الله په تهذيب الکمال کې دده اويا (۷۰) شاګردانو تذکره کړې ده او علامة محمد بن يوسف الصالحي په خپل کتاب عقود الجمان پنځم باب کې وايي پنځم باب دی په بيان دبعض هغه خلقو کې چې دامام صاحب نه يې حديث او فقه زده کړې ده نو هغه دالاندې ذکرشوو ښارونو کې دي.

مکة، مدینه، دمشق، بصره واسط، موصل جزیره، رقه، رملة، مصر، یمن، یمامة، بحرین، بغداد، اهوازن، نصیبین، کرمان، اصبهان، حلوان، همدان، نهاوند، الری، قومس، دامغان، طبرستان، جرجان، نیسابور، سرخس، نساء، مرو، بخاري، سمرقند، هرات، قهستان، خوارزم، سجستان، مدائن، مصیصه، حمص، کِسر صغانیان، ترمذ، بلخ، قوهستان او داسې نور اسلامي ممالک. دده د شاګردانو شمار یېخې متعذر دی چې ټول ذکر کړی شي. (عقود الجمان ص ۸۲) او په عقود الجمان کې دیوا تیا صفحې نه تر یو سل درې دیرشت (۱۳۳) صفحې پورې تقریبا نهه سوا وشل (۹۲۰) شاګردانو نومونه یې ذکر شوي دي.

او حافظ مزی په تهذیب الکمال کې دده د شپږنوی (۹۶) شاګردانو نومونه ذکر کړي دي او ملا علي القاري په کتاب مناقب الامام ابي حنیفة کې ددوی تقریبا یوسلو پنځوس (۱۵۰) نومونه ذکر کړي دي او علامه کردري دده شاګردان او سوه او اتیا ذکر کړیدي. (عقود الجواهر المنیفة ص ۵۵٦)

او جلال الدین السیوطي صاحب دده د شاګردانو نومونه ذکر کړي پخپل کتاب تبییض الصحیفه کې د (۸۷) او وه اتیا صفحې نه تر یو سل اولس (۱۱۰) صفحې پورې نو که څوک د هر یو جزیې تفصیلاتو خواهش لري بايد دغه کتابونه ملحوظ کړي او دوی ته رجوع وکړي خاص بیا تعلیق د محمد عاشق الهي علي تبییض الصحیفة ته.

د امام بخاري رحمه الله شیوخ او استاذان په احناف کې چې د امام صاحب شاګردان یا د شاګردانو شاګردان دي او د امام ابو حنیفة رحمه الله د فقهي دشورا قوی غړي وو چې یو مسئله به د غه مجلس د شورا ته راغله نو دلته به میاشت یا زیات وخت مطرح کیدله او دلائل به پرې قائم کیدل بیا د قبولیت عند الکل نه پس به امام ابو یوسف رحمه الله په اصول کې ثبت کوله د دعوی د یو څو اجمالي نومونه په لاندې ډول دي.

(۱) الا مام الجلیل عبد الله بن مبارک رحمه الله تعالی.

(۲) الامام الجلیل یحیی بن سعید القطان رحمه الله یحیی بن معین رحمه الله وایې چې یحیی القطان به د امام صاحب په قول فتوی ورکوله اسحاق بن ابراهیم رحمه الله وایې ما یحیی القطان لیدلی وو، چې د ماذیګر لمونځ به یې وکړو نو د مسجد د مناري په بیخ کې به یې تکیه وکړه او علی بن المدیني او احمد بن حنبل او یحیی بن معین رحمهم الله او داسې نور و به دده نه د حدیثو پوښتنې کولې او دوی به په پښو باندې دده مخې ته ولاړ وه او دده د تعظیم او هیبت نه به نشو کیناستلی.

(۳) الامام الزاهد فضيل بنَ عياض دامام اعظم شاګرد دامام الشافعي استاذ دبخاري اومسلم شيخ دی .

(۴) وکيع بن الجراح رحمه الله دامام اعظم صاحب رحمه الله د فقهي مجلس غړی دامام شافعي رحمه الله خاص استاذ اودامام صاحب رحمه الله په قول به يې فتوی ورکوله .

(۵) جرير بن عبد الحميد بن قرط رحمه الله دامام صاحب رحمه الله شاګرد اودرواة الستة شيخ دی .

(٦) يحيى بن اکثم رحمه الله شيخ البخاري .

(۷) يحی بـن صـالح الوحـاظی رحمـه الله دامـام محمـد او امام مالـک رحمهمـا الله هم شـاګرد دی شيخ البخاري .

(۸) يوسف بن بهلول رحمه الله شيخ البخاري .

(۹) عبد الله بن داود الخريبي او ابراهيم بن طهمان رحمهما الله دواړه درواة الستة شيوخ دی .

(۱۰) حسن بن صالح رحمه الله استاذ البخاري ومسلم

(۱۱) حفص بن غياث ده ته به امام صاحب ويل چې زما د زړه خوشحالونکيه اودغم لرې کوونکيه .

(۱۲) داود بن رشيد رحمه الله شيخ البخاري .

(۱۳) زهير بن معاوية رحمه الله شاګرد دامام صاحب اودرواة السة شيخ اواستاذ .

(۱۴) محمد بن فضيل اومغيرة بن مقسم رحمهما الله درواة الستة استاذان اوشيوخ دي .

(۱۵) يزيد بن هارون رحمه الله شيخ اواستاذ درواة الستة دی .

(۱٦) زائدة بن قدامة رحمه الله شيخ دبخاري اومسلم .

(۱۷) زکريا بن ابي زائدة رحمه الله استاذ دبخاري اوده ځوی يحی دامام صاحب دتدوين دشعبه ديرش (۳۰) کاله کاتب وه

(۱۸) معلي بن منصور رحمه الله شيخ اواستاذ دبخاري .

(۱۹) نعيم بن حماد رحمه الله دامام اعظم شاګرد .

(۲۰) ابو عاصم ضحاک بن مخلد رحمه الله مشهور په نبيل باندې وه

(۲۱) مکي بن ابراهيم البلخي رحمه الله استاذ البخاري .دامام اعظم رحمه الله شاګرد .

(۲۲) محمدبن عبدالله المثني الانصاري رحمه الله شيخ البخاري دامام زفراوابي يوسف شاگرد. (تبييض الصحيفه ص ۷تر۱۱) دا اخري دري هغه شاگردان دامام صاحب دي چې امام بخاري کوم فخر اعزاز اوامتياز دروايات ثلاثيات حاصل کړی هغه يې ددوی نه حاصل کړی

دابوعاصم نه يې شپږ ثلاثيات روايت کړي. پنځم ،اتم ،نهم، پنځلسم ،اتلسم ،يويشتم .اودمکي بن ابراهيم نه يې يوولس ثلاثيات روايت کړي څلوراولني شپږم ،اوم، يولسم ،دولسم ،څوارلسم ،اولسم، نولسم.

اومحمدالانصاري نه يې درې ثلاثيات دی لسم ،شپاړسم ،شلم ، اودوه پاتې شوديارلسم يې دعصام بن خالدالحمصي روايت دی اودوه ويشتم يې دخلادبن يحی الکوفي روايت دی. (تعليق على تبييض الصحيفه ص ۱۱۱)

اول تدوين دعلم الشريعت په ترتيب دابواب امام صاحب کړی دصحابه وو اعتمادوو په خپلو قوي حافظوباندې نوهغوی تدوين ته ضرورت نوو اوامام صاحب دتدوين دشعبې لپاره څلويښت کسان مقررکړي وو چې مشران پکې امام ابويوسف اوزفر اوداود الطائی اواسدبن عمرواويوسف بن خالد السمتی اويحی بن زکرياوه. (تبييض الصحيفة ص /۱۳۸/ او ۱۰۸)

داودبن رُشيد وايي که دامام صاحب يوشاگردهم نوائی بغيردامام ابويوسف نه نوهم دده لپاره په ټول مخلوق دفخرلپاره همداکافي وو(حسن التقاضي ص۱۵ تبييض الصحيفة ص ۱۰۸) داځکه چې امام ابويوسف ډيرزيات قابل عالم فقيه وه زيات مناقب لري امام احمدبن حنبل رحمه الله وايي ماابتدايی زدکړه دحديثوددهٔ نه شروع کړه اوامام احمددامام ابويوسف اومحمد رحمهم الله نه درې قماطر (دفترونه) ليکلی وه اوامام ابويوسف اولنی هغه شخصيت دی چې په اسلام کې په قاضي القضاة ملقب اومدعوشو. تبييض الصحيفة ص ۱۰۸).

## شپږم مبحث

### امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله اوعلم الحديث:

بعضې حاسدينو اومعاندينو دغلط فهمی اويا دتعصب په بنا باندې په امام صاحب باندې دقلت روايت اوقلت عربيت او ارجائيت الزمات لګولي دي دامام صاحب هرقسم تعديل اوتوثيق اظهرمن الشمس دی

نو د بعضو محدثینو جرحې یا مبهمې دي او یا دوی خپله متعصب او متشدد او متعنت دي د دوی جرحه هیڅکله معتبره او مسموع نده .(کذا في الرفع والتکمیل في الجرح والتعدیل لمولنا محمد عبدالحي اللکنوی)

دصحابه وو او تابعینو په زمانه کې کوفه د علم حدیث او علم فقه تر ټولو لوی مرکز وو دا ښار حضرت علي ﷺ اباد کړی وو او څرنګه چې دا د نورو مسلمانانو مسکن وو، له دې وجهې نه یې د تعلیم او تربیت طرفته خاصه توجه کړې وه په دې مرکز کې زیات صحابه او سیدل د حضرت عمر ﷺ د خلافت په دوره کې پکې څلوېښت صحابه او تابعین د حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ په شمول وسیدل. (تاریخ طبری ج٤\ص ٤١١)

بیا وروسته نهه نوي بدري صحابه او درې سوه لس د بیعة الرضوان والاصحابه هلته اباد شول (الفتوحات الاسلامیة ج۱\ص ۸۳ تاریخ ابن الاثیر ج۲\ص ۱۷۴). وروسته نور هم زیات شو مؤرخ عجلي فرمایې چې کوفه کې یوزرو پنځوس صحابه او سیدل .(فتح القدیر ج۱۲/ص ۷۲)

حضرت عمر ﷺ په خپله دوره د خلافت کې د تعلیم لپاره حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ورلیږلی وو او بیایې اهل کوفه ووته وفرمایل (اثرکم بعبدالله علي نفسي) رسول الله ﷺ د قران په پوهانو کې عبدالله بن مسعود ﷺ اول نمبر شمار کړی دی.( بخاري ج۱ص ۵۳۱) (مسلم ج۲\ص: ۲۹۳ )

بل ځای کې فرمایې چې زه د خپل امت لپاره هغه څه خوښوم چې ابن ام عبد (عبدالله بن مسعود ﷺ) یې ورته خوښوي او هغه څه ورته بد ګڼم چې . . .الله بن مسعود ﷺ یې ورته بد ګڼي .(مجمع الزوائد ج۲ص ۲۹۰).

بل ځای کې فرمایې چې د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ عهد مضبوط ونیسې .( ترمذي ج۲ص۲۲۱) الناطق بالحق والصواب حضرت عمر ﷺ فرمایې چې عبدالله بن مسعود ﷺ د علم کامله خزانه ده ( تذکرة الحفاظ ج۱\ص ١٤)

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ تر اخر عمر پورې په کوفه کې اوسید و او دغه ښارېې د علم حدیث او علم فقه نه معمور او اباد کړی وو کله چې باب مدینه العلم خلیفة راشد حضرت علي ﷺ کوفي ته تشریف راوړو نو دېې وفرمایل الله جل جلاله دې په عبدالله بن مسعود ﷺ رحمتونه نازل کړي چې دا ښاریې د علم نه ډک کړو .(مقدمة نصب الرایة ص ۳۰) او بیایې وفرمایل چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او دده ملګري د کوفې چراغونه دي.(مناقب موفق ج۲ص ۱٤۰)

حضرت علي ﷺ چې کله کوفې ته تشريف راوړونو نوريې هم رونق زيات شو حضرت مسروق بن اجدع فرمايي چې څه په صحابه ووکې وګرزيدم (فوجدت علمهم ينتهي الي ستة) نو دتولو صحابه وو علم په دغه شپږ وصحابه وو کې راجمع شوي وو.

(۱) حضرت علي ﷺ.

(۲) حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ.

(۳) حضرت عمربن الخطاب ﷺ.

(٤) حضرت زيدبن ثابت ﷺ.

(٥) حضرت ابوالدرداء ﷺ.

(٦) حضرت ابي بن كعب ﷺ.

(ثم نظرت فوجوت علمهم ينتهي الي اثنين علي ﷺ وعبدالله ﷺ) بيا مې نظروکړو پس معلوم مې کړو علم ددوی چې راجمع شوی دی وو په حضرت علي او حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنهم کې. (طبقات ابن سعدج۲ص۵۲)

نو دصحابه وو دعلم خلاصه په حضرت علي ﷺ او حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ کې جمعه شوی وو او دادواړه دعلم غرونه په کوفه کې اوسيدل او هر کلي کې دعلم حديث مدرسه وه علامه ابو محمد الرمهر مزی رحمه الله په (المحدث الفاضل) کې دانس بن سيرين مقوله نقل کړيده چې (اتيت الكوفة فوجدت بها اربعة الاف يطلبون الحديث واربع ماة قد فقهوا) يعنې کوفه کې مې څلورزره دعلم حديث طالبان او څلورسوه فقهاء وليدل.

علامة تاج الدين سبکی په (طبقات الشافعية الكبرى (کې دحافظ ابوبكربن داود قول رانقلوي چې زه کوفې ته ورسيدم اوزماسره يو درهم وو ماپه هغې سره ديرش مده لوبيا واخستل مابه دورځې يو مد لوبيا خوړل او دحضرت اشبع نه به مې يوزر احاديث ليکل تردې چې په يوه مياشت کې مې ديرش زره احاديث وليکل) نو چې په کوم ښارکې په يوه مياشت کې ديو استاذ نه صرف يو شاګرد دريرش زره احاديث ليکی ددې ښار دعلم اندازه به څومره وي يو اځې دبخاري رحمه الله درې سوه استاذان دکوفې وونو امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله په همدې کوفه کې پيدا شو او همدلته يې تربيت وشو او همدې کوفې دشيو خونه يې علم حاصل کړو.

**اول اعتراض :** دقلت روايت حديث چې ابن خلدون دبعض الناس نه نقل کړی چې امام صاحب ته ټول اولس ۱۷ حديث يادوه اوابن عدی په الکامل کې ليکلي چې درې سوحديث ترې نه نقل دي اوبعضې وايي پنځه سوه ۵۰۰، اوبعضې وايي چې اوسوه ۷۰۰،

او بعضې وايي شپږسوه شپږشپيته اوبعضې وايي يونيم سل (۱۵۰) ترينه نقل شوي دي.

**اول جواب منعی :** داخبره اتهايې بي بناده افتراده هيڅ اصل او حقيقت نلري په علم حديث کې دامام صاحب جلالت قدر يومسلم اوناقابل انکارحقيقت دی ځکه امام صاحب بالاتفاق مجتهد دی او دمجتهد په شروطو کې لازمي شرط دادی چې مجتهدلره به کامل بصيرت اوپوهه اوعبورتام په شپږواشياءکې حاصل وي.

قران، حديث، اثار، تاريخ، لغت، قياس.

که چيرته امام صاحب کامل العلم في الحديث نوی نوڅرنګه مجتهد شوسره ددې چې دده په علم بالحديث باندې لويولويو علماء اعترافونه کړي دي د مکي ابن ابراهيم دامام صاحب شاګرد مخکې تذکرة شوی ددا دامام بخاري قابل فخر استاذ دامام صاحب په باره کې داسې وايي (ان أباحنيفة کان امامًا).

حضرت امام ابوداود رحمه الله فرمايي (کان ابوحنيفة اعلم اهل زمانه) او دا ظاهره ده چې په دغه زمانه کې دعلم اطلاق په علم حديث اوعلم فقه باندې کيدلو (تذکرة الحفاظ ج۱ص ۱۶۰)

مشهور محدث يزيدبن هارون رحمه الله فرمايي (ادرکت الفاالغ) مازرشيوخ وليدل اواحاديث مي ترينه وليکل ليکن دامام صاحب نه مي لوی فقيه اولوی پرهيزګاراولوی عالم ونه ليدلو. (تـذکرة الحفـاظ ج۱ص ۱۹۵).

ديحی بن نصررحمه الله ويناده چې زه يوځل دامام صاحب ملاقات ته ورغلم، کمره يې دکتابونونه ډکه وه ماوويل داڅه دي هغه جواب راکړچې دادحديثو کتابونه دي. (عقودالجواهرالمنيفة لعلامة زبيری)

شيخ محدث عبدالحق الدهلوي ليکلي په شرح سفرالسعادت کې چې امام صاحب سره زيات صندقونه وو چې په هغې کې داحاديثو مسموعوذخيره محفوظه وه دامام حسن بن زيادبيان دی چې امام صاحب څلورزره احاديث روايت کړي دوه زره يې دحمادنه اودوه زره يې دنوروم‍شائخ نه روايت کړي دي. (موفق بن احمدالمکي ج۱ ص ۹۶).

امام ابويوسف ددرې لاکه احاديث حافظ وو اوپنځوس زره دهغه يو اځې موضوعي احاديث ياد وه نو دده دشيخ امام ابوحنيفة رحمه الله به په حديثو کې کوم مقام اوقدروي، وکيع بن جراح رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله څخه نهه سوه (۹۰۰) احاديث روايت کړي دي .( درس ترمذی ج۱\ص ۹۵)

دتـاريخ اوسـيرپه کتـابونو کې دامـام صـاحب ډيـرې زيـاتي حيرانـونکې واقعـات شـته يوبـه يـې ذکرکړو ابوعبدالله الصيمري روايت دی چې عبدالله بن عمر ويلي چې مونږ دامام اعمش سره ناست وو ديو څو مسـائلو پوښتنه ترې وشوه امام اعمش ابوحنيفة رحمه الله ته وويـل چې دغـه مسـائلو کـې تـه څـه وايې هغـه جوابونه ورکړل امام اعمش رحمه الله ورته وويل چې دغه جوابونه دې دکوم ځايه کړل؟

امام صاحب وفرمايل ( انت حدثتناعن ابي صالح عـن ابي هريـرةﷺ عـن رسـول اللهﷺ بـکـذا وانت حدثتناعن فلان الصحابي عن رسول اللهﷺ بـکذا ) او داسې يو څو احاديث يې پدغه طريقه ذکر کړل.

امام اعمش رحمه الله ورته وويل بس کافي دي درته مادرته په سلوورځو کې بيان کړي وو او تا په يو ساعة کې دغـه ټـول بيـان کـره بيـايې وفرمايـل چې ای دفقهـاوو ټولـيـه تاسـو طبيبان او متخصصـين يـې اومـونږ دوا فروشان يو ، اوتـه يو داسې سړی يـې چې تا نيوکـه کـړې ده په دواړو باندې هم طبيب يعنـې فقيـه يـې اوهـم دوافروش يعنـې محدث يـې . (عقودالجمـان ص ۲۵۷) اودد ې نـه عـلاوه مخکـې ذکرشوچې دامـام صـاحب څلورزره استاذان وو نوچې دهراستاذ څخه يې يويو حديث زده کړی وي هم څلورزره احاديث شوو سره ددينه چې هغه وخت حفاظ حديث هم زيات وه.

او وروسته پکې کمبوت راغلی او دامام بخاري زر استاذان دي او احاديث ورته شپږلاکه ياد وه چې ده ترينه دصحيح بخاري احاديث تاليف کړي دي اوپه دغه وخت کې حفاظ حديث کم پيدا کيدل او امام بخاري دامام صاحب دشاګردانو شاګرد دی نو هرانسان بايد دخپل معنوي پيغمبرنه چې عقل دی پوښتنه وکړي چې دامام صاحب به څولاکه احاديث ياد وو.

ابن کرامـة وايې چې مونږ دوکيع بـن الجـراح سره يـوه ورځ وو يو سـړي وويـل امـام ابوحنيفـة رحمـه الله خطاءشوی حضرت وکيع رحمه الله وويـل ابوحنيفـة څرنګه په خطائې قادرشو پداسې حال کې چې دامام ابويوسف او امام زفر او امام محمد غوندې خلک ورسره دي په قياس او اجتهاد کې او ديحی بن زکريا او حفص بن غياث او حبان ومندل دواړه دعلی ځامن داسې خلق ورسره دي په حفظ الحديث اومعرفة الحديث کې.

اوقاسم بن معن بن عبدالرحمن بن مسعود غونديٍ کسان ورسره دی په معرفة دعربيت اولغت کي اوداود بن نصير الطايي اوفضل بن عياض غوندی کسان ورسره دی په زهدا وتقوی کي ، نوچاسره چي داسي شاگردان او اهل مجلس وي ، نو څنگه خطاء کيږي که چيرته خطاءشوی وي نودوی به بيرته حق اوصواب ته واپس کړی وي .

بيا وکيع وويل هرڅوک چي دامام صاحب په حق کي داسي ويناکوي هغه به پشان دځناوروي بلکي دهغوی نه به هم زيات بي لارې اوگمراه وي .( عقودالجمان ص ۱۵۱)

امام صاحب ويلي دي چي ماپنځه حديث دپنځه لاکه حديثونه راجمعه کړيدی : (قـال الامـام والتاسع عشران تعمل بخمسة احاديث جمعتهامن خمسة ماة الف حديث .

(الف) انماالاعمال بالنيات وانمالکل امرءمانوي .

(ب) ومن حسن اسلام المرء ترکه مالا يعنيه .

(ج) لايؤمن احدکم حتي يحب لاخيه مايحب لنفسه.

(د) ان الحلال بين وان الحرام بين وبينهمامشتبهات لايعلمهن کثيرمن النـاس فمـن اتـق الشـبهات استبرءلدينه وعرضه ومن وقع في المشبهات وقع في الحرام کراع يرعي حول الحمي يوشک ان يقع فيه الاوان لکل ملک حمي الاوان حمي الله محارمه الاوان في الجسد مضغة اذاصلحت صـلح الجسـدکله واذافسـدت فسدالجسـد کله وهي القلب .

(ھ) المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده. (وصايا امام اعظم ص٦٥)دپښتو ترجمه کي ص : ۴۳ ده، نودامام صاحب په صداقت اورشتياوالي باندې ټوله دنياموافقه ده نوچي پنځه لاکه په پنځوکي جمعه کوي خوپنځه لاکه به ورته خامخا يادوو طحاوي روايت کړی دامام ابويوسف نه چي امام ابوحنيفة به فرمايل (لاينبغي لرجل ان يحدث الابماحفظ يوم سمعه الي يوم يحدث به او امام ابويوسف ويلي : په هرشي کي چي کله ما دامام ابوحنيفة رحمه الله څخه مخالفت کړی دی ،بيا وروسته ددير سوچ اوفکر اوتدبر نه ماته ثابته شوي چي دهغه قول اوفعل په آخرة کي دنجاة لويه ذريعه ده اوهرکله چي به مايو حديث طرف ته توجه او ميلان وکړو نودامام صاحب بصيرت فی الحديث الصحيح به زمانه زيات وو . ( عقودالجمان ص ۲٥٦)

اوکه دغه مخکي اعتراض دقلت روايت الحديث تسليم کړو نو بيا د امام صاحب قلت روايت دڅو وجوهو

نه وو چې لږ وروسته به يې بيان کړو بعضې جاهلان داهم وايې چې دامام صاحب څخه په صحاح سته وو کې روايت نشته واقعيت چې په صحاح سته وو کې يواځې دامام ابو حنيفة نه نه بلکې دامام شافعي نه هم کوم حديث روايت شوی نه دی بلکه دامام احمدبن حنبل نه چې دامام بخاري خاص استاذدی دهغه احاديث هم په بخاري کې درې ځايه راغلي دي اودامام مالک نه هم يوڅو ځايه راغلي دي نوددې وجه دانه ده چې معاذالله دغه حضرات په علم حديث کې کمزوري وو بلکې ددې څو وجهې دي.

**اوله وجه داده :** چې دوی فقهاء وو اودهغوی اصل مشغله داحکامو او مسائلو استنباط او بيانول وو لکه څرنګه چې لوی لوی صحابه کرام لکه خلفاء راشدين مشغول وو په عمل باندې د روايت کولو نه نو دابوبکر صديق ﷺ نه (١۴٢) حديث روايت دي اودحضرت عمرﷺ غالبا (۵٣٩) دي اودحضرت عثمانﷺ نه (١۴۶) دي اودحضرت علی ﷺ (۵٨۶) اودحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ (٨۴٨) اودحضرت ابو هريره ﷺ نه (۵٣٧۴) پنځه زره درې سوه څلور اويا دي نوددې نه خودانه لازميږي چې دحضرت ابوهريرة ﷺ او ابن مسعودﷺ رتبه به په خلفاء راشدينو باندې اوچته وي.

**دوهمه وجه داده :** چې دغه حضرات امامان مجتهدين وو اودهغوی په سلهاوو شاګردان اومتبعين موجود وو لهذا اصحاب دصحاح سته بنه په دې باندې پوهيدل چې دهغوی علوم به دهغوی دشاګردانو په ذريعه محفوظ پاتې شي چنانچه هغوی دهغهو استاذانو حضراتو دعلوموحفاظت وکړو چې دهغوی دضائع کيدو انديښنه وه.

**دريمه وجه داده :** شدت شرائط يعنې امام ابو حنيفة رحمه الله په روايت حديث کې ډيرزيات محتاط وودهغه شرائط دصحت الحديث اودتحمل او روايت الحديث ډيرزيات سخت او قوي وه لکه ديحي بن معين قول دی کان ابو حنيفة لايحدث الابما حفظ اي من يوم سمع الي يوم يحدث اوعبدالوهاب شعراني فرمايې چې دامام صاحب چې کوم حديث نه استدلال کوي دهغه لپاره يې داشرط لګولی چې په خيار او اتقياء تابعينو کې به يوجماعت دحضراتو صحابه وونه مسلسل نقل کړی وي اوپه سند کې به يې متهم بالکذب نوي. (الميزان الکبري ج ١ص ٦٢).

**څلورمه وجه حديث مرفوع بصورت مسئلة فقهية:** يعنې بعض مرتبه محدثين بنظر احتياط حديث مرفوع په ځای ددې چې نبي کريم ﷺ ته منسوب کړی خپل قول يې وګرځوي دفقهي مسئلي په طوريې بيان

کړی ددې لپاره که په دغه نقل الروات کې څه خلل وي چې نبي کريمﷺ ته منسوب نشي نو امام صاحب دا طريقه اختيار کړی نو دا امام صاحب چونکه مشغله روايت حديث نوه بلکې استنباط احکام وه نو دده زياتره رويات په حيثيت حديث ندی باقي بلکې په حيثيت د مسائل فقيه باقې دی

او مخکې د ابن خلدون اعتراض دا هسې يو بيکاره سپين دروغ دی په اصل کې ابن خلدون د امام اعظم رحمه الله څخه دومره لری دی چې هغه ته د حقيقت حال علم نه وو شوی حقيقت خو دادی کوم چې علامة زاهد الکوثري د شروط الائمة الخمسة للحازمي په حاشيه کې په (۵۰ صفحه کې کړی دی چې په حقيقت کې د امام ابو حنيفة مروج احاديث هم پداسې اولسو دفترنو کې دي په کوموکې چې ترټولو وړوکی دفتر هم د سنن شافعي بروايت الطحاوي او مسند شافعي بروايت ابي العباس الاصم څخه لوی دی حال دا چې د امام شافعي د احاديثو معيار په هم دغو دواړو کتابونو باندې دی او د امام صاحب ديو شاګرد قول دی چې د امام صاحب په تصانيفو کې اويازره (۷۰۰۰۰) احاديث موندل کيږي ( درس ترمذي ج۱ ص ۹۸)

اشرف علي تهانوي صاحب د مذکور اعتراض په حق کې داسې وينا کړې ده چې زه خپلو دوستانو ته وايم چې تاسو د ابن خالدون يا د ابن خلکان ددې قول ترديد ولی کوي د دينه خو څمونږ د امام صاحب منقبت او عزت معلوميږي نه نقصان ځکه چې د امام صاحب مجتهد کيدل خو ټولو ته مسلم دی د دينه څوک انکار نکوي ؟ او انکار څنګه کيدی شي ؟ ځکه چې په هر باب او هر مسئله کې د امام صاحب اقوال شته ، او مخالفين يې هم اکثرا اختلاف ذکر کوي ، د دينه معلومه شوه چې مخالفين اګرچې امام صاحب محدث نه مني خو مجتهد يې مني ، ددې نه علاوه په صراحت سره د امام شافعي وغيره امامانو وارثانو د ابو حنيفة د مجتهد او فقيه کيدلو اقرار کړی دی ، او نه صرف د مجتهد کيدلو بلکه ټول فقهاء په فقه کې اولاد د ابو حنيفة کيدل مني ، نو چې دا يو مقدمه واخستلی شي او دې سره بله مقدمه دا ولګولی شي چې امام صاحب ته ټول اولس حديث رسيدلي وو او س چې دواړه مقدمې يو ځای کړی نو د دينه دا نتيجه راووځي چې د امام صاحب پوهه دومره اوچته وه چې هغوی صرف د اولس احاديثو نه دومره مسائل راوويستل چې نورو امامانو د لکهونو احاديثو څخه نه دي را ايستلي نو معلومه شوه چې هغه ډير لوی مجتهد وو نو زمونږ ملګري احناف د ابن خلدون نه هسې خفه کيږي په دې باندې خو هغه د امام صاحب دومره لويه مدحه کړی ده چې د هغې څه حد نشته دی .

خیرداخویو لطیفه وه ددې قول دغلط کیدلو خو په خپله تول محدثین هم اقرارکوي خودې کې شک نشته دی په درایت کې دوی په درجه کې دومره اوچت دی چې که انصاف سره او کتلی شي نوداسې معلومیږي چې حدیث اوقران خوټولو او ویلو او ویلوستلو خو پوه پرې احناف شول. (اشرف الجواب دویمه حصه ص ۱۸۳/ ۱۸۴مطبوعه مکتبه فاروقیه پشاور)

اخري ویناداچې که چیرته امام ابو حنیفه رحمه الله عالم بالحدیث نوی او صاحب دفقه غیرما خوذ من الکتاب والسنة وي نو الامام الجلیل یحی بن معین امام الجرح والتعدیل من غلات الحنفیة به دامام صاحب تقلید نکولو چې دده په حق کې امام احمد بن حنبل وایي چې کوم حدیث چې یحی بن معین ته نو معلوم هغه حدیث ندی او نه ثابت دی

علامه عجلي وایي : چې غیر دیحیی بن معین رحمه الله نه زیات عارف بالحدیث الله پاک هیڅوک نه دي ندې پیدا کړی . ( تعلیق علي تبییض الصحیفة ص ۱۱۰)

**اعتراض** دقلة عربیت قاضي ابن خلکان په وفیات الاعیان کې د امام صاحب په حق کې داسې کړی دی چې (ولم یکن یعاب بشی سوی قلة العربیة ) .

**جواب** : ددې تردید خپله ابن خلکان کړی هغه ویلی ددې اعتراض بنیاد صرف یوه واقعه ده چې یو ځل امام صاحب مسجد حرام کې تشریف فرما شوهلته یو مشهور نحوی ابو عمروابن العلاء المازني البصری القاری داپوښتنه ترې وکړه که چیرته یو سړی بل په تیګه (کانړي) باندې ووژني او مړشي نو قصاص پرې شته ؟

امام صاحب ورته وویل قصاص پرې نشته ( ولورماه باباقبیس) په ځای د( بابي قبیس ) نو دغه نحوی داخبره مشهوره کړه چې امام صاحب عربیت کې مهارت نه لري لیکن داعتراض بې ځایه دی ځکه چې بعضې قبائل دعربو او کوفین داسما ستة مکبرة اعراب په درې وارو حالاتو کې په الف وایي نو دامام صاحب عربیت ډیرقوي وو دغې لغات نه هغه نحوی نو و خبر .ددې تائید په یو شعر د مشهور شاعر کې داسې دی:

ان اباها وابا اباها قدبلغافي المجدغایتاها

اوپکاروابا ابیها وو او دالغت په بخاري ج ۲ ص: ۵۷۳ کې دابن مسعود ﷺ نه هم ثابت دی عبدالله بن مسعود ﷺ ابو جهل ته وفرمایل انت اباجهل په ځای دابو جهل

**اعتراض** : دارجائيت قطب الاقطاب سيدناشيخ عبدالقادرجيلاني رحمة الله عليه په خپل كتاب غنية الطالبين (ص : ٢٢٧) الجرح على ابى حنيفة (١٥ - ١٦) كې فرقة حنيفة په اقسام د فرقة مرجئيته كې شمارلى او امام بخاري په تاريخ كبير كې ويلي دي چې امام صاحب مرجئ دى .

**جواب** : المرجئة على نوعين مرجئة مرحومة وهم اصحاب النبي ﷺ ومرجئة ملعونة وهم الذين يقولون بان المعصية لاتضرو العاصى لايعاقب ، وروى عن عثمان بن ابى ليلى انه كتب الى ابى حنيفة رحمه الله وقال انتم مرجئة فاجاب بان المرجئة على ضربين مرجئة ملعونة وانا برئ منهم ومرجئة مرحومة وانا منهم وكتب فيه بان الانبياء كانوا كذالک ألا ترى الى قول عيسىٰ قال ان تعذبهم فانهم عبادک وان تغفرلهم فانک انت العزيز الحكيم ( تمهيد عبدالشكور)

**يعنې مرجيه دوقسمه سره دي .**

(١) مرجية سنيّة في مقابلة المعتزلة والخوارج .

(٢) مرجيه مبتدعه في مقابلة اهل السنة والجماعة .

نو مرجية اهل السنتو ته وايي په مقابلة د معتزلة وو او خوارجو كې څكه اهل السنة قائل دي چې تاركين د فرايضو او اهل كبائر يقينًا په اخرت كې مستحق د عذاب دي او مخلد في النار يه نوى ، نور د الله خوښه ده چې بښنى يې او كه عذاب وركوي .

او دوهم قسم مرجيه چې په مقابل د اهل السنت كې دي هغوى پدې قائل دي چې په ترک د اعمال صالحه وو او په ارتكاب د معاصيو و ايمان ته كوم كته ياضرر نشي رسيدلى ، ايمان او اعمال جداجدا مختلف شيان دى نو كوم كس چې په توحيد او نبوة معترف وي او فرائض نكوي او ارتكاب د معاصيو و كوي نو دا كامل الايمان دى مستحق د عذاب ندى . نو امام صاحب طرف ته د ارجا بدعت نسبت كول قطعا غلط دى او د ارجا سنت نسبت ورته صحيح دى او دا عيب ندى بلكه د معتزلة او خوارجو په مقابلة كې ارجا سنت د تمام اهل حق مسلک دى او د قران او حديث نه ثابت دى .

(٢) جواب : د شيخ عبدالقادر او امام بخاري مراد فرقة غسانية ده چې باني يې غسان بن ابان كوفي دى دا فرقه په اصولو كې د مرجيه ضالة معتقد دي او په فروعو كې د امام صاحب د اتباع ادعاء كوي لپاره د دې چې قبوليت په عوامو كې پيدا كړي : كما فى الملل والنحل لعبد الكريم الشهرستانى قال ومن العجب ان غسان

كان يحكى عن ابى حنيفة مثل مذهبه وبعده من المرجئة :نوددي په وجه ورته احناف ويل كيږي نو داهل السنة نه خارج دي له وجهې د اعتقاد ارجاء نه بياهم دوى مشهوردي په لقب حنفي سره لكه غير مقلدين چې بالكل محدثين نه دي لكن بيا يې هم ځان مشهور كړى دى په اهل حديث سره ،نو شيخ عبدالقادر په بيان داصولي اختلاف كې ددغه فرقې ضالې تذكره په لقب دحنفية سره كړيده.

(۳) امام صاحب په فقه اكبر كې په فرقه مرجئه باندې پخپله رد كړى نو چې دى پخپله مرجئه و ،نو بيا يې ولې رد پرې كولو ،دالاندې دفقه اكبر عبارت ته توجه وكړئ: لانقول من عمل عملاً حسناً بجميع شرائطه خالياً من العيوب المفسدة ولم يبطله حتى يخرج من الدنيا مؤمنا فان الله تعالى لايضيعه بل يقبله منه ويثبته عليه : يعني مونږ داسې نه وايو چې زمونږ نيكي مقبولې اوګناهونه مو معاف اوبښل شوي دي لكه دمرجئو چې دا وينا ده بلكې مونږه وايو چې هر چانيک عمل وكړو په شرائطو برابر اودمفسداتو اوعيوب نه خالي وو او وروسته يې بيا باطل هم نه كړو تردې چې ددنيا ځخه يې كوچ اورحلت دايمان اوسلامتيا دعمل سره وكړو نو الله ﷻ به ددمعمل نه ضائع كوي اوقبله وي به يې اودابه الله ﷻ ثابت قدمى ساتي .

(۴) اوعلامه ابن اثير جذرى رحمه الله ددې مسلې په ترديد كې داسې فرمايي : وقد نسب اليه وقيل عنه من الاقاويل المختلفة الى يجل قدره عنها وينزه منها القول بخلق القرآن والقول بالقدر والقول بالارجاء وغير ذالک ممانسب اليه ولاحاجة الى ذكرها ولا الى زكر قائلها والظاهرانه كان منزهاً عنها ( جامع الاصول ).

يعني ډير زيات داسې مختلف اقوال امام صاحب طرف ته منسوب دي چې ددې نه دهغه مرتبه ډيره اوچته ده اوبلكل ترينه منزه اوپاک دى لكه دخلق القران اوتقدير او ارجاء اوداسې نور مسائل چې دته منسوب شوي نو داسې أقوال او قائلين ذكر كولو ته هيڅ ضرورت اوحاجت نشته دا بديهي خبره ده چې امام صاحب ددغه امور ځخه بلكل بري اوپاک دى نو چې علماؤ اوأيمة په دې تصريح كوي چې دداسې امورو نه امام صاحب پاک دى او دابهتان او دروغ اوافتراء ده نو تعجب په داسې خلكو چې ځان ته اهل حديث اومتبع دحق وايي اوبيا پخپلو رسالو اوكتابو كې غلط اوباطل امور شائع كوي دعوامو دوكه كولو لپاره :

هنر هانهاده بكف دست عيب هارا گرفته زير بغل

## اووم مبحث

### دامام اعظم ابوحنيفة تصانيف اوكتابونه:

امام صاحب طرف ته ډيرزيات كتابونه منسوب دي اوچې تلاش اوطلب يې وشي نود متقدمينو په كتابونوكې امام صاحب ته منسوب دالاندې كتابونه دي.

(۱) كتاب الراى (ذكره ابن ابي عوام.

(۲) كتاب اخلاق الصحابة(ذكره ابوعاصم العامرى .

(۳) كتاب الجامع (ذكره العباس بن مصعب.

(٤) كتاب السير .

(٥)كتاب الردعلي القدرية .

(٦) كتاب الفقه الاكبربرواية حمادبن ابي حنيفة رحمه الله .

(۷) الفقه الاوسط برواية ابومطيع البلخي .

(۸) كتاب العالم والمتعلم برواية ابوالمقاتل السمرقندى .

(۹) رسالة الامام ابي حنيفة الي عثمان البتّي برواية ابي يوسف

(۱۰) الوصايا .

(۱۱) مسندامام اعظم .

(۱۲) كتاب الاثار.

دټولوتفصيلي تذكره خواوږده ديږي خوددوواجمالي تذكره به وكړو اول : الفقه الاكبرپه روايت دحمادبن ابي حنيفة مشهوركتاب دى چې په مصرهنداوپاكستان افغانستان اونوروعلاقوكې ډيرځخوا چهاپ شوى وواوعلماءپرې ډيرشرحي ليكلي دي چې تقريباصاحب كشف الظنون پنځلس شرحي ذكركړي دي چې بعض چهاپ شوي اوبعضې مخطوطې دي ډيرې مشهورې شرحي يې دادي .

(۱) شرح فقه اكبرلملا علي القاري الحنفى .

(۲) شرح فقه اكبرلابى منصور الماتريدى .

(۳) شرح فقه اكبرلابى المنتهي احمدالغيساوى .(كشف الظنون ج۲ص ۱۲۸۷).

اهم مباحث پکې:

(۱) ددین اصول اوصفات .

(۲) مسائل الایمان .

(۳) مسائل القدر.

(٤) مسائل النبوة .

(٥) مسائل المعادوالاخرة وغیرذالک دي نو: په کې هم ډیر مسائل دي په اسان طرزاوطریقه ترې فائده اخیستل کیږي .

دوهم کتاب الاثاردامام صاحب دماثرعلمیة نه دهغه کتاب الاثارپه علم حدیث کې دهغه داوچت مقام گواه دی داکتاب په فقهي ابوابو باندې دحدیثوترټولو رومبی مرترب کتاب دی لکه چې علامه سیوطي په تبییض الصحیفة کې لیکلی دي چې په علم حدیث کې دامام صاحب دافضیلت څه کم ندی چې هغه ترټولو اول په ابواب فقهیه باندې مرتب کتاب تالیف کړودافضیلت بل هیچاته حاصل شوی نه دی دامام اعظم داکتاب الاثاردموطاءامام مالک دماخذ حیثیت لري ځکه چې حافظ ذهبي په مناقب کې دقاضي ابوالعباس محمدبن عبدالله بن ابي العوام داخبارأبی حنیفه په حواله دسند متصل سره دمشهورمحدث عبدالعزیزدراوردی داقول نقل کړی (کان مالک ینظرفي کتب ابي حنیفة وینتفع بها) ددې نه واضح ده چې امام صاحب دکتاب الاثارمقام دموطاامام مالک په نسبت سره داسې دی لکه دموطامقام چې دصحیحینوپه نسبت سره دی دحدیث دنوروکتابوپه شان دکتاب الاثارهم ډیرراویان دي په کوموکې چې څلورمشهوردي .

(۱) امام ابویوسف رحمه الله .

(۲) امام محمدرحمه الله .

(۳) امام زفر رحمه الله .

(٤) امام حسن بن زیاد رحمه الله .

بیاځرنگه چې امام بخاري خپل صحیح له شپږ ولاکوحدیثوڅخه انتخاب اومرتب کړی دی ، اوامام صاحب له امام بخاري اوداسې نورونه ډیرمقدم دی اودهغه په زمانه کې په اسانیدواوطرقو کې دومره کثرت اووسعت پیداشوي نه وونوځکه دامام صاحب دا انتخاب له څلویښت زره احادیثو څخه وولکه چې علامه موفق مکي په

مناقب الامام الاعظم ج۱ ص ۹۵)مطبوع دکن سـ۱۳۲۱ هـ کې دابوبکربن محمد الزرنجری قول نقل کړی دی چې
:( انتخب ابوحنیفة الاثار من اربعین الف حدیث)

دامام صاحب دمناقبو دکتابونو نه معلومیږي چې په کتاب الاثار کې څومره احادیث موجود دي هغه هم دامام صاحب ټول احادیث ندي بلکې دهغه نه مختصرشان انتخاب دی په هرحال دامام اعظم فضیلت دادی چې دحدیثو څومره کتابونه متداول دي په دغه ټولو کې اول مبوب کتاب دهغه تالیف دی په علم حدیث کې ددې کتـاب مقـام څـه وو؟ ددې انـدازه ددغـه دورد محدثینو داقوالونـه کیـږي چـې هغـوی خپلو شـاګردانوته ددې دمطالعې نه یواځې داچې مشوره ورکوله بلکه تائیدیې هم کړی دی او فرمائلي دي چې ددې نه بغیر علم فقه نشي حاصلیدلی داقول دامام صاحب په مناقب کې په تفصیل سره نقل شوی دی بیا محدثینو دکتاب الاثار چې کوم خدمت کړی دی ددې نه اندازه کیږي چې ددې کتاب دهغوی په نیز څومره اهم مقام دی همدغه وجه ده چې ددې کتـاب ډیرشروح لیکلی شوی دي لکـه دابـن همـام شـاګرد حافظ زیـن الـدین قاسم بن قطلوبغا دکتاب الاثار شرح لیکلی ده اویـو مسـتقل کتـاب یـې دده پـه رجالو تصنیف کړی دارنګـه حـافظ ابـن حجرعسـقلاني یو کتاب د کتاب الاثار په رجالو لیکلی دهغې نوم الایثار لذکر روات الاثار دی ددې کتاب ذکرخپله حافظ ابن حجر په تعجیل المنفعة بزوائد رجال الاربعه کې کړي دي بیا حـافظ ابن حجر په خپل دې کتـاب کې د کتاب الاثار ټول راویان جمع کړي دي داکتاب حافظ دائمه اربعه یعنې امام ابوحنیفة امام مالـک امام شـافعي اوامام احمد بن حنبـل رحمهم الله درجالو پـه تـذکرة کې لیکلـی دی پـه همـدې ډول حـافظ ابـو بکربن حمزه الحسینی یو کتاب التذکرة لرجال العشرة په نوم لیکلي چې د صحاح سته وو اوائمة اربعة وو رجال یې په کې جمع کړي دي په دې کتاب کې دکتاب الاثار ټول راویان موجود دي.

داخو کتـاب الاثـاروو چې دامـام صـاحب واحد تصـنیف دی ابو مقاتـل سمرقندي دامام صاحب رحمه الله مدحه کړې ده اود کتاب الاثار متعلق یې فرمایلي دي : روی الاثـار عـن نبـل ثقـات غـزار العلـم مشیخة حصیفة :یعنې کتاب الاثار یې روایت کړی دی دمعززینو ثقات نه کوم چې وسیع العلم اوعمدة مشائخ دي.

ددې نه علاوه لویو لویو محدثینو دامام ابوحنیفة مرویات جمع کړي اود مسند ابي حنیفة په نوم یې مرتب کړي دي ددې مسانید و تعداد تقریبا (۲۰) شلوته رسیږي حافظ ابن عدی چې دامام صاحب مخالف وو اول وخت کې بیا چې کله دامام طحاوي حنفي شاګرد شو نودامام صاحب جلالت قدراندازه ورته وشوه په دغه وخت

کې یې د تیرو خیالاتو تلافی په طور مسند ابي حنیفة مرتب کړو په دې د ول یې د مسند ابي حنیفة اولس یاد دې ځنې زیات کتابونه لیکلي دي کوم چې وروسته علامه ابن خسرو د مجامع مسانید الامام الاعظم په نوم باندې جمع کړي. ( درس ترمذي ج۱ ص ۹۶_۹۷- ۹۸)

ددې مسانیدو مکمل ذکر سره د هغه حفاظ الحدیث چې ددې مسانیدو تخریج یې کړی علامة محمد بن یوسف الصالحي الدمشقي الشافعي په خپل کتاب عقود الجمان مطبوعه مکتبه نعمانیة محله جنګې پشاور کې دصفحې ۲۵۷ نه تر ۲۸۳) پورې سره د څلویښتو (۴۰) احادیثو نه بنه په تفصیل سره کړي دي او بعض مسانید چې ده ندې ذکر کړي هغه محمد عاشق الهي البرني په خپل تعلیق علی تبییض الصحیفة ص: ۵۳) کې ذکر کړی دی نو څوک یې که خواهش لري دغه ځاینونو ته دې رجوع وکړي.

او بل داچې امام صاحب ته منسوب کتابونه د (کتاب العالم والمتعلم، والفقه الاکبر، او کتاب الاثار، او مکاتیب وصایا) نه نور باقې کتابونه غالبًا نه موندل کیږي نو دا یو اځې دده کتابونه نه بلکه په اوس زمانه کې په زرګونو کتابونو مونه په کتب د تراجم کې موجود دي او شته دي نه.

د امام صاحب معاصرینو لکه امام اوزاعي، سفیان ثوري، حماد بن سلمة، هیشم معمر، جریربن عبدالحمید او عبدالله بن مبارک وغیرهم د حدیثو او فقهې لوی لوی کتابونه لیکلي دي او اوس یې معلومات نشته دی.

## دامام اعظم ابوحنیفة رحمه الله سند الحدیث

په ټوله دنیا کې اعلی ترین سند د ابو حنیفة عن حماد عن ابراهیم عن علقمة عن عبد الله عن النبي ﷺ دی ځکه دغه سند کې تمام راویان تام الضبط او هر یو یو د خپل استاذ سره کثیر الملازمة دی او ټول شرائط په کامله طریقه پکې موجود دي. (مسند امام اعظم ص ۱۸۹)

## اتم مبحث

**دامام ابوحنیفة رحمه الله سیاسي نظریه اوډظالمانو په خلاف دهغه عظیم جهاد په لنډو ټکو کې:** دامام ابو حنیفة رحمه الله سیاسي نظریه د قرآن کریم پر هدایاتو او بنسټونو ولاړه ده چې په لاندې توګه بنودلی شوي دي.

(۱) لـومړی : حقیقـي حـاکم اعلـی داللہ تعـالی مقـدس ذات دی لـه الله تعـالی پرتـه بـل هیڅـوک دقـانون جوړولو حق نه لري بلکې په هره موضوع کې دفیصلې وروستی مرجع قران کریم اونبوی سنت دی.

دامام په وړاندې قانوني حاکمیت دالله تعالی اودده درسول دی دامام صاحب په وړاندې دقیاس اورای قانون صرف په هغو موضوعاتو پورې محدوددی چې دالله تعالی اودده درسول حکم پکې موجودنه وي.

(۲) دویم - که څوک په زوربانديې پرمسلمانانوباندې خپل ځان دحاکم په توګه تحمیل کړي اطاعت یې روانه دی اوپرمسلمانانویې اطاعت نه واجبیږي

(۳) دریم - که چیرته څوک لومړی په زورپرحکومت باندې قبضه وکړی اوبیاله خلکوڅخه دفشارپه ذریعه بیعت واخلي حکومت کول یې نارواده دی اوپرخلکویې منل شرعاجائزنه دی

(۴) څلورم - دظالم اوفاسق شخص حکومت کول فتواورکول او امامت کول په هیڅ صورت کې روانه دی اوحکم قضاء امامت او فتوا یې شرعًاصحیح نه دی اونه یې پرمسلمانومنل لازمیږي (تاریخ بغدادج۱۳ص ۳۶۸میزان الکبری ج۱ص۸۶/ خلافت وملوکیت ج۱۱ص ۶۱امام مودودی ص ۲۴۸- ۲۴۹)

(۵) پنځم - دظالم اوفاسق حکومت په خلاف خروج اوبغاوت نه یوازې داچې جائزدی بلکې ضروري اولازم دی په دې شرط چې کامیاب اوګټورپاڅون اوانقلاب وي چې دظالم اوفاسق حاکم پرځای دمتقی عادل اوصالح حاکم په راوړلو منتج شي اودبغاوت نتیجه صرف دنفوسو قتلان اودځوا کونوابته کول اوضیاع نه وي. (المبسوط ج۱۰ص ۱۲۵مقالات الاسلامین ج۲ص۱۲۵)

(۶) شپږم - په ظـالم حکومـت کې هیڅ دول کـارکول شرعاجائزنه دی. ځکـه چې داسې کـول دهغـه دټینګښت سبب ګرځیږي په داسې حال کې چې ختمول یې پرمسلمانانوباندې لازم دی اوهیڅ دول مسامحه اومداهنت ورسره روانه دی که څه هم په لاره کې هرډول فتنویعنې ازمینښتونو سره مخ شي. (دامام ابوحنیفة سیاسي ژوندص ۱۷۴المولنامناظرحسن ګیلاني)

دامام صاحب عالي مقام دهمدغو سیاسي اصولو له نظره دخپل وخت له واکمنو حاکمانو سره نه بیعت کړی اونه یې دهغوی په حکومتي سرکاري اداروکې دنده قبوله کړې وه نه په اموي خلافت کې اونه په عباسي خلافت کې بلکې دهغوی په خلاف یې جهاد کړی واوله مجاهدینو سره یې مالي او اخلاقي مرستې کړې وې سره لدې چې امام ابوحنیفة رحمه الله هم داموي انوله پلوه اوهم دعباسیانو په دورکې په رازراز تعذیبونومعذب

کړای شو په کړاوونو اوربړونو اخته کړای شو مګر دامام اعظم ابوحنیفة رحمه الله په دریغ کې یوپوټی بدلون رانه وستی شو دامام صاحب دادریغ اوفتوا وه چې دغه دواړه حکومتونه او دهغوی حکام ظالمان غاصبین اوفاسقان دی دامام صاحب په وړاندې دخلافت اصلي مستحقین علویان وو چې امویانو اوبیا وروسته عباسیانو دا حق له هغوی څخه غصب کړی وو له همدې کبله امام صاحب له امویانو او بیاله عباسیانو سره سیاسي مخالفت وکړ هغوی تکل کاوه چې له هرې لارې وي امام صاحب متقاعد کړی مګر هغوی پخپل دغه هاند کې ناکام شول او دامام اعظم رحمه الله یې له خپل حق او مشروع الواک څخه ونه ګرځولی شو .

پر امام صاحب یې د مصالحي ګردی لاری وازمویلې مګر ټولې ناکامی شوی چې په پای کې یې پر امام صاحب عالي مقام داسې ظلمونه وکړل چې په اوریدو او لوستلو یې غوښې ځیږه کیږي دغه عظیم شخصیت پخپل سیاسي پنځوس کلن ژوند کې داتکل کاوه چې د اسلامي امت دسیاسي نظام واګې هغه څوک ترلاسه کړی چې اهل یې وي او دحکومت شرعي شرطونه پکې موجود وي دامام صاحب سیاسي دریغ پر قران او حدیث او دصحابو پر اجماع باندې ولاړ وو او دوخت ظالمو غاصبو حاکمانو مقابل کې د غرپشان ټینګ پاڅون کړی وو او دوخت ظالمو عیاشو اوله شریعت څخه منحرفو حاکمانو د دولت چوکی او منصب په وړاندې کولو سره امام صاحب له خپل حق دریغ څخه په شا نه تمبول شو او داهر څه یې دهغوی پر مخونو وویشتل امام مسلم دطائفي منصوری حدیث ذکر کړی دی دشپږو صحابه وونه مسلم ج۲ص ۱۴۳- ۱۴۴) کې پدې حدیث کې دطائفي منصوري دوه خاصي علامي ذکر شویدی.

(۱)-قتال علي الحق یعنې سیاسي غلبه خلافت او ملوکیت چې ددې سیاسي غلبې او خلیفه اوبادشاه په سرپرستی کې جهاد وشي .

(۲) - فقه في الدین یعنې علمي غلبه نو دقتال په وجه به ملکونه فتحه کوي او بیا به دتفقه په ذریعه پکې داسلام قوانین نافذوي او دادواړه علامي په احنافو کې دي لامذهبه غیر مقلدین (وهابیان) دې ووایې چې دوی دافغانستان ،پاکستان ،هندوستان ،بخاری ، سمرقند ، ترمذ ، بنګلادیش وغیره ملکونو څوولیشتی زمکه دکافرانو نه او انګریزانو نه ازاده کړې ده ، دې ټولو ملکونو ته خو اسلام دحنفي مجاهدینو په لاس رسیدلی دی .الحمدلله.

اوهمدارنګه دي لامذهبه (وهابيان) خپله يوه رساله داسې ثابته کړي چې دانګرايزددوري نه مخکې ليکل شوي غټ کتابونه خو لاپريږده بلکه وهابيان لامذهبه دې خپل يو کتاب وښايي چې ددنيا په يوه مدرسه کې په تعليمي نصاب کې داخل وي.

په عامو اسلامي ملکونو کې بلکه په اکثرو اقاليمو او ملکونو کې خلک خاص دده مذهب پيژني اودده مذهب بناپه يوروايت څلورزره کسانو رانقل کړيدی اويادوی هريو خپل شاګردان وو دبه چې يو خبره دخولې نه راويستله نوسمدستي به داسې شيوخوورباندې عمل شروع کړو چې خلاصه دعلماءووبه وه اوالله دده پيروانو ته سياسي غلبه هم ورکړی دامام صاحب دزماني نه ترننه پورې سياسې غلبه داحنافوده اوعباسي دولت اګرچې دوی دخپل نيکه په مذهب وو ليکن ددې دولت اکثرقاضيان او مشائخ حنفيان وو داهغه چاته ظاهره ده چې دتاريخ کتابونه يې کتلي وي اګرچې ددوی دبادشاهي دوره تقريباپنځه سوه کاله وه اونورسلجوقي اوخوارزمي بادشاهان ټول احناف وو اوددوی دخلافت قاضيان هم اکثراحناف وو (الي ان يحکم بمذهبه عيسى ـ ﷺ) يعنې تردې چې دعيسى ﷺ اجتهادبه د امام صاحب داجتهادسره موافق وي. (راجع کشف شعراني).

مګردافسوس خبرداده چې زمونږدهيوادافغانستان ځينې داسې کسان دي چې ځانونه دامام ابو حنيفة دمذهب پيروان ګڼي اوپه عمل کې دهغه په خلاف روان دي چې ددوی دغه اوسنی کړندودپه داکه پرې دلالت کوي دوی دحنفي توب په دعوی کې دروغجن دي ځکه دوی يوازې دانه چې دظالمانوپلويان دي بلکې دصليبي يرغلګرو پوځونو ملاتړدي اودامريکاله پلوه دجوړکړی کفری حکومت مستخدمين دی اوپه دوی کې علماء روحانيون ليکوالان جهادی پروفسيران قاضيان مفتيان پوځي او ملکي مامورين وزيران پارلماني غړي اودتعليمي مراکزو منسوبين ټول شامل دي.

زمونږمجاهد ملت بايدپوه شي چې دوی دروغ وايي حنفيان ندي بلکې دډالرواواقتدارورډی دي اوداسلام دښمنه صليبيانو غلامانو مينځې دي اصلي اوحقيقي حنفيان هغه دي چې ديرغلګرو صليبيانو اودهغوی دغلامانوپه خلاف ځاني اومالي قلمي لساني سياسي اودملک ازادۍ اوپه خپل اسلامي هيوادکې داسلامي حکومت دجوړولو اوله هيواد څخه دصليبي استعماری پوځونو د شړلو په تکل قانوني في سبيل الله جهادکوي محرومتيونه ګالي اوخپلې سينې يې دصليبي يرغلګرو مرميوته سپرکړی دی اود غلامي له

ژوند کولو څخه یې دالله په لاره کې غازیتوب او شهادت او ژوند انونه ربړونه او کړاونه ګاللوته ترجیح ورکړې ده او دخپل مظلوم مسلمان ملت دازادی هاند کوي په داسې حال کې چې هغه ځان بايللی افغانان دورغجن مسلمانان دخود الروپه بدل کې دالله دښمنو صليبيانو ته دوستان وايې چې شيطان بې لاري کړل له ازادی څخه يې غلامي ورته بنائسته کړځولی ده او دشيطان په لمسه يې ننګ غيرت پت حيا حميده اخلاق تقوی او توحيد دماديت او بې لارتيا په بُت پالنې قرباني کړي.

دامام ابو حنيفة رحمه الله په مناقبو او فضائلو باندې ديرزيات کتابونه ليکلی شوي لکه څرنګه چې دحضور اکرم سرور کائنات فخر موجودات حضرت محمد رسول الله ﷺ په سيرت او صورت مقدسه په دنيا کې دېولونه زيات کتابونه ليکلی شوی دي چې نوري ګوتي قلمونه او ورقي او الات دکتابت يې دليکلو نه قاصر او عاجز شوي او دهيچا توان او طاقت نشته چې تکی په تکی وضاحت وکړي.

همدارنګه دامام ابو حنيفه رحمه الله په سيرت او مناقب دهرمذهب واله او دمختلفو ژبو واله کتابونه ليکلي:

نه دانم آن گل خندان چه رنگ وبودارد　　　　که مرغ هرچمنی گفتگوئی اودارد

**دیوخواجمالي تذکره په لاندې ډول ده:**

(۱) الحافظ المجتهدأبو جعفراحمدبن محمدبن سلامة الطحا وى المتوفي سـ ۳۲۱هـ .

(۲) الامام المحدث المؤرخ الفقيه ابوالعباس احمدبن الصلت الحماني المتوفي سـ ۳۰۸هـ

(۳) فضائل ابي حنيفة واصحابه لابي القاسم عبدالله بن محمدبن احمدالسعدي المعروف بابن ابي العوام المتوفي سـ ۳۳۵هـ

(٤) كشف الاستارللامام عبدالله بن محمدالحارثي البخاري المتوفي سـ ۳٤۰هـ .

(٥) فضائل ابي حنيفة للشيخ احمدبن محمدبن احمدالشعيشي الحنفي المتوفي سـ ۳٥۷هـ) دده كتاب شل جلده دی.

(٦) تحفة السلطان في مناقب النعمان لابي القاسم محمدبن الحسن بن كاس المتوفي سـ ۳۲٤هـ.

(۷) شيخ الاسلام المحدث الفقيه ابوالحسن احمدالقدوري المتوفي سـ ٤۲۸هـ)

(۸) اخبارابي حنيفة واصحابه للمؤرخ الكبيرالفقيه القاضي ابي عبدالرحمن حسين بن علي الصبمري المتوفي سـ ٤٣٦هـ

(۹) شقائق النعمان في مناقب النعمان لابي القاسم محمود بن عمرالزمخشري المتوفي سـ ٥٣٨هـ.

(۱۰) للعلامـة ابي المؤيـدموفق الديـن بـن احمـدالمكي الخـوارزمي المتـوفي سـ ٥٦٨ هـ ) دده کتاب په څلويښتو بابونو مشتمل دی.

(۱۱) قلائدعقودالدرروالقضيان في مناقب ابي حنيفة .

(۱۲) الروضة العالية المنيفة في مناقب الامام ابي حنيفة)

دادواړه دامام شرف الدين ابي القاسم بن عبدالعليم العيني القرشي الحنفي دی.

(۱۳) البستان في مناقب النعمان للشيخ محي الدين عبد القادر القدسي .

(١٤) كتاب الانتصارلامام ائمة الامصارللشيخ المؤرخ ابي المظهريوسف بن عبدالله سبط ابن الجوزي) دوه جلده چهاپ شوی.

(١٥) كتاب الامام محمدبن محمدالكردري المعروف بالبزازي المتوفي سـ ۸۲۷هـ.

(١٦) فضائل ابي حنيفة واخباره للامام يوسف بن احمدبن يوسف المكي الصيدلاني .

(۱۷) الانتقاءفي فضائل الثلاثة الائمة الفقهاءللامـام يوسـف بـن عبدالبرالاندلسي المـالكي المتوفي سنه٤٢٨).

(۱۸) كتاب المناقب للامام علي بن عبدالعزيزظهيرالدين المرغيناني المتوفي سـ ٥٩٦هـ) .

(۱۹) سلسلة الامام الاعظم ابوحنيفة وارائه في العقيدة الاسلامية للدكتورعناية الله ابـلاغ والدكتور محمودطحان والدكتورمحمدفوزي فيض الله ( مكتبه دارالبيان الكويت)

(۱۹) كتاب ابويحي بن زكريابن يحي النسابوري دی.

(۲۰) الانتصاروالترجيح للمذهب الصحيح للامام ابوالمظهريوسف بن عبدالله المتوفي سـ ٦٥٤

(۲۱) كتاب للحافظ ابي عبدالله الذهبي المتوفي سـ ۷۷٥هـ

(۲۲) تبييض الصحيفة للامام الحافظ جلال الدين السيوطي الشافعي المتوفي سـ ۹۱۱هـ

(۲۳) الخيرات الحسان في مناقب الامام النعمان للامام الشهاب احمدبن حجرالبيهقي المكي الشـافعي المتوفي سـ ۹۸۳. داكتاب په څلوپښتوفصلونو مشتمل خوندوركتاب دی.

(٢٤) عقودالجمان في مناقب الامـام اعظـم ابي حنيفـة النعمـان للشـيخ محمـدبن يوسـف الصـالحي الدمشقي الشافعي المتوفي بالبرقوقية سـ ٩٤٢هـ. پدې موضوع داهم ډيرزيات بهترين كتاب دی.

(٢٥) كتاب المناقب للشيخ ملاعلي بن سلطان القاري المتوفي سـ ١٠١٤هـ

(٢٦) ابوحنيفة وحياته وعصره للشيخ ابوزهرة محمدصاحب

(٢٧) حيات ابي حنيفة للامام الشيخ اسيدالعفيفي.

(٢٨) دشيخ علامة عبدالحليم الجندي المصري كتاب چې مسـمى دی په ابوحنيفة سره.

(٢٩) - كتاب دشيخ استاذالوهبي سليمان الالباني الشـامي دی نوم يې دی كتـاب ابوحنيفة النعمـان امام ايمة الفقهاء اوس دا پښتو ته ترجمه شوی په نامه دامام ابوحنيفة دژوندپلوشي.

(٣٠) -مناقب ابي حنيفة دشيخ ابوسعيد فارسي ژبه کې دی.

(٣١) - الجواهرالاربعة دشيخ محمدعلي بن مفتي غلام محمد راج بندری (هند) فارسي ژبه کې دی.

(٣٢) - تحفة السلطان في مناقب النعمـان تركی ژبه باندې ترجمه شوی دادشيخ محمدبن عمرالحلبي دی.

(٣٣) كتاب الحياض من صوب عمام الفياض للعالم التركي شمس الدين احمدبن محمد السينسواسي.

(٣٤) تذكرة النعمان للشيخ السيدعبدالقدوس الهندی. په اردوژبه کې دی

(٣٥) سيرة النعمان للشيخ شبلي النعماني. داهم اردوژبه کې دی

(٣٦) كتاب په نامه دابوحنيفة پښتوژبه کې دشيخ نصيراحمد دی

(٣٧) دامام ابوحنيفة رحمه الله حيرت انګيزواقعات دشيخ مولناعبدالقيوم حقاني دی.

(٣٨) مكانة ابي حنيفة في الحديث دشيخ محدث علامة عبدالرشيدالنعماني دی.

(۳۹) وصاحب الامام الاعظم رحمه الله د شيخ مولانا مفتي عاشق الهی شهري او مختلفو ژبو ته ترجمه شوي دي پښتو ته مولانا هدايت الله صافي ترجمه کړی دی.

(۴۰) امام ابو حنيفة او ظالم حکومتونه د شيخ پوهنمل زاهدی احمدزی کتاب دی.

(۴۱) امام ابو حنيفة سل قيصي د شيخ محمد اويس سرور-کتاب او س پښتو ته ترجمه شوی. تردې ځايه لاشي احقر عبد السلام حقاني صانه الله عن خصال دنية اجمالاً په لنډ و الفاظو او عبارت کې څه بعض تعارف او احوال او اعمال د سيرت د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله تعالی ذکر کړه، ځکه د ايولويه موضوع ده د ده سره مناسب نه وه خو بيا هم ده دخپل الاستاذ المحترم المکرم الشفيق المدرس الجليل الناقد في الدرس والتدريس المجاهد شيخ القرآن والحديث رحيم الله الحقاني الاسير حالاً في جدر الصليبين في الحصة الثانية من محبس بلجرخي في کابل افغانستان

اَللّٰهُمَّ ياخالص يامخلص ياخير الخلاص فککهم ببرکة اسماءک الحسني وبحرمة کلامک المبارک وکلام رسولک المبارک وبجاه خدمة المحدثين والمفسرين والمجتهدين الفقهاءائمة الدين الحنيف والمجاهدين في سبيلک وبحرمة دعوات عبادک المخلصين له، آمين ياخير الميسرين.

په امر چې ورته يې کړی د محبس نه چې د امام صاحب يو لنډه تذکرة او سيرت وليکه چې زما د کتاب ضميمه شي نو دغه بنده د استاذ د امر د امتثال په خاطر دغه يو څه اجمالي ليکل وکړل الله تعالی دې دخپل رضاء سبب وګرځي او که څوک تفصيلي او مزيد معلومات حاصلول غواړي نو دا پورته ذکر شو کتابونو ته دی رجوع وکړی چې خاص د ده مبارک په سيرت ليکل شوي دي او په نورو کتابو کې چې د ده مبارک ضمني تذکره شوی د هغه کتابونو خو شمار معلوم ندی.

فلله الحمد اولاً واخراً والصلوة والسلام الاتمان الاکملان علي محمد عبده ورسوله واله واصحابه الطيبيّن الطاهرين اجمعين

فنسال الله العظيم رب العرش الکريم ان يجعلنا ممن آثر حبه علي هواه وابتغي بذالک قربه ورضاه

تمت بالخير في ليلة الجمعة بتاريخ ۱۴۳۳|۳|۱۶ ه موافق ۲۰۱۲|۲|۹

بسم الله الرحمن الرحيم

# په امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ باندې داعتراضاتو ځخه جوابات

امام الائمة سيدالفقهاءذكى الامت رأس الاتقياءوالاصفياء مجاهدكبير حضرت نعمان بن ثابت الكوفى رحمه الله تعالى ته چې خالق كائنات څومره نوركمالات وركړي وه په هماغه اندازه يې په علم حديث كې پوره پوره وركړى وه دلويو محدثينو فقهاءووا ومؤرخينو اقوال دده په حق كې يو څو په لاندې ډول دي:

(۱) امام ابن عبدالبر المالكى رحمة الله عليه فرمائى : وروى حمادبن زيدعن ابى حنيفة رحمه الله احاديث كثيرة. (الانتقاء ص ۱۳)

حمادبن زيد دامام ابوحنيفة رحمه الله څخه ډيرا احاديث روايت كړي كه چيرى دامام ابوحنيفة سره احاديث نه وائى ياورسره يوازې شپارس اويا اولس احاديث وائى لكه څنګه چې بعضو متعصبو ويلي دي نوبيادا احاديث كثيرة مطلب څه دى.

(۲) اوحافظ ابن عبدالبر دامام وكيع بن جراح په تذكره كې فرمايي :وكان يحفظ حديثه كله وكان قدسمع عن ابى حنيفة حديثا كثيراً. (جامع بيان العلم وفضله ج۲ص۱۴۹ مقدمة اعلاء السنن ج۲۱ ص ۱۶) يعنى وكيع بن جراح ته دامام ابوحنيفة رحمه الله ټول احاديث په ياد وه اوهغه دامام صاحب څخه ډيرحديث اوريدلي دي

(۳) لوى محدث ابن عدى المتوفى ۳۶۵ھ دامام أسد بن عمرو المتوفى ۱۹۰ھ په ترجمه كې ليكلي دي چې ( وليس فى اصحاب الراى بعدابى حنيفة اكثرحديثاًمنه . (لسان الميزان ج۱ص ۳۸۴ )

په اصحاب الراى يعنى فقهاء وكښې) دامام ابوحنيفة رحمه الله څخه وروسته داسدبن عمرو څخه زيات حديث دبل چاسرنه وه وعلامه ابن سعد داسدبن عمرو په هكله فرمائى : ( وكان عنده احاديث كثيرة وهوثقة انشاءالله ) ( تاريخ بغدادج ۷ ص ۱۶ )

(۴) امام صدرالائمة مكى بن ابراهيم الحنفى (متوفى ۲۱۵ھ)چې حافظ اوشيخ دخراسان وه وعلامه ابن سعدهغه ته ثقة اومامون الفاظ ويلي دي اووائى (ولزم اباحنيفة رحمه الله وسمع عنه الحديث والفقه واكثرعنه الرواية (تذكرة الحفاظ ج۱ ص۳۳۲)

یعنی هغه دامام صاحب په خدمت کښې پاتې شوی وو او دهغه شخه ئې دفقهې او احادیثو سماع کړې وه او دهغه شخه یې دیر روایات نقل کړی دي دادلوړی مرتبې حنفي وو او دامام بخاری استا ذ ويا خاص په یولس ثلاثیات کښې دهغه دعالی سند په خاطر امام بخاری رحمه الله ته دا مقام او مرتبه حاصله شوه. (مقام ابی حنیفة ص ۹۱) امام احمد مکی بن ابراهیم ته صالح الحدیث ویلی دي: او امام ابن معین او ابن المدینی او ابن عمار الموصلی او ابن سعید او حاکم او ابن عبدالبر رحمهم الله هغه ته ثقة وائي. (تهذیب التهذیب ج۱۲ ص۷۵)

دامام ابو حنیفة رحمه الله په باره کښې دمکی بن ابراهیم قول دلاندې عبارت په اُخرکښې نقل دی چې: مکی بن ابراهیم امام اهل الرای فی الحدیث والفقه اکثر عن ابی حنیفة روایة الحدیث والفقه وکان یقول مارایت افقه من ابی حنیفة رحمه الله. (تهذیب ج۱ ص ۳٤۳) یعنې هغه به فرمایل چې ما دامام ابو حنیفة رحمه الله نه زیات فقیه نه دی لیدلی.

علامه خطیب بغدادی په خپل سند سره دمحدث بشربن موسی متوفی ۲۸۸ھ شخه او هغه دخپل استاذ محترم حضرت ابو عبدالرحمن المقری متوفی ۲۱۳ھ چې هغه دامام ابو حنیفة رحمه الله شخه نهه سو ۹۰۰ احادیث اوریدلي وو دمناقب کردری جلد ۲ صفحه ۲۱۶ شخه روایت کوی چې: (وکان اذا حدث عن ابی حنیفة قال حدثنا شاهنشاه (تاریخ بغداد ج۱۳ ص۳٤۵)

بشربن موسی او ابو عبدالرحمن المقری دواړه ثقة او داعتماد وړ محدثین و. (تذکرة الحفاظ ج۱ ص ۲۳٤ ج۲ ص۱٦۸).

ددې خبری شخه محترم لوستونکی خپله داندازه کولای شي چې یو کامل محدث او کامل مجتهد او شیخ الاسلام حضرت امام اعظم ته روایت او حدیث بادشاه نه وائی بلکه شاهنشانه ورته وائی البته شاهنشاه په حدیث کښې مراد دی نه مطلق شاهنشاه ځکه مطلق شاهنشاه خو الله ﷻ دی

(۵) مشهور محدث اسرائیل رح (متوفی سنه ۱٦۲ھ) دامام صاحب په هکله فرمائی چې امام صاحب هر هغه حدیث په ښه طریقه سره یاد کړی وو چې دهغې شخه به دفقهی مسائل مستنبط کیدل او هغه دحدیثو په باره کښې دیر بحث کوونکي وه او په حدیثو کښې په فقهی مسائلو باندې دیر پوهیدونکي وه تاریخ بغداد ج۱۳ ص۳۳۹ وتبییض الصحیفة ص۲۷].

(۶) امام مکی بن ابراهیم دامام عیسی بن یونس (متوفی سنه ۱۸۷ه) چې دایو ثقه محدث وو (تهذیب التهذیب ج۸ ص۲۳۹) په هکله لیکلی دي .(اکثرعن ابی حنیفة الروایة فی الحدیث والفقه ( مناقب موفق ج۱ ص۳۰۸) یعنی چې امام عیسی د امام صاحب نه په فقه او حدیث کې اکثره روایات نقل کړی دي امام عبدالله بن داود الخریبی (متوفی سنه ۲۱۳ه) فرمائی چې (یجب علی اهل الاسلام ان یدعوا الله لابی حنیفة رحمه الله فی صلواتهم قال وذکرحفظه علیهم السنن والفقه (تاریخ بغداد ج۱۳ ص ۳۴۲ البدایة والنهایة ج۱ ص۱۰۷)

یعنی پر مسلمانانو واجب ده چې په خپلو لمونځونو کې امام صاحب ته دعاوي وکړی او داذکرئې هم وکړو چه امام صاحب د مسلمانانو د پاره حدیث او فقه محفوظ کړل

(۷) لوی محدث امام یزید بن هارون فرمائی چې (کان ابوحنیفة تقیانقیًازاهداً صدوق اللسان احفظ اهل زمانه (مقام ابی حنیفة ص۹۳) یعنی امام ابو حنیفة متقی پاک زاهد عالم د ربښتنی ژبی خاوند او د خپلې زمانی دیرزیات قوی حافظ وو.

(۸) د جرح او تعدیل امام یحی بن سعید القطان د امام صاحب په هکله فرمائی :(انه والله لاعلم هذه الامة بماجاءعن الله ورسوله (مقدمة کتاب التعلیم ص ۱۶۸) یعنی قسم په الله چې امام ابو حنیفة په دې امت کې په هغه څه چې د الله او د رسول د طرف څخه راورل شوی دي د ټولو څخه لوی عالم وه

(۹) - امام ملاعلی القاری د امام محمد بن سماعه څخه نقل کوی فرمائی : ان الامام ذکر فی تصانیفه نیفا وسبعین الف حدیث وانتخب الاثارمن اربعین الف حدیث۰ (مناقب ملاعلی قاری ج۲ ص۴۷۴ ومناقب موفق ج۱ ص۹۵) یعني امام صاحب د اویا ۷۰۰۰۰ زرو څخه زیات احادیث په خپلو تصانیفو کې بیان کړی او د څلویښت زرو څخه یې خپل کتاب الاثار انتخاب کړی دی

**(تنبیه)**

د محدیثنو یو اصطلاح ده چې د سند په بدلیدو سره د حدیثو تعداد او شمار هم بدلیږي همدا وجه ده چې صحابه (ض) په دور کې د احادیث تعداد لږ وو ځکه سند مختصر او لندوه او د هغه څخه یو څه زمانه وروسته د حدیثو د امامانو په دور کې تعداد لکونو ته ورسیدلو نو څومره چې سند زیاتیږی او راویان بدلیږی هماغه شان

تعداد حديثو زياتيږی د دی خبری تائيد په لاندی وينا سره مشهور محدث ابراهيم بن سعيد الجوهری (متوفی ۲۴۴ھ) فرمائی : كل حديث لايكون عندی من مائة وجهٍ فانافيه يتيم. (تذكرة الحفاظ ج۲ ص۸۹)

يعنی هركله چه يو يو حديث په سلو سندونو سره زما سره نوي نوزه خپل ځان د هغه حديث په هكله يتيم كتم نو يو حديث د متن او لفظ په لحاظ فقط يو حديث دی مگر هركله چه د سلو سندونو سره هغه حديث بيل بيل روايت شی نو د محدثينو په نيز هغه سل احاديثه حسابيږی او كه بالفرض همدغه حديث په زرو طريقو او سندونو سره روايت شي نو بيا هغه د محدثينو په نيز په زرو احاديثو حسابيږي.

ځكه چې د احاديث د متونو تعداد د محدثينو په اتفاق سره چې د هغې جملې څخه سفيان ثوری امام شعبه امام يحی بن سعيد القطان او امام عبد الرحمن بن مهدی او امام احمد بن حنبل ديادوي وړدي په لاندې ډول د دوی وينا ده : (ان جملة الاحاديث المسندة عن النبي ﷺ يعنی الصحيحة بلاتكرار اربعة الاف واربع مائة حديث. (توضيح الافكار ص ۶۳).

يعنی بيشكه ټول هغه مسند صحيح احاديث بدون د تكرار نه څلور زره څلورسوه دي نو د نورو محدثينو په شان په كوم ځای كې چې امام صاحب ته د لږو حديثو نسبت شوی دی د هغو څخه په ظاهرې نظر همدغه متون مرادي او په كوم ځای كې چې د څلوېښتو زرو او اويا زرو ذكر راځی نو هلته هغه احاديث مرادي چې په متعدد طرقو او سندونو روايت شوي دي (مقام ابی حنيفة ص ۹۵) لكه صدر الائمة مكی د امام حسن بن زياد نه نقل كوي چې : (كان ابوحنيفة يروی اربعة الاف حديث الفين لحماد الفين لسائر المشيخة (مناقب موفق ج۱ ص۹۶).

يعني امام صاحب څلور زره احاديث روايت كړی دي دوه زره د حماد په سند سره او دوه زره د نورو مشائخو په سند سره په احاديث كې د امام صاحب د مشائخو او استاذانو شمير علامة ابو الحجاج يوسف بن عبد الرحمن المزی د پنځوس څخه زيات ښودلي دي . (تهذيب الكمال فی اسماء الرجال ج۱۳ ص۲۹-۴۱۸ )

## د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله ثقه والی

په علم الحديث كې د امام صاحب د ثقاهت او ثقه والی په هكله لاندی اقوالو ته توجه وكړی امام بن حجر مكی الشافعی ليكی چې : ( وسئل يحی بن معين عنه فقال ثقة ماسمعت احدًا ضعفه .(الخيرات الحسان ص ۳۲ البداية والنهاية ج۱۰ ص ۱۱۵ )

علامه ابن عبد البر المالکی د امام عبدالله بن احمد الدورقی (متوفی ۲۷۶ﻫ) دنه روایت کوي چې: (سئل یحی بن معین وانا عن ابی حنیفة فقال ثقة ماسمعت احدًا ضعفه هذا شعبة بن الحجاج یکتب الیه ان یحدث ویامرو شعبة شعبة. (الانتقاء فی فضائل الثلاثة الائمة الفقهاء ج۱ ص۱۲۷)

یعني د امام الجرح والتعدیل یحیی بن معین څخه د امام صاحب په باره کې پوښتنه وشوه او ما اوریدل نو هغه وفرمایل چې امام صاحب ثقه وو ما د هیچا څخه ندی اوریدلی چې د هغه تضعیف ئی کړی وی او د اشعبه بن حجاج دی چې د هغه طرف ته ته لیکل کوی چې هغه دی حدیث بیان کړی او هغه ته حکم ورکوي او شعبه خو بالاخره شعبه دی اویو روایت د اسې بیان شوی چې: (یقول یحیی بن معین وهو یسأل عن ابی حنیفة اثقة هو فی الحدیث فقال نعم ثقة ثقة کان و الله اورع من ان یکذب وهو اجل قدرًا من ذلک. (مناقب کردری ج۱ ص ۲۲۰).

امام محمد احمد بن محمد البغدادی فرمائی چې ما یحیی بن معین څخه د امام صاحب په هکله پوښتنه وکړه فقال عدل ثقة ماظنک بمن عدله ابن المبارک ووکیع (مناقب موفق ج۱ ص۱۹۲ ومناقب کردری ج۱ ص۲۲۰ یعني یحیی بن معین وفرمائیل چې هغه عادل او ثقه وو او هغه څوک چه د هغه تعدیل امام عبدالله بن مبارک او وکیع بن جراح وکړی نو د هغه په هکله ستا څه فکر و خیال وګمان دی، شیخ المحدثین امام علی بن مدینی د امام صاحب په هکله فرمائی: ( وهو ثقة لا بأس به ) (جامع بیان العلم وفضله ج۲ ص۱۴۹ اسیر اعلام النبلاء ج۱۱ ص ۴۷۹) یعني هغه ثقه وو لا باس به د اهم په معنی د ثقاهت سره دی .

امام ابو ذکریا یحیی بن معین څخه پوښتنه وشوه چې ابو حنیفة کان یصدق فی الحدیث قال نعم صدوق (جامع بیان العلم ج ص یعنی ایا امام اعظم صاحب په حدیث کې رښتنی وو هغه ویل بلکل رښتنی وو مشهور مورخ او محقق علامة عبد الرحمن بن خلدون په خپله مقدمه کې د امام صاحب په هکله داسې لیکلي: ویدل علی انه من کبار المجتهدین فی الحدیث اعتماد مذهبه بینهم والتعویل علیه واعتباره ردًا وقبولاً. (مقدمة ابن خلدون ص ۴۴۵) یعنی دا خبره چې امام ابو حنیفة د لویو مجتهدینو او لویو محدثینو څخه دی د دی خبری دلیل دا دی چې د هغه په مذهب باندې ردًا او قبولًا اعتماد کړی شوی دی

امام ابن حجر مکی لیکلی دی د امام صاحب په هکله لیکلي دي چې: وذکره الذهبی وغیره فی طبقات الحفاظ من المحدثین ومن زعم قلة اعتنائه بالحدیث فهو اما لتساهله او حسده. (الخیرات الحسان ص۶۰)

يعنى علامة ذهبى اونورو علماء امام ابو حنيفة دحديثود حافظانو په طبقه کې ليکلی دي او چاچې دامام صاحب په هکله دا خيال کړی وي چې دهغه توجه احاديثو ته کمه وه دا يا پر تساهل بنا مدی او يا پر حسد بل ځای علامة ابن حجر مکی فرمائي : (احذران تتوهم من ذالک ان اباحنيفة لـم يکـن له خـبرة تامة بغيرالفقه حاشالله كان فى العلوم الشرعية من التفسيروالحديث والالة من العلوم الادبية والمقـائيس الحكميـة بحراً لايجارى واماما لايمارى وقول بعض اعدائه فيه خلاف ذالـک منشـؤه الحسـد وحجة الترفـع على الاقران ورمیهم بالذوروالبهتان) (الخيرات الحسان ص ۲۵).

يعنى ای مخاطبه ددي خبري نه وويريږه چې ته داګمان کوي چې امام صاحب ته دفقهي څخه ماسوی دبل علم پوره معلومات نه وه حاشالله امـام ابو حنيفـة پـه شـرعي علومـو کې لکـه تفسـير حديث ادبی او قياسی علومـو کې بی پايـه بحر وو چې دهغـه مقابلـه نـه شـو کيدای دامـام صـاحب پـه هکلـه دځينو خلکو خلاف خبره دحسد او ځان لوی ګڼلو او دبهتان څخه بل څه نه دي

حافظ شمس الدين ذهبی او علامة ابن حجر عسقلانی دواړو ليکلي دي : قال محمد بن سعد العوفى سمعت يحيى بن معين يقول كان ابوحنيفة ثقة لايحدث بالحديث إلا بمايحفظه ولا يحدث ممالا يحفظه وسئل صالح بن محمد الاسدى عنه قال كان ابوحنيفة ثقة فى الحديث. (سيراعلام النبلاء ج۱۱ ص۴۷۹ وتهـذيب ج۶ ص۷۳ وطبقات الحفاظ ج۱ ص۸۵ وتهذيب الكمال ج۱۹ ص۱۰۵ )

يعنې امام صاحب ثقه عالم وو او کوم حديث به چې هغه ته ياد وو هغه به ئې خلکو ته بيانولو او کوم حديث به چې ورته حفظ او يادنو هغه به ئې نه بيانولو او دصالح بن محمد الاسدی څخه پوښتنه وشوه په هکله دامام صاحب کې هغه وفرمائيل امام صاحب ثقه فى الحديث دی

شيخ الاسلام ابن تيمية دمحدثينو او فقهاوو په روايتی او درايتی کمال او فقه باندې بحث کړی او په اخرکې ئې ليکلي دي چې : (واكثرائمة الحديث والفقه كمالک والشافعى واحمدواسحاق بـن راهويـه وابى عبيدوكذالک الاوزاعى والثورى والليـث هولاء وكـذالک لابى يوسـف صـاحب ابى حنيفـة ولابى حنيفة ايضًا ماله من ذالک ولکن لبعضهم فى الامامة فى الصنفين ماليس للاخروفى بعضهم مـن صـنف المعرفـة باحدالصنفين ماليس فى الاخرفرضى الله جميع اهل العلم والايمان (تلخيص الاستغاثة المعروف بـالردعلى البكرى ص ۱۴-۱۳)

يعنې اکثره امامان د حديث او فقه لکه امام مالک امام شافعي امام احمد اسحاق بن راهويه ابو عبيده

او همدارنګه اوزاعی سفيان ثوری او ليث بن سعد د احضرات او دغه شان ابو يوسف صاحب د ابو حنيفة

او پخپله د امام ابو حنيفة هم په دوی کې هغه مقام او مرتبه ده کومه چې د هغه د شان سره لائقه وی مګر په دوی

کې ځينو ته د دواړو قسمو امامتونو مقام حاصل دی چې نورو ته نه دی حاصل او بعضو ته په صنف د معرفت کې

هغه مقام حاصل دی کوم چې هغه نورو ته نه دی حاصل الله تعالی دی د ټولو ايماندارانو او د علم خاوندانو څخه

راضی او خوشحاله شي.

حافظ محمد بن يوسف الصالحی الشافعی په خپل کتاب عقود الجمان کې ليکې چې : (کان ابوحنيفة

من کبار حفاظ الحديث واعيانهم ولولا کثرة اعتناءه بالحديث ماتهياله استنباط مسائل الفقه الخ بحواله.

(تانيب الخطيب ص ١٥٦)

يعنې امام ابو حنيفة د حديث په حافظانو او فاضلانو کې شميرل کيدو که چيرته هغه د احاديثو زيات اهتمام

نه کولای نو په فقهی مسائلو کې د استنباط ملکه به هغه ته کله حاصله شوی وائي امام ابو داود سليمان بن

اشعث السبحستانی (متوفی سنه ٢٧٥ﻫ) فرمايي : رَحِمَ الله مالکاکان اماماًرحم الله الشافعی کان اماماًرحم

الله اباحنيفة کان اماماً [الانتقاء ص٣٢ وجامع بيان العلم ج٢ ص١٦٣].

يعنې الله تعالی دی پر امام مالک رحم وکړي څکه چه هغه امام وو الله تعالی دي پر امام شافعي رحم وکړي

څکه امام وو الله تعالی دې پر امام ابو حنيفة رحم وکړی څکه امام وو او علامة شمس الدين الذهبی د امام

ابو داود څخه نقل کوي ان اباحنيفة کان اماماً (تذکرة الحفاظ ج١ ص١٦٠

يعنې امام ابو حنيفة امام وو د امام ابو داود په شان لوی محدث چې کله د امامت يادونه کوي نو د هغې

متبادره معنی د حديثو امامت دی د اچې هغه د امام صاحب ذکر د امام مالک او امام الشافعی په ضمن کې په

امامت سره کوی نو د دې څخه ښکاري چې د هغه د حديث او فقه د دواړه څنګو امامت مراد دی څکه امام مالک

او امام شافعي د دواړه د احاديثو امامان وو.

د مذکوره اقوال نه د امعلومه شو چه امام ابو حنيفة يو ازې محدث نه وو بلکه د علم الحديث او د دې فن

او روايت د لويو مجتهدينو او حفاظو څخه شميرل کيږي.

شيخ المحدثين امام علی بن المدين فرمايي: ابوحنيفـة روی عنـه الثـوری وابـن المبـارک وحمـادبن زيدوهشام وكيع وعبادبن العوام وجعفربن عون وهوثقة لا بأس به. (الخيرات الحسان ص ٧٤)

يعنې دامام ابو حنيفة څخه علامه ثوری او عبدالله بن مبارک او حمادبن زيداوهشام اووكيع بن جراح اوعبادبن عوام اوجعفربن عون حديث روايت کړي دي او امام صاحب ثقه لاباس به وو (اميرالمؤمنين علامه شعبة فرمايي: كان و الله حسن الفهم وجيدالحفظ حتى شنعواعليه بمااعلم به منهم وا لله سيلقون عندا لله وكان كثيرالرحم عليه. (الخيرات الحسان صفحه ٣٤)

يعنې په خدای تعالی قسم چه امام ابو حنيفة نهايت تيزفهم او تيزي حافظې خاوندوو خلكوپرهغه باندې په هغه خبروکې طعن ولګولو چه دهغوی څخه امام صاحب زيات عالم ووپرهغه خبروباندې اوقسم په خدای چه دوی به دالله تعالی سره مخ شي يعنی ددغه بدګوی بدله به ورته ملاوشي او امام شعبه پر امام صاحب ډيرترحم کړی دی. وسئل يحيى بن معين احدث سفيان عنه قال نعم كان ثقة صدوقافى الفقـه والحـديث مامونـاعلى دين الله . (الخيرات الحسان ص ٣٥ ).

يعنې ديحيی بن معين څخه تپوس وشوچې امام سفيان ثوری دابو حنيفة څخه روايت حديث کړی هغه وويل او کړی دي او دايې هم وفرمائل چې امام ابو حنيفة په فقه او حديث کې ثقه او صدوق دی او دالله تعالی پردين باندې مامون دی غيرمقلد عبدالرحمن مبارکپوري وائې چې امام ابن معين او امام شعبه او امام ثوری رحمهم الله تعالی دی ټولو دامام ابو حنيفة توثيق کړی دی . (مقام ابی حنيفة تحقيق الكلام ص ١٤٠) او امام حاکم امام ابو حنيفة رح دکوفې په ثقات وو کې ليکې دی . (معرفة علم الحديث ص ٢٤٩ )

## دامام ابوحنيفة احتياط فى الاحاديث

په روايت کې زيات احتياط ضروری دی ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي: مـن كـذب على متعمـدًا فليتبوأ مقعده من النار. (بخاری ج١ ص ٣٨مسلم مقدمة صفحه ٣). چاچې په ماباندې دروغ وويل قصدًا نو دادې خپل ځان لپاره داوسيدځای جهنم کې تيار کړي.

نو په همدې خاطر محدثينو په دې هکله زيات احتياط ته توجه کړي نو امام ابو حنيفة په دې باره کې نهايت زيات احتياط څخه کار اخيستې دی لکه څنګه چې خطيب بغدادی په خپل سند سره دامام يحيی بن معين څخه

روایت کوي چې: انه سئل من الرجل یجدالحـدیث بخطـه ولا یحفظـه فقـال ابوذکریـاکان ابوحنیفـة یقـول لایحدث الابمایعرف ویحفظ. (کفایة فی علم الروایة ص ۲۳۱ )

یعنې دیحیی بن معین څخه پوښتنه وشوچې که یوسړی پخپل خط سره لیکل شوي حدیث پیدا کړي مګرهغه حدیث په یادنه وي نوهغه به څه کوي امام ابوذکریا یحیی بن معین وفرمایل چې امام ابو حنیفة خوفرمایل چې هغه ته ددې حدیث بیانولو جوازنشته هغه یوازې هغه حدیث بیانولای شي چې په یادئې وي.

امام حاکم پخپل سند سره د حضرت امام ابویوسف څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: عـن ابی حنیفـة انه لایحل لرجل ان یروی الحدیث الااذاسمعه من فم المحدث فیحفظه ثم یحـدث بـه. (مـدخل فی اصـول الحدیث ص۱۵ الجواهرالمضیئه ج۱ ص۲۵۷) یعنې امام ابو حنیفة وفرمایل چې نه دی جائزیوسړي لره چې هغه یوحدیث بیان کړي ترڅوپورې چې هغه دیومحدث باالمشافه هغه حدیث نه وي اوریدلي اوبیاهغه حدیث هغه ته ترهغه وخته پورې یادوي چې کله ئې هغه بیانوي. امام وکیع بن جراح فرمائې ( لقدوجـدالورع عـن ابی حنیفة فی الحدیث مالم یوجدعن غیره ) (مناقب صدرالائمة ج۱ ص ۱۹۷).

یعنې یقیناابوحنیفة په حدیثوکې هغه احتیاط کړی دی چې هغه احتیاط په بل چاکې نه دی موندل شوی

امام عبدالوهاب شعرانی الشـافعی (متوفی ۹۷۳ھ) لیکې دي: وقـدکان الامـام ابوحنیفـة یشـترط فی الحدیث المنقول عن رسول الله ﷺ قبل العمل به ان یرویه عـن ذالـک الصـحابی جمیـع اتقیـاءعن مـثلهم وهکذا. (میزان الکبری للشعرانی ج۱ ص۶۳).

یعنې کوم حدیث چې دنبي کریمﷺ څخه منقول وي په هغه کې امام صاحب داشرط لګوي چې دعمل څخه وړاندې به داحدیث کتل کیږي چې دحدیث دراوي څخه بیاترصحابی پورې دپرهیزکارانویوخاص جماعت هغه نقل کړی وي بیاهغه حدیث دعمل کولووړدی. علامة القرشي دامام صاحب څخه دحدیث دروایت یوبل مهم شرط داهم نقل کړی دی چې: (شرط جوازروایت الحدیث عندابی حنیفة ان الراوی لم یـنس الحـدیث مـن حین حفظه الی وقت الروایة الجواهرالمضیئة ج۱ ص۳۹۰)

یعنې دامام صاحب په نزد دروایت دجوازلپاره شرط دادی چې یوراوي دکوم وخت څخه چې یوحدیث حفظ کړی بیابه یې ترهغـه وختـه پورې هیرنه وي په کوم وخت کې چې روایت کـوي، علامة جلال الدین السیوطی دامام صاحب ددغوسختوشرائطودرانقلولوڅخه وروسته لیکي: وهذامذهب شـدید وقـد اسـتقر

العمل على خلافه فلعل الرواة فى الصحيحين ممن يوصف بالحفظ لا يبلغون النصف (تدريب الراوى ص۱۶۰) يعني دا سخت مذهب دی او عمل دد ې خلاف دی ځکه چې ممکنه ده د بخاری او مسلم دهغه راويانو تعداد چې یاد شوی شرط باندی برابروي نيمايې ته هم ونه رسيږی. د دې ځخه واضح ښکاري چې امام ابو حنيفة شرط دامام بخاری او مسلم د شرطونو ځخه زيات سخت دي

که ځه هم جمهور محدثين په دې شرائطو کې دامام صاحب سره ملګرتيانه کوي خو دا خبره صحيح ده چې امام صاحب په علم حديث کې دلويو مجتهدينو د جملې ځخه وو په دې خاطر ديا ئتا هغه دخپل اجتهاد مطابق داشرائط لګولي دي او په دې شرط کې پر هغه باندې هيڅ کوم طعن او انکار نشته لکه ځنګه چې امام بخاری دملاقات امکان ته خاصه توجه نه ده کړی بلکې دحقيقي ملاقات شرط يې لګولی دی که ځه هم يو ځل وي د دې لپاره چې دتدليس او عنعنی شنبه پاتې نه شي مګر جمهورو محدثينو چې دهغه په سر کې امام مسلم دی هغه رد کړی دی (مقدمة صحيح مسلم) او جمهور محدثينو دهغه سره اتفاق نه دی کړی او لکه ځنګه چې امام بخاری او امام ابن العربی په حسن حديث باندې عمل کول جائزنه ګني مګر جمهور محدثين دهغوی مخالف دي قاضي شوکانی په دې باره کې داسې فرمايي: (والحق ماقاله الجمهور) (نيل الاوطار للشوکانی ج۱ ص۲۲)

علما په دې خبره باندې پوهيږي چې دعمل لپاره يوازې صحيح حديث مدار ګرځولو باندې دحسن حديث دټولو اقسامو ځخه انکار لازميږي په داسې حال کې چې زيات احاديث حسن دی

امام عجلی دمشهور محدث حماد بن سلمة (متوفی ۱۶۷ھ) چې هغه دذهبی دوينا مطابق لوی محدث او امام وو دده په باره کې فرمايي: (ثقة رجل صالح حسن الحديث وقال ان عنده الف حديث حسن ليس عند غيره) نو تاسو فکر او سوچ وکړی چې ديو محدث سره يوزر حسن حديثونه موجود دی نود نورو محدثينو سره به ځومره حسن احاديث وي. نو مخکينی خبرې ته په پام سره ايا ديو چا لپاره دا خبره روا ده چې هغه داو وائي چې امام بخاری غوندې عظيم محدث دزرو احاديث ځخه منکر دی او يا درسول الله ﷺ داحاديثو مخالفت يې کړی دی هيڅکله نه ديو مسلمان په زړه خو دا وهم هم نه راځي او نه به دچا په فکر کې داتصور راوګرځي حاشا وکلا

علماء خو داوائي چې امام بخاری دحديث دفن يو عظيم امام او مجتهد دی هغه چې دخپل اجتهاد پربناء روايت دقبوليت او په روايت باندې دعمل لپاره کوم شرائط لګولي دي په هغه کې خو هغه بلکل ماجور دی

صدفیصدهمدغه شان امام اعظم ابوحنیفة چې په فن حدیث کې داخپل اجتهاد مطابق دروایت دقبولیت لپاره کوم شرائط لګولي دي او په کوم واحادیثو کې چې دهغه داجتهاد مطابق هغه دده شرائط موجود نه وي نو هغه امام صاحب نه دی اخیستي نو اوس تاسو قضاوت وکړی چې امام صاحب ددغه ترک په وجه سره دی تارک الحدیث یا مخالف الحدیث وګرځول شي ؟هیڅ عقلمند منصف مزاجه او دتعصب څخه خالی مسلمان عالم ته داخبره دمنلو وړنده البته دابلکل صحیح خبره ده چې جمهور محدثین دامام صاحب سره ددغو سختو شرائطو په هکه علمي مناقشه کولی شي په صحیح دلائلو سره خو سره دادب او احترامه چې دادسلفو صالحینو معمول دی لکه څنګه چې جمهورو محدثینو د امیر المؤمنین فی الحدیث امام بخاری رح پر حقیقت لقاء او عدم جواز العمل بالحدیث الحسن قوی باندې علمي رد کړي دی خو جمهورمحدیثنو دامام بخاری په هکله هیڅکله دغیر مناسب اوداانصاف څخه لیری الفاظ نه دي استعمال کړي خو کله چې دامام صاحب او دهغه شاګردانو او ملګرو بیان کیږي نو دحسن ظن ټولي دروازې وتړل شي او داکار قطعًا بې انصافی ده دهرچا لطرفه چې وي.

مولنامبارک پوري صاحب لیکلي دي چې دحدیث دقیودو او شروطو په هکله کې چې څومره تشدید او پابندی او احتیاط امام ابوحنیفة کړی دی بل چادهغې ثبوت نه دی ورکړی تحفة الاحوذی ج۲ ص۱۵

علامة ابن خلدون فرمائي: والامام ابوحنیفة انماقلت روایته لماشددفی شروط الروایة والتحمل وضعف روایة الحدیث الیقینی اذاعارضهاالفعل النفسی وقلت من اجلهاروایته فقل حدیثه لانه ترک روایة الحدیث متعمدًافحاشاه من ذالک ویدل علی انه من کبار المجتهدین فی علم الحدیث. (مقدمة ابن خلدون ص ٤٤٥).

ددغه سختو شرائطو یادونه علامة ابن صلاح هم په مقدمة ص۲۲۲ کې کیږی ده او علامة نواوی هم په (التقریب والتیسیر للنواوی ص ۷۲ کې کړی ده او علامة عراقی هم په فتح المغیث ص۲۵۶ کې کړیده او علامة سخاوي هم په فتح المغیث ج۲ ص۲۲۸ ص۲۳۱ کې کړیده

## دامام اعظم محبت اوعشق مع الحدیث والمحدثین

علامة خطیب اوصدر الائمة په خپل سند سره نقل کوي چې امام صاحب به کله بغداد ته دتجارت لپاره لاړو او بیابه چې کله واپس دګتې سره کوفي ته راغلو. نو (فیشتری بهاحوائج الاشیاخ من المحدثین قوتهم

وکسوتهم وجميع حوائجهم مقام ابی حنيفة ص۱۱۳ تـاريخ بغـدادج۱۳ ص ۳٦۰مناقـب موفـق ج۱ ص٢٦٢)
يعنې په هغه کتې سره به يې د حديث د مشائخو حاجتونه خوراک لباس او نور ضرويات ورته اخيستل

امام صدرالائمة علامة مکي داهم ليکلي چې : (وماکان يدع احـدًامن المحـدثين الا بـره بـراً واسفًا) (مناقب موفق ج۱ ص٢٦٤ ) يعنې امام صاحب په محدثينو کې هيڅوک هم داسې ندی پرې ښودلی چې دهغه سره يې کافی اندازه احسان او حسن سلوک نه وو کړی : (امـام نضرـبن محمـدالمروزی المتـوفی سنه۱۸۳هـ) فرمايې: (لم ار رجلاً لزم للاثر من ابی حنيفة) (الجواهرالمضيئة ج۲ ص۲۰۱).

يعنې امام صاحب څخه زيات هيڅوک په حديثو باندې لزوم کوونکې او کلک دريدونکې مې نه دی ليدلی امام طحاوی الحنفی المتوفی سنه۳۲۱هـ څخه نقل دی چې امام ابو حنيفة به په مسئله کې ديو سرې سره بحث کولو د بحث په دوران کې به خاموش شوه. فسکت ابوحنيفة فقال بعـض اصـحابه لاتجيبـه ياباحنيفة فقال بماجيبه وهويحدثنی بهذاعن رسول الله ﷺ. (شرح العقيدة الطحاوية ص۲۸۱).

يعنې امام صاحب به چپ او خاموش پاتې شو هغه ته به ځينو ملګرو وويل چې ته هغه ته ولی جواب نه ورکوې امام صاحب به و فرمايل چې هغه ماته د رسول اللهﷺ احاديث بيانوی زه هغه ته څه جواب ورکړم. امام الحسن بن صالح بن حی المتوفی سنه۱٦۷هـ د امام صاحب په هکله فرمايلي : (کان النعمـان بـن ثابـت فاهماعالماً متشبتافی علمه اذاصح عنده الخبرعن رسول الله ﷺ لـم يعـده الی غـيره. (الانتقـاءص وتانيـب الخطيب ص١٥٤ لذاهدکوثری).

يعنې امام ابو حنيفة نعمان بن ثابت فهيم عالم او په خپل عالم کی قوی او پوخ وو کله چې به د هغه سره د نبی کريم صلی الله عليه وسلم حديث صحيح ثابت شو نو بيا به ئې د هغه څخه بل کوم شئ ته تجاوز نه کولو.

## امام صاحب دضعيف حديث په مقابل کې قياس اوراې پريښودل

امام ابو حنيفة به په ضعيف حديث باندې عمل کولو او د هغه په مقابل کې به يې قياس ترک کولو د مخالفينو اعترافات علامة ابن حزم الظاهری پدې باره کې ليکې : ( جميع اصحاب ابی حنيفـة مجمعـون علی ان مذهب ابی حنيفة ان ضـعيف الحـديث اولی عنـده مـن القيـاس والـرائ. (مناقـب ابی حنيفـة ص۲۱ والخـيرات الحسـان ص۷ وقواعـد فی علـم الحـديث ص۹۵ ص۹٦/ قواعدالتحـديث للقاسـمی ص۱۱۸ نضرالامانی ص۱۱٦)

يعني دامام ابوحنيفة ټول متبعين او ملګري پدې باندې متفق دي دابوحنيفة په مذهب کې ضعيف حديث په راى او قياس باندې افضل دى بل ځاى ابن حزم الظاهرى ليکي : قال ابوحنيفة الخبر الضعيف عن رسول اللهﷺ اولى من القياس ولا يحل القياس مع وجوده احكام الاحكام فى اصول (الاحكام ج۷ ص٥٤)

يعني امام صاحب ويلي دي چې رسول اللهﷺ ضعيف حديث په موجوده ګی کې په قياس باندې عمل ناجائز دى حضرت ملاعلى القارى داحنافو مذهب په باره کې ليکلي : ان مذهبهم القوى تقديم الحديث الضعيف على القياس المجرد الذى يحتمل التزئيف. (مرقات ج۱ ص۳) يعني داحنافو مذهب دادى چې هغوى ضعيف حديث هم پر قياس باندې چې هغه دکمزورى احتمال ولري مقدم ګڼي

شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه پدې باره کې ليکي : ومن ظن بابى حنيفة اوغيره من ائمة المسلمين انهم يتعمدون مخالفة الحديث الصحيح القياس اوغيره فقداخطاءعليهم وتكلم امابظن وامابهوى فهذا ابوحنيفة يعمل بحديث التوضى بالنبيذفى السفرمع مخالفته للقياس وبحديث القهقهة فى الصلوة مع مخالفته للقياس لاعتقاده صحتهاوان كان ائمة الحديث لم يصحوهما. (مجموع الفتاوى ج۲۰ ص۳۰۵-۳۰٤ )

يعني هرڅوک چې ګمان کوي چې ابوحنيفة يايوبل دمسلمانانو امام چې قصداً يې دحديث صحيح مخالفت کړى دى او قياس ته ئې ترجيح ورکړى ده نو بيله شکه هغه مسلمان سخت په وهم او اشتباه کې واقع دى اوداسې خبره يې يادګمان اوياهم دهوى څخه کړيده ځکه امام صاحب په سفر کې دخرما پر نبيذ داودس کولو په حديث عمل کوى او دادقياس مخالف کاردى او په حديث دخندء قهقهه سره چې لمونځ فاسدوي او اودس ماته وي عمل کوي او دادقياس مخالف دى دادواړه حديثه امام صاحب صحيح ګڼي که څه هم نورمحدثين يې ضعيف ګڼي او علامه ابن قيم پدې هکله ليکلي چې : (واصحاب ابى حنيفة مجمعون على ان مذهب ابى حنيفة ان ضعيف الحديث عنه اولى من القياس والراى وعلى ذالک بنى مذهبه كماقدم حديث القهقهة مع ضعفه على القياس والراى وقدم حديث الوضوءبنبيذالتمرفى السفرمع ضعفه على الراى والقياس ومنع قطع السارق بسرقته اقل من عشردراهم والحديث فيه ضعيف وشرط فى اقامة الجمعة المصروالحديث فيه كذالک وترک القياس المحض فى مسائل الابارلاثارفيهاغيرمرفوعة فتقديم الحديث الضعيف وآثارالصحابة على القياس والراى قوله وقول الامام احمد. (اعلام الموقعين ج ۱ص۷۷ قواعدفى علوم الحديث ۱۰۰-۹۹ )

علامة محمدبركت الله ليکي چې : (روی امامنـاالاعظم وهمامناالاقـدم ان الضـعيف ايضـااولی من اراءالرجال. (حاشية اصول الشاشی)

علامة مرتضی زبيدی ددې مسئلې بيان څخه وروسته ليکې چې :(فهذاصريح من الامام بانه کان يقدم الاثرعلی القياس فضلاً عن الحديث النبوی. (عقودالجواهرالمنيفة ج ١ص٨)

يعنې د امام صاحب داذکرشوی ټول اقوال صريحًا پدې دليل دی چې امام صاحب دصحابی قول هم په قياس مقدم ګڼي نو دحديث باره کې به څه فرمايې همدارنګه علامة مصطفی السباعی رح ليکي دی عرض داچې دبی شماره تصريحاتونه يوڅوصريح عبارتونه دی چې ددې خبرې واضح دليل دی چې دامام صاحب اجتهادي رايه اګرکه ډيره قوی او مضبوطه وي په صحيح حديث باندې ئې هيڅکله نه مقدم کوي بلکې مونږکوروچې دابن جزم په شان ناقدهم دعراق دفقهاءپدې اجماع نقل کوي چې ددې فقهاءوپه نيزضعيف حديث ته هم په قياس ترجيح حاصله ده (السنة ومکانتهافی التشريع الاسلامی.

## امام صاحب په کوم وقت کې درای اوقياس څخه کار اخيستو

داخبره صحيح ده چه امام صاحب دقياس اورای څخه کار اخيسته خوداچې امام صاحب په کوم وخت درای اوقياس نه کاراخيستی لاندې اقوالوته توجه کول ضروری ده امام صاحب فرمايې : (اخذبکتاب الله فمالم اجدفبسنة رسول الله ﷺ فان لم اجدفی کتاب الله ولااجدفی سنة رسول الله ﷺ اخـذت بقـول الصحابة اخذمن شئت منهم وادع من شئت منهم والااخرج من قـولهم الی قـول غـيرهم فامـااذا انـتهی الامـرالی ابراهيم والشبعی وابن سيرين والحسن وعطاوسعيدبن المسيب وعددرجالاًفاقوم اجتهدکمااجتهدوا) (تاريخ بغدادج١٣ ص٣٦٨ مناقب ابی حنيفة للذهـبی ص٢ ص١٤٤ الجواهرالمضـيئة ج ٢ص٢٤٩ تبـيض الصـحيفة ص٦٠ تهذيب التهذيب ج١ ص ٤٠١)

ترجمه :زه کتاب الله باندې عمل کوم که چيرته ماته په هغه کې حکم پيدانه شونوبيائې درسول الله ﷺ په سنتوکوم که هلته هم حکم پيدانه شوبيادصحابه کراموپراقوال چې دچاقول غوره کوم اودچاقول پريږدم مګردصحابه وودقول څخه لاندې مرتبه کې دچاقول نه اخلم اوکله چې خبره ابراهيم اوشعبی اوابن سيرين اوحسن اوعطااوسعيدبن مسيب ته ورسيږی نولکه څنګه چې هغوی اجتهادکوي زه هم اجتهادکوم

اوبل ځای کې د امام اعظم صاحب خپل قول دی وایې چې : (ليس لاحدان يقول بـراى مـع كتـاب الله تعالى ولامع سنة رسول الله ﷺ ولامع مااجتمع عليه الصحابة (عقودالجمان ص ۱۷۵الخيرات الحسـان ص ۲۷)

ترجمه :دهیچالپار جائزنه ده چې د کتاب الله او سنت رسول او دصحابه دا جماع په موجوده ګې کې دخپلې رای او قیاس څخه کار واخلي ځینو خلکو خویا تعصبا اویا دعدم علم په وجه او یادنه تحقیق لوجه دې خبری ته هوی ورکړیده چې امام صاحب به قیاس ته پر سنت رسول ترجیح ورکوله او بیایې عقلي دلائل پر نقل باندې مقدم ګڼل دا محض تهمت او افتراء ده امام صاحب ددې خبرې پخپله تردید کړی دی امام ابو حنيفة فرمايلي دي: (كذب و الله وافترى علينامن يقول اننانقدم القيـاس على النـص وهـل يحتـاج بعـد النـص الى القيـاس. (الميزان الكبرى ج۱ ص٦٥)

يعنې هر څوک چې زمونږ په هکله وايې چې دوی پر نص باندې قياس مخکې کوي قسم په الله تعالى چې دورغ او پر مونږ تهمت دی او کله چې نص موجود وي قياس ته حاجت نشته بل ځای فرمايلي چې : ايـاكـم والقول فى دين الله تعالى بالراى وعليـكم باتباع السنة فمن خرج عنهاضل (الميزان الكبرى ج۱ ص٥٠)

او محدث علي بن خشرم المتوفى سنه۲۵۷ھ) فرمايلي دي : (كنـاف مجلـس سـفيان بـن عيينـه فقـال يااصحاب الحديث تعلموافقه الحديث لايقهركم اصحاب الراى ماقال ابوحنيفة شـيئاالاونحن نـروى فيـه حديثًاوحديثين. (معرفة علوم الحديث ص ٦٦)

مونږ د سفيان بن عيينه په مجلس کې ناست وو هغه وفرمايل ای اصحاب الحديث تاسو په حديث کې تفقه پوه حاصله کړی داسې نه وي چې اصحاب الراى در باندې غالب شي امام ابو حنيفة هيڅ داسې شی نه دی فرمايلي چې په هغه کې مونږ یو یا دوه حديثه روايت کړی نوی عبد الله بن مبارک نه دامام صاحب دا قول روايت شوی چې : عجباللناس يقولون افتى بالراى مافتى الاباثر. (الخيرات الحسان ص٤٩ )

يعنې تعجب له خلکو چې وائې امام ابو حنيفة پخپله رأی باندې فتوی ورکوي او ما بغير د حديث او أثر نه په بل څه فتوی نه ده ورکړې د خطيب بغدادي څخه روايت دی چې قال ابو حنيفة البول فى المجسد احسن من بعض القياس (كتاب الفقيه والمتفقه ج ۱ص ٤٠١) او دامام ابو حنيفة څخه دا هم نقل دی چې : (لعن الله من يخـالف رسول الله به اكرمنا وبه استنقذنا (الانتقاءص۱٤۱ تانيب الخطيب ص ۱۱٤)

يعني په هغه شخص دی دالله تعالی لعنت وی چې درسول الله ﷺ خلاف کوي په هره خبره کې چې وي څکه درسول الله په وجه خو مونږته دایمان شرف نصیب شوی دی او ددوی په وجه خو مونږه دهلاکت څخه بچ شوي یو حضرت عبدالله بن مبارک فرمائی: (لا تقولوارای ابی حنیفة ولكن قولوانه تفسیرالحدیث. (ذیل الجواهر ج۲ ص۴۶۰) تاسو داسې مه وایئ چه دا دامام صاحب رای او قیاس دی بلکې داسې ووایئ چې دا دحدیث تفسیر دی.

امام عبدالوهاب شعرانی او امام ابن حجرمکی او علامة سیوطی دامام صاحب څخه نقل کوي چې امام صاحب فرمایلي دي: ماجاءعن رسول الله ﷺ بابی هووامی فعلی الرأس والعین وماجاءعن اصحابه تخیرنا وماجاءعن غیرهم فهم رجال ونحن رجال. (سیراعلام النبلاءج۶ص۴۰۱ المیزان الکبری ج۱ ص۲۹ الخیرات الحسان ص۲۷ تبییض ص۲۷)

یعني کوم څه چې درسول الله ﷺ څخه ثابت دی دهغې نه خودی زما مورو پلار قربان شی نو هغه راته په سراوسترګو قبول او منظور دي او کوم څه چې دصحابه څخه ثابت وي په هغوکې زمونږ انتخاب دی او که دصحابه وڅخه بغیر دبل چا قول راشی نو هغوی هم رجال سری دی او مونږه هم سري یو علامة عبدالوهاب الشعرانی ددې بحث څخه وروسته لیکي چې: (فاولهم تبریًامن کل رای یخالف الشریعة الاعظم ابوحنیفة النعمان بن ثابت رح خلاف مایضیفه الیه بعض المتعصبین ویافضیحةً یوم القیامة من الامام اذاوقع الوجه فی الوجه فان من کان فی قلبه نورلا یتجرأ ان یذکراحداً من الائمة بسوءٍ. (المیزان الکبری ج۱ ص۵۰)

وایضًا امام عبدالوهاب الشعرانی لیکي چې: ( فصل فی بیان قول من نسب الامام اباحنیفة الی انه یقدم القیاس علی حدیث رسول الله ﷺ اعلم ان هذاالکلام صدرمن متعصب علی الامام متهورفی دینه غیرمتورع فی مقاله غافلاًعن قوله تعالی ان السمع والبصروالفؤادکل اولئک کان عنه مسؤلاً. (المیزان الکبری ج۱ ص ۵۶)

**توجمه:** دا فصل دهغه خلکو دقول او وینا او خبری په تضعیف کې منعقد دی چې هغوی دا وایي چې امام صاحب درسول الله ﷺ پر حدیث باندې قیاس مقدم کړي پوه شه چې دا کلام دامام صاحب په هکله دهغه کس نه صادرشوی دی او صادیږي چې هغه متعصب وي په دین کې بې باکه وي او په خپلو خبروکې پرهیزکوونکي نوی او هغه دالله تعالی ددې قول څخه غافل دی چې بیشکه غوږونه سترګې او زړه ددې ټولو په هکله به تپوس کیږي

نعلم من جميع ماقدمناه ان الامام لايقيس مع وجودالنص كمايزعمه المتعصبون عليه وانمايقيس عندفقد النص(الميزان الكبرى ج ١ص٥٠ للشعرانى )يعنې فقهاء

## اصحاب الراى يعنى فقهاء او اصحاب الحديث

دعصرقديم څخه ترنن پورى دعلماءكرام دوه مختلفو قسمونه هريوپه يو خاص اصطلاح شهرت لري يو اصحاب الحديث بل اصحاب الراى بعض معاند وخلقودى اصطلاحاتو ته ديونا روا اختلاف شهرت وركړى دى چې خاص دقياس اورايې اتباع كوى او حديث دقياس اوراى په مقابله كې پرېږدي اوس ځينو اسلام دښمنه مستشرقينودى خبرى ته زيات زور وركړى دي.

حالانكه داهسى بې ځايه اودواقعي اونفس الامربلكل خلاف ده ځكه دغه دواړه طائفى اصحاب الحديث او اصحاب الراى دعلماء دين اسلام طبقي دى غټ او اصولى اختلاف يو بل سره نه لري .

اصحاب الحديث دقياس منكرندى بلكه حجت يې ګڼى اونه اصحاب الراى دحديث داهميت څخه غافله اوناخبره دى بلكې پدې هكله دواړه طبقي پدې خبره باندې اتفاق لري چې بنصوص كلهاپرقياس باندې مقدم اومخكې دى او كوم ځاى چې نصوص نه وي هلته دقياس او اجتهادنه كاراخلي

**ياداشت :**

په تيروزمانيو كې ددغو اصطلاحاتو حقيقي مطلب دومره وه چې كوم كسان په حديث زيات مشغول اومصروف وه هغوى ته به داصحاب الحديث اصطلاح استعماليده او كوم خلك چې فقه باندې مشغول وه هغوى ته اصحاب الراى اصطلاح استعماليده دواړه متضاده فرقى نوي بلكه دعلم الدين دوشاخونه وه محدثين ته اصحاب الحديث پدى وجه ويل كيدل چې دوى حديث حفظ او روايت خپل شغل او مشغله كرځولى وه ټول توان طاقت اوسعى په حديثو كې مصرفوله استنباط الاحكام ته يې داسې خاص توجه نوه او فقهاءته به داصحاب الراى اصطلاح پدې خاطر استعماليده چې دوى استنباط الاحكام الفقهية خپله مشغله او وظيفه كرځولى وه خپل ټول طاقت اوسعى پدې كې صرف كوله زياته توجه يې دحديثو كتابونو تاليفولو اونشرولو پرځاى دهغوداحكامو دتاليف او اشاعت اونشرطرف ته وه كوم چې دحديثو څخه استنباط كيدل

نوپه كومو مسائلو كې به چې هغوى دخپلو شرائطو سره داجتهاد او استنباط لپاره مطابق حديث پيدانه كړونو بيا به يې دقياس اوراى څخه استفاده كوله يا به يې دحديث دفهم لپاره دفقاهت نه كاراخستو نوپه همدې

خاطرورته اصحاب الرای ویل کیدل خود اسې هیڅکله نوه چه هغوی به صحیح حدیثونه پرینبول او د هغه پرځای به یې دقیاس څخه کاراخیستلو (درس ترمذی ج۱ ص۱۱۱

**دتائیدلپاره :**

علامة ابن الاثیرالجزری رح الشافعی المتوفی سنه۶۰۶ھ فرمایې : (والمحدثون یسمعون اصحاب القیاس اصحاب الرای فیمایشکل من الحدیث اومالم یات فیه حدیث ولااثر النهایة فی غریب الحدیث والاثرص۱۷۹ مقدمة تحفة الاحوزی ص۲۰۶)

دمخکنې عبارت څخه په ډاګه داخبره واضحه او معلومه شوچې اصحاب الرای (فقهاء) هغه علماء دی چې هغوی مشکل احادیث اوغیرمنصوص مسائل په خپل فقاهت تدبیراو دزړه په بصیرت اود مسلمانی په فراست سره حل کوي په هم دې خاطرمحدثین ورته اصحاب الرای وایې نودځینوهغوخلکومشهورقول چې اصحاب الرای یوازې داحناف او اهل کوفی لقب دې باطل شوځکه داپه عصرقدیم کې ټولوفقهاءوو ته استعمالیدو.

**تائید:**

ابن قتیبه په خپل کتاب (المعارف) کې دټولوفقهاءوو تذکره داصحاب الرأی په عنوان سره کړی ده او امام مالک او امام شافعی او امام اوزاعی اوثوری غوندې محدثین یې هم پکې شامل کړی بل علامة محمدبن الحارث الخنشی په خپل کتاب قضاة قرطبه کې دمالکې علماءتذکره داصحاب الرای په اصطلاح کړیده بل حافظ ابوالولید المالکی رح په خپل کتاب تاریخ علماء اندلس کې فقهاء او ومالکیو نه یې په اصحاب الرأی اصطلاح تعبیرکړی اوعلامة ابوالولید الباجی المالکی رح په (منتقی شرح موطاءکې دټولوفقهاءدپاره اصحاب الرای لقب کارولی دی او حافظ ابن عبدالبررح هم دمالکي علماءلپاره دغه لقب په کثرت سره استعمال کړی دی تردې حده چې دده دموطاءدشرحی الاستذکارلمذاهب الامصارفیماتضمنه الموطئامن معانی الرای والاثار) څخه واضح بریښی چې اصحاب الرای لقب دفقهاءووټولی ته استعمالیده . (درس ترمذی ج۱ ص۱۱۳-۱۱۲)

**یاداشــت** : داخبره هم صحیح ده چې دغه اصطلاح په مرورالزمان سره وروسته داهل عراق او کوفی او دامام صاحب او دده اتباعو پورې خاص شوخوداپدی خاطرنه چې دوی قیاس اورای په نص مخکې کوله

بلکه داله دی وجي چي امام صاحب اودده دپیروانو اصلی هدف او وظیفه دنصوص څخه استنباط الاحکام وؤ ابوبکربن ایوب الحنفی لیکي چي : (وقدراینامـذاهب جماعـة مـن اهـل الـرای قـدذهبت واضـمحلت ومذهب ابی حنیفة باقٍ. (السهم المصیب ص٤٦)

یعني وایي چي مونږ ولیدل چي داهل الرای دجماعت مذهبونه ختم اوکمزوری اوناأشناو ومګرامام ابوحنیفة مذهب باقی پاتی شوغرض داچه اهل الرای خونورهم وومګرفقه اجتهاد قیاس اورای کي چي دامام ابوحنیفة اودهغه دشاګردانو کوم مقام او اوچته مرتبه وو هغه مقام بل چاته نه وو ملاشوی حقیقت دادی چي امام اعظم صاحب یو داوچتي پوړی اومرتبي محدث وو اوپه علم حدیث کي دده مرتبه تردیرو محدثینو څخه اوچته ده خوداچي دحدیث روایت دده خپله وظیفه نه وه کړځولی نوپه همدې وجه دحدیثوپه کتابونو کي دده مرویات لږدی . [درس ترمذی ج١ ص١١٣].

علامة سیوطی په تفسیر الدرالمنثورکي دابن ابی حاتم څخه روایت کړی چي امام مالک دربیعة الرای نه نقل کوي چي : (ان الله تبارک وتعالی ترک الیکم مفصلاًوترک فیـه موضعًاللسـنة وسـن رسـول الله ﷺ وترک فیهاموضعاًللرای. (حقیقة الفقه ص١٨٩ سیرة نعمان ص٥٨)

یعني الله تبارک وتعالی قران مفصل نازل کړی خوسنة الرسول ته یې ځای پرینبـی اورسول اللهﷺ په سنتوکي رای ته ځای پرینبی دی .

## اقوال دامام صاحب فی الجرح والتعدیل

امام ابوحنیفة په ائمة الجرح التعدیل کي شماردی علامة سخاوی شمس الدین محمدبن عبدالرحمن امام ابوحنیفة دجرح اوتعدیل په أیمه وو کي ذکرکړی )اعلان بالتوبیخ لمن ذم التاریخ)

امام ابوحنیفة رح دجابربن یزید الجعفی الکوفی المتوفی سنه١٦٨په هکله فرمایلی دي : مارایت اکذب من جابرالجعفی ولاافضل من عطاءبن ابی رباح. (الخیرات الحسـان ص٦٥ العلـل للترمـذی ص٧٤١ فـتح المغیث ج ٣ص٣٥١ جامع بیان العلم وفضله ج٢ ص١٨٨ تهذیب التهذیب ج٢ ص٤٢ سیراعلام النبلاءج٥ ص٨٣)

**ترجمه :** دجابرالجعفی څخه می زیات کاذب دورغجن اودعطاءبن ابی رباح څخه می زیات افضل نه دی لیدلی.

(٢) امام صاحب دزيدبن عياش په باره كې فرمايلي دي زيدبن عياش مجهول (تقريب التهذيب ص ٢٧٤
يعنې زيدبن عياش مجهول او نامعلومه دی

(٣) دامام صاحب څخه دامام الثوری په هکله پوښتنه وشوه چې دسفيان ثوري روايت څرنګه دی هغه په جواب كې وويل : اكتب عنه فانه ثقة ماخلا احاديث ابی اسحاق عن الحديث وحديث عن جابرالجعفی. (اصول الحديث عندابی حنيفة ص٢٩ امام ابوحنيفة ص١٢٢-١٢١ طبقات السنية ج١ ص٩٧) يعنې د هغه څخه ليکل وکړه پس بيشکه چې هغه ثقه دی او کوم احاديث چې دابی اسحاق عن الحديث او حديث عن جابرالجعفی څخه روايت کړی هغه مه ليکه

(٤) امام ابوحنيفة رح به دشيعه او دبدعتي حديث نه منلو [الكفاية فی علم الروايم لخطيب بغدادص].

(٥) علامة عبدالعزيزبخاری ليکي چې: واستحن اهل الحديث منه هذاالطعن حتّٰاقال ابن المبارک كيف يقال ابوحنيفة لايعرف الحديث وهويقول زيدبن عياش ممن لايقبل حديثه. (كشف الاسرارج٣ ص١٥ موفق ج١ص٩١ مناقب كردری ج٢ ص٧٠) يعنې محدثينو حضراتو دامام ابوحنيفة دا جرح په ښه طريقې سره قبوله کړی په شمول دابن المبارک رح.

(٦) علامة محمد الخضری ليکي چې: قال ابوحنيفة رايت ربيعة وابا الزنادافقه الرجلين. (تاريخ تشريح الاسلام ص١٥٦). يعنې امام صاحب فرمايي چې ماربيعة او ابوالزناد دواړه فقيه وليدل.

(٧) ابوسعد الصغانی دامام صاحب نه دشريک بن عبدالله باره كې سوال وکړو هغه وفرمايل : (عنده حديث كثير وهوثقة ولكن ان حدثک عن جابرالجعفی شيئاًفلا تكتب حديثه. (مناقب موفق ج٢ ص ١٣٥).

## په امام اعظم رحمه الله باندې اعتراضات اودهغې څخه ډيرپه انصاف جوابات

په هرامام باندې په هردورکې خامخا يوڅه اعتراضونه شوی دي ،دامام اعظم رح په محدثانه حيثيت باندې هم بعضو خلکو جرحې کړی دي لکن دکومو امامانو په جلالت او امامت باندې چې جمهور علماء متفق وي نو پداسې امامانو باندې دبعضې خلکو جرحو ته اعتبار نه وي ځکه چې داسې هيڅ امام هم نه شته چې هيڅ جرحه وړباندې نه وي ،مثلاً په امام شافعی رح باندې يحيی بن معين جرحه کړی ده ،په امام بخاری رح باندې امام ذهلی رح جرحه کړی ده ،په امام اوزاعی رح باندې امام احمد رح جرحه کړی ده ،په امام احمد باندې امام

کرابیسی رح جرحه کړی ده ،په امام مالک رح باندې ابن ابی ذئب رح جرحه کړی ده حتی چې ابن حزم رح امام ترمذی او امام ابن ماجه ته مجهول ویلي دي او امام نسائی ته ئی شیعه ویلی دی . وګوره قواعد فی علوم الحدیث ص و ص طبع مکتبة المطبوعات الاسلامیه-۲ کوم خلکو چې امام صاحب ته ناقص الحافظه او ضعیف الحدیث ویلی دي دهغوی دقائلینو بالاجمال نومونه دالاندې دي :

علامة ذهبي – محدث نسائی- ابن عدی – بخاری – دارقطنی – بیهقی – ابن الجوزی –علی المدینی- خطیب البغدادی – حافظ ابن عبدالبر- حافظ ابن حجر- امام احمدبن حنبل – قاضی ابویحیی – ذکریابن محمد- مولاناشاولی الله الدهلوی – وکیع بن جراح – طاوس – زهری – ابواسحاق فزاری – امام مسلم- ترمذی- هشام بن عروة – ابوداود- ابوحفص –عمربن علی – عبدالرؤف مناوی – جلال الدین السیوطی رحمهم الله تعالی.

## اول ددې ځخه اجمالی جواب بیاتفصیلي جواب

**اجمالی جواب:**

داخو هسې بعضو متعصبوه محض دجارحینو تعداد دغتوالی لپاره ثبت نام کړی دی ځکه په همدغه مذکورنومونوکې بعض داسې دي چې هغوی دامام ابوحنیفة توثیق اوتعدیل کړی لکه علامة ذهبی –اوعلی بن المدینی –اووکیع بن الجراح –حافظ ابن عبدالبر – حافظ ابن الحجرد وغیره –اودبعضو ځخه دسئ الحافظ او تضعیف الفاظ دجرح اوتعدیل په معتبره طریقه باندې نقل شوی ندې لکه دامام مسلم ترمذی ابوداوداوابن ماجه اوطاوس – زهری – امام احمد- ابواسحاق – ابن القطان –جلال الدین سیوطی اوشاه ولی الله الدهلوی رحهمهم الله اجعین

اوبعض ځخه خودجرح الفاظ منقول دی لکه دابن عدی اونسائی – بخاری – دارقطنی – ابن الجوزی اوبیهقی وغیره ځخه خود دغه خلکو دجرحي الفاظ په قواعدو او اصولو دجرح اوتعدیل سره برابرنه دی لکه وروسته دتفصیلی بیان ځخه به معلوم شي.

**تفصیلی جواب لپاره یوتمهید :**

دتفصیلي جواب ځخه مخکې یوڅو مقدمات علی طور التمهید په جرح اوتعدیل کې ضروري دي ترڅو حقیقت حال ښه واضح او منکشف شي .

**اوله مقدمه:** په کوم راوی کې چې جرح او تعدیل دواړه جمع شي د دې څلور صورتونه دی:

۱- جرح او تعدیل دواړه مبهم.

۲-دوهم صورت جرح مبهم او تعدیل مفسر په دغه دواړه صورتونو کې په صحیح مذهب کې تعدیل مقدم او مقبول دی او جرح غیر مقبوله ده.

قال السخاوی فی شرح الفیه ینبغی تقیدالحکم بتقدیم الجرح علی التعدیل بمااذافسر اما اذاتعارض من غیرتفسیرفانه یقدم التعدیل قاله المزنی وغیره وقال النواوی فی شرح مسلم لایقال الجرح مقدم علی التعدیل لان ذالک فیمااذاکان الجرح ثابتاً مفسرًا بسبب والافلایقبل الجرح اذالم یکن کذاوقال ابن الهمام فی تحریرالاصول اکثرالفقهاء منهم الحنیفة والمحدثین علی انه لایقبل الجرح الامبیناًلا التعدیل الخ

**ترجمه:** علامه سخاوی په شرح الفیه کې فرمایلي دي چې حکم کول پر تقدیم الجرح علی التعدیل باندې هلته مناسب وي چې دا جرح مفسره وي او په کوم ځای کې چې جرح مبهم غیر مفسره وي نو هلته به حکم په تقدیم التعدیل علی الجرح وي دا ویناد علامه مزنی وغیره ده او امام النواوی په شرح مسلم کې فرمایلي دي چې داسې نه ده چې جرح مطلقًا پر تعدیل باندې مقدم ده بلکه دا هلته وي چې جرح ثابته او مفسره مبین السبب وي که داسې نوی نو جرح مقبول نده. (قول الامام النواوی یقبل التعدیل من غیرذکرسببه علی الصحیح المشهور ولایقبل الجرح الامبین السبب. (تقریب النواوی مع الدریب ج۱ ص۲۵۸ )

علامه ابن الهمام فرمایلي دي په تحریرالاصول کې چې دا اکثره فقهاء و په نزد چې د دې جملې څخه احناف او محدثین هم دي جرح قابل قبول نه ده تر څو چې مبینه او واضحه او مفسره نوي په خلاف د تعدیل الخ او دا رنګه اقوال په ډیر کتابونو کې شته لکه تهذیب الراوی شرح النخبة د سندهی – معیا رالحق د نذیر حسین دهلوی وغیرهم.

۳ - دریم صورت جرح او تعدیل دواړه مفسر دی.

۴- څلورم صورت جرح مفسره او تعدیل مبهم دی.

په دغه دواړو صورتونو کې جرح مقدم او تعدیل غیر مقبول دی قال السیوطي فی تدریب الراوی ص۱۱۲ اذااجتمع فیه جرح مفسروتعدیل فالجرح مقدم الخ، وقال السخاوی فی شرح الفیه ینبغی تقیدالحکم بتقدیم الجرح علی التعدیل بمااذافسرالخ ونحو ذلک فی شرح نخبة)

**دوهمه مقدمة:**

دجارح لپاره يو څوشرائط كه دغه شرائط په جارح كې موجود وه نوجرح به يې مقبول وي اوكه نه وه نو جرح غيرمقبول ده.

**(الف)** جارح به عادل اوثقه وي.

**(ب)** دجرح اوتعديل پراسباب به عارف اوعالم وي.

**(ج)** متعنت اومتشدد به نوى.

**(د)** دمذهبى منافرت اودنيوى عداوت اوحسد اودمعاصرت څخه به خالي وي داشرئط دلاندې عباراتو څخه واضح كيږي.

قال الذهبي فى تذكرة الحفاظ ج۱ ص٤ ولاسبيل الى ان يصيرالعارف الذى يزكى نقلة الاخبارويجرحهم جهبذاً الأباسعان الطلب والفحص عن هذاالشان وكثرة المذاكرة والسحروالتيقظ والفهم مع التقوى والدين المتين – والانصاف والتردد الى العلماء والتحرى والاتقان والاتفعل فدع عنک الكتابة لست منهم ولدسودت وجهک بالمدادقال الله تعالى (فاسئلوا اهل الذكران كنتم لاتعلمون) وان غلب عليک الهوى والعصية اللرأى والمذهب بالله لانتفق وان عرفت مخبط مهمل لحدودالله فارحناوقال الحافظ ابن جحرفى شرح النخبة ص۸۲].

وان صدرالجرح من غيرعارف باسبابه لم يعتبربه الخ وايضاً قال تقبل التزكية من عارف باسبابهالامن غيرعارف وينبغى ان لايقتل الجرح الامن عدل متيقظ.

وقال الحافظ فى مقدمة فتح البارى ص٥٤٢ القسم الثانى فى من ضعف بامرمردودكالتحامل اوالتعنت اوعدم الاعتمادعلى المضعف لكونه من غيراهل النقداولكونه قليل الخبربحديث من تكلم فيه اوبماله اومتاخرعصره ونحوذالک الخ.

وايضًاقال فى ص٤٤٦ واعلم انه قدوقع من جماعة الطعن فى جماعة بسبب اختلافهم فى العقائدفينبغى التنبيه لذالک وعدم الاعتدادبه الابحق وكذاعاب جماعةمن المتورعين جماعة دخلوافى امرالدنيافضعفوهم لذالک التضعيف مع الصدق والضبط و الله الموفق وابعدمن ذالک كله من الاعتبارتضعيف من ضعف بعض الروات بامريكون الحمل فيه على غيره اوالتحامل بين الاقران وابعدمن ذالک تضعيف من هواوثق

منه اوأعلى قدراواعرف بالحديث فكل هذالايعتبربه وقال الذهبى فى الميزان ج۱ ص٤٥ قلت كلام الاقران بعضهم فى بعض لايعبأبه لاسيمااذا لاح انه لعداوة اولمذهب اولحسدماينجومنه الامن عصم الله وماعلمت ان عصرامن الاعصارسلم اهله من ذالک سوى الانبياءوالصدقين .

وقال السبکی فی طبقات الشافعية ج۱ ص ۱۹۰قدعرفناان الجارح لايقبل منه الجرح وان فسره فی حق من غلبت طاعته على معصية ومادحوه على ذاميه ومذكوه على جارحيه اذاكانت هناک قرينة يشهدالعقل بان مثلهاحامل على مافيه من تعصب مذهبی اومنافسة دنيوى كمايكون بين النظراءوغيرذالک ونحوذالک کثيرفی التوضيح والتحقيق فی شرح الحسامی وسيراعلام النبلاءللذهبی وغيرها.

**دريمه مقدمه:**

لاندې الفاظ بغيردسبب ښخه په جرح مبهم کې داخل دی (فلان متروک الحديث ذاهب الحديث مجروح ليس بعدل - سیئ الحفظ - ضعيف - ليس بالحافظ- ونحوذالک ) په کشف الاسرارشرح اصول بزدوی کې دی: اماالطعن من ائمة الحديث فلايقبل مجملاًاى مبهمابان يقول هذاالحديث غيرثابت اومنكرًااوفلان متروک الحديث او ذاهب الحديث او مجروح اوليس بعدل من غيران يذكرسبب الطعن وهومذهب عامة الفقهاء والمحدثين .

اوعلامة كمال الدين جعفرالشافعی په امتاع باحكام النساءکې ليکلي دي :(وذالک قولهم فلان ضعيف ولا يبينون وجه الضعف فهوجرح مطلق وفيه خلاف والتفصيل ذكرناه فی الاصول والا ولى ان لايقبل من متاخرى المحدثين لانهم يجرحون بمالايكون جرحًا ومن ذالک فلان سيئ الحفظ اوليس بحافظ لايكون جرحًامطلقًا بل ينظرالى حال المحدث والحديث الخ)

ددې مقدمات په ملاحظ سره به ده تفصيلي جواب ښخه وروسته ديرپه ښه وضاحت سره به دمعترضينو غلط فهمی معلومه شي.

**اعتراض اول:**

دعلامة شمس الدين الذهبی اعتراض په امام صاحب باندې په ميزان الاعتدال فی اسماءالرجال کې په داسې الفاظوسره دی : النعمان بن ثابت الكوفی امام اهل الرای ضعفه النسائی وابن عدی والدارقطنی واخرون. بل عبارت داسې دی : ضعفه النسائی من جهة حفظه وابن عدى وغيره. (ميزان الاعتدال ج

ص۳۲۵ ) يعنې امام نعمان بن ثابت كوفى چې داهل الرأى امام دى دته امام نسائي او ابن عدى او دارقطنى اويو جماعت نور وروستينو علماء دضعف نسبت كړى دجمعة دحافظى نه.

**جواب:**

دميزان الاعتدال په صحيحو نسخو كې داعبارت نشته علامة ذهبى داندى ليكلى دا الحاقى عبارت دى دحاشيې په ډول ليكل شوى بيا وروسته متن كې داخل شوى اويا داد كاتب غلطي ده اويا چاوروسته قصداً داكار كړاى و ددې خبرې دلائل چې علامة ذهبى داندى ليكلى دالاندې را روان دلائل دى.

(۱)علامة ذهبى دميزان الاعتدال په مقدمه كې داواضح كړيده چې زه په دې كتاب كې دهغو لويو امامانو تذكره نه كوم چې ددوى جلالت اوقدر دتواتر حدته رسيدلى وي ولو كه ددوى په هكله چاڅه كلام هم كړى وي ددغو امامانو په مثال كې يې دامام صاحب نوم صراحةً ياد كړيدى دذهبى عبارت ته توجه وكړي.

(وكذالااذكرفى كتابى من الائمة المتبوعين فى الفروع احدًالجلالتهم فى الاسلام وعظمتهم فى النفوس مثل ابى حنيفة والشافعى والبخارى. (ميزان الاعتدال ج۱ ص۳)

علامة عراقى په شرح دالفيه كې اوعلامة سيوطي په تدريب الراوى اوسخاوى په فتح المغيث كې تصريح كړيده چه علامة ذهبى په ميزان الاعتدال كې دصحابه وواو دايمة متبوعينو تذكره نده كړى.

(قال السخاوى مع انه اى الذهبى) اتبع ابن عدى فى ايرادكل من تكلم فيه ولوكان ثقة لكنه التزم انه لايذكرلاحدمن الصحابة والائمة المتبوعين ) ( شرح الفيه للسخاروى ص۴۷۷)

يعنې علامة سخاوى فرمايې چې ذهبى په ذكردهره متكلم فيه كې (اكرچه ثقة وي) دابن عدى اتباع اوپيروى كړيده لكن دصحابه او ائمة متبوعينو مجتهدينو يې بلكل قصداً تذكره نده كړى.

دعلامةعراقى عبارت : (لكنه اى ابن عدسى ذكرفى كتاب الكامل كل من تكلم فيه وان كان ثقة وتبعه على ذالک الذهبى فى الميزان الاانه لم يذكراحدًامن الصحابة والائمة المتبوعين) [شرح الفيه للعراقى ج۳ ص۲۴ وفى تدريب الراوى ص۵۱۹].

يعنې ابن عدى په خپل كتاب الكامل كې دهرهغه چايادونه كړې چې متكلم فيه دى كه څه هم ثقه وي اوعلامة ذهبى هم پخپل كتاب ميزان كې دده متابعت كړى دى ماسيوا ددې څخه چې ذهبى دصحابه

وواؤد مذاهبو دامامانو څخه يو هم ندی ذکرکړي يو سوال علامة ذهبی په ميزان الاعتدال ص ۳ کښ ليکلی دي چې (فان ذکرت احداًمنهم فاذکره علی الانصاف ومايضره ذالک عند الله وعندالناس).

يعني دکوم کس تذکره چې ماکړی هغه په انصاف سره ذکرکوم چې داعندالله وعندالناس مضرنده نودغه عبارت څخه صاف واضحه معلوميږي چې ذهبی رح دصحابه وواوائمة المذاهب ذکرکړی

**جواب:**

دعلامة ذهبی دعبارت څخه بلاشبه فقط دذکراحتمال پيداکيږي اودحافظ عراقي اوجلال الدين سيوطي اوسخاوي چې علامة ذهبی څخه متاخرين دي دوی دعلامة ذهبي کتاب ميزان الاعتدال باربارپه تکرارسره مطالعه کړی نودوی حضرات په صافواو واضحوالفاظ باندې دعدم ذکرتصريح کړيده.

نودصحابه ووکرامواوداتمه متبوعينوذکرپه دغه کتاب کي استقلال نشته اويادا چې دعلامة ذهبی په عبارت کي دذکراستقلالی نفي ده اوذکرضمنی اثبات دی اودامام صاحب په حق کې چې دعلامة ذهبی طرف منسوب عبارت کي دکومې جرحی ذکراغلی هغه په حيثيت استقلالی سره ده نومعلومه شوه داخبره چې دغه عبارت الحاقی دی.

دکرمو امامانو تذکره چې حافظ ذهبي په خپل کتاب ميزان الاعتدال کي نده کړی دهغوی دتذکري لپاره يي يوبل مستقل کتاب دتذکرة الحفاظ) په نامه ليکلی دي اوپه دغه کتاب کي اوبل تهذيب کي دامام صاحب تذکره سره دمدحی اوتوصيفه موجوده ده (تذکرة الحفاظ ج۱ ص۲۰۱ ج۱ ص۱۶۰ ص ۳۳۲ )

(۳) حافظ ابن حجرعسقلاني خپل کتاب (لسان الميزان) پرهم دغه کتاب ميزان الاعتدال باندې بناءکړی. يعني دکومورجال تذکره چې په ميزان الاعتدال کي موجوده نه ده هغه په لسان الميزان کي هم نده موجوده ماسيواديوڅوافرادوڅخه اوپه لسان الميزان کي دامام ابوحنيفة تذکره نشته نودادې خبرې واضح اوصريح دليل دی چې دامام صاحب په هکله په اصلي ميزان کي تذکره نووه بلکه وروسته دبل چالاس وهنه ده

(۴) شيخ ابوغده عبدالفتاح دالرفع والتکميل پرحاشيه کي ليکلي دي چې ماددمشق په مکتبه الظاهرية کي دميزان الاعتدال يونسخه وليدله ترده .(تحت الرقم۳۶۸ حديث) نښې لاندې پورې چې داتوله نسخه دحافظ ذهبي ديوشاگردعلامة شرف الدين الوانی په قلم سره ليکل شوی وه اوپه دې نسخه کي داتصريح ده چې مادانسخه دخپل استاذحافظ الذهبی په مخکښې دری ځلې لوستلي ده اوده دمسودی سره مې ددې نسخی

مقایسه وکړه او په دې نسخه کې دامام ابوحنیفة تذکره نشته او شیخ ابوغده زیاتوي چې مادمراکش ددارالحکومة رباط په مشهوره مکتبه (الخزانة العاصره) کې د(تحت الرقم ۱۳۹حدیث) نبی لاندې دمیزان یو قلمي نسخه ولیدله چې پردې د حافظ ذهبی دډیروشاګردانودلوست تاریخونه لیکلی وه په دې نسخه کې داصراحة وه چې دحافظ ذهبی یوشاګرددغه نسخه دده په مخکې لوستلی ده اودالوست یې دحافظ ذهبی دوفات څخه فقط یوکال مخکې وه او په دې نسخه کې هم دامام صاحب تذکره نشته.[الرفع والتکمیل ص ۱۰۱مکانة الامام ابی حنیفة فی الحدیث ص۱۵۳ غیث الغمام علی حواشی الکلام لاکنهوی ص ۱۳۶درس ترمذی ج۱ ص ۱۳۰-۱۲۹]

بعض معترضین دمیزان الاعتدال دغه عبارت : اسماعیل بن حمادبن نعمان بن ثابت الکوفی عن ابیه عن جده قال ابن عدی ثلثهم الضعفاء. (میزان ج۱ ص۹۰ ) څخه دامام صاحب دتضعیف جرح کوي جواب ددغه عبارت څخه هیڅکله داوینانه ثابتیږي چې دعلامة ذهبی په نیزامام صاحب ضعیف دی ځکه علامة ذهبی دمیزان الاعتدال په مقدمه کې عذرپیش کړی اودابن عدی دموافقت څخه ئې براءت ظاهرکړي لکه فرمایې : (وفیه من تکلم من ثقته وجلالته بادنی لین وباقل تخریج فلولاابن عدی وغیره من مؤلفی کتب الجرح ذکروا ذالک الشخص لماذکرته لثقته ثم قال لاانی ذکرته تضعیف فیه عندی...الخ

دامذکوره بیان ددې خبرې واضح تحریری ثبوت دی چې دامام ابوحنیفة په هکله سابقه عبارت یوچاوروسته زیات کړی او په اصلی نسخه کې وجودنلری بناءداثابته شوچې دحافظ ذهبی لمن دامام صاحب دتضعیف اودتنقیص دالزام څخه پاکه ده بلکې حافظ ذهبی پخپله یومستقل کتاب دامام صاحب په مناقب باندې لیکلې دی مناقب الامام ابی حنیفة وصاحبیه للامام چاپ دارالکتب المصری قاهرة سنه ۱۳۶۶ھ اودده نوروکتابونوکې یې تذکره مع المدح والتوصیف تذکرة الحفاظ -دول الاسلام-العبرفی اخبارالغبردری واره دعلامة حافظ ذهبی دی.

**(۲) دوهم اعتراض** امام نسائی دامام ابوحنیفة رح دتذکرې په وخت پخپل کتاب الضعفاء کې په امام صاحب باندې کړی دی چې : نعمان بن ثابت ابوحنیفة لیس بالقوی فی الحدیث. (الضعفاءمطبعه اله اباد ) یعنې چې امام ابوحنیفة په باب داحادیث کې ندی قوي

**جواب اولاً:** چې دجرحې اوتعديل علماءوويوشه قواعد مقرركړي دي نوديوراوي په هکله چې کله دجرح اوتعديل فيصله کيږي نودغوقواعدترنظرلاندې نيول ضروردي اوکه چرته دغه قواعدترنظرلاندې ونه نيول شي نودهيڅ يومحدث عدالت اوثقاهت ثابتيداى نشي ځکه چې په تولولويولويومحدثينوباندې يوداول نه يوډول جرحه دچالخوړې شوي وي لکه څنګه چې په امام شافعي رح ديحيى بن معين رح نه اوپه امام احمدرح باندې دامام کرابيسى رح اوپه امام بخارى باندې امام ذهلى اوپه امام اوزاعى باندې امام احمدجرحه کړې ده که چرته ددې تولواقوال معتبرشي نوددوې څخه يوهم ثقه نه پاتې کيږي اوانتهادجرم داده چې ابن حزم ظاهري امام ترمذى اوامام ابن ماجه ته مجهول ويلي دي اوپه امام نسائى باندې ديروعلماءوودتشيع الزام لګولى دى اوپدې خاطريې ورته مجروح ويلي دي .(درس ترمذى ج۱ ص ۱۲۷)

## دجرحې او د تعديل اصول او قواعد

اول اصل دکوم کس راوي امامت اوعدالت چې دتواترحدته رسيدلى وي دده په هکله ديوياددوه اشخاصوجرحه اعتبارنه لري. [مقدمة اعلاءالسنن قواعدفى علوم الحديث ج۱۹ ص۱۷٦ الرفع والتكميل ص۱۲۸-۸۸ التعليق المجدعلى موطامحمدص۳٤ الطبقات الشافعية ج۲ ص۱۲) التمهيدج۲ ص۳۲]

دامام اعظم ابوحنيفة عدالت دتواترحدته رسيدلى دى په سلګونولويوعلماءوواومحدثينودهغه دعلم تقوى ديانت زهدحفظ اوثقاهت اوامامت اواجتهادستاينه کړيده لکه چې سابقه ورقوکې يې تحريرېيان تيرشو.

**(۲) جواب ثانيًا:** دامام نسائى دجرح ناقل حسن بن رشيق دى کمافى کتاب الضعفاءص ۳۴ اوحسن بن رشيق يودهغه کسانوڅخه دى چې پرهغوى باندې حافظ عبدالغنى اودارقطنى جرحې کړى ج۱ص۳۰ اودااصول الحديث يواصل اوقاعده داهم ده چې يوکس پخپله مجروح وي لکه حسن بن رشيق نودغه مجروح روايت قابل اعتبارنوي نودده دروايت څخه دامام صاحب مجروح کيدل لغواوباطل اوغلط دي

**(۳) جواب ثالثًا:** امام نسايې دهغه متعنتينواومتشددينوڅخه دى چې دامام بخارى اومسلم په زياث راوياتوباندې يې محض دتعنت لوجه جرحه کړى ده لکه چې حافظ ابن حجرعسقلاني په مقدمة دفتح البارى کې ليکلي چې :

۱- احمدبن الصالح المصرى تحامل عليه النسائى .

۲- الحسن بن الصباح البزورتعنت فيه النسائی .

۳- حبيب المعلم متفق علی توثيقه لكن تعنت فيه النسائی .

٤- محمدبن حمادضعفه النسائی بلاحجة .

٥- محمدبن بكرالبرسائی لينه النسائی بلاحجة .

نودغه مذكورپنځه راويان چې ددې په ثقاهت باندې اتفاق دی او امام نسائی بدون ددليل ټي تول ضعيف ګرځولي او په تهذيب التهذيب کې ابن حجر د حارث بن عبدالله په ترجمه کې ليکلی چې : حديث الحارث فی السنن الاربعة والنسائی مع تعنة فی الرجال فقداحتج به النسائی مع تعنته.

يعنې د حارث حديث په سنن اربعه وو او نسائې کې موجود دې او امام نسائی سره ددينه چې دا په سلسلة الرواة کې ډير متعنت (سخت ګير) دی مګرد حادث په حديث باندې ئې استدلال کړی نو دلته هم دنسائی تعنت (سخت ګير) ذکرده او علامة سيوطی رح په زهرالربی علی المجتبی کې ليکلي دي چې : (فكم من رجل اخرج له ابوداود والترمذی وتجنب النسائی اخراج حديثه بل تجنب اخراج حديث جماعة من رجال الصحيح الخ...) يعنې ډير راويان چې ابوداود او ترمذی ترينه روايت کړی خو امام نسائی په روايت کې ترينه ځان ساتلی او ډيرو هغه کسانو چې دصحيح بخاری راويان دي ده دهغو د حديث بيانی څخه پرهيز کړی.

نودمذكوره تصريحات د ابن حجر او دسيوطي وغيره څخه د امام نسائی د متعنتينو د جملي څخه کيدل واضع دي نو ددغه کس جرح به دهغه امام په هکله څنګه قبوله شي چې دهغه په جيد الحافظ او ثقاهت باندې لوی لوی ثقات او نقاد فن قائل دي.

۴- هغه کتاب چې اصح الکتب بعد کتاب الله منلی شوی دی يعنې صحيح بخاری دهغه بعض روايتو باندې هم دکثير الغلط والخطاء جرحي منقولي دي او امام بخاری دهمدغسې روايانو څخه پخپل صحيح کې روايتونه کړي دي لکه چې دفتح الباری په مقدمه کې ذکر راغلی چې.

۱- قبيصه بن عقبه قال احمدبن حنبل كان كثيرالغلط وكان ثقة لا باس به.

امام احمدبن حنبل فرمايې چه قبيصه بن عقبه ډيرزيات غلطي کوونکې دی خو بيا هم ثقه او لاباس به دی.

۲- وضاح بن عبدالله قال ابوحاتم كان يغلط كثيراً . ابو حاتم دوضاح بن عبد الله په هکله فرمايې چې ده ډيری غلطی کولو والاوه .

۳ - جريربن حازم قال الامام احمدبن حنبل كثيرالغلط وقال الاثرم عن احمدحدث بمصراحاديث وُهِمَ فيهاولم يكن يحفظ. امام احمد فرمائی چه جریربن حازم كثيرالغلط وه او اثرم داحمد څخه روايت کړی چې ده په مصرکې داسې حديث بيان کړل چه ده ته پکې وهم وه او په ښه طريقه يې يادنه وو.

۴- سليمان بن حيان عن ابی داوداتی من سوءحفظ فيغلط ويخطی) دسليمان بن حيان باره کې ابوداود ويلي دي چې داد حافظې دکمزوری لوجی په روايت کې غلطيدلو او خطاکيدو.

۵- عبدالعزيزبن حجرقال ابوذرعة سئ الحفـظ ربماحـدث مـن الحفـظ السـيئ فيخطـئ. ابوذرعه دعبدالعزيز بن حجرپه هکله فرمايې چې دده حـافظ خرابـه وه اوډيرکرتـه بـه يې حـديث دخرابی حافظی دخرابوالی په بنيادبيانه ولونوپکې به خطاکيدواوغلطيدلو.

نـواوس کـه چرتـه کـوم کـس دكثيرالغلط پـه وجـه بانـدې ثقـة اوصـدوق راوي ضـعيف اوقابـل ترک گڼې نوپکار ده چې صحيح بخاري ته داصح الكتب په ځای اضعف الكتب وويلي شي.

۶- ابوعبدالرحمن النسـائی سنن نسـائی يعنې مجتبی دسنن كبری څخـه منتخب کری اوهغـه پخپله اقرارکړی چې په دې کې ټول احاديث صحيح دي دادمجتبی انتخاب يې هغه وخت وکړوچې کله يې سنن كبری دوقت اميرته هدية کړوهغه ورتـه وويـل چې پـده کې ټول احاديث صحيح دي ده ورتـه وويـل چې نه هغه ورته وويل چې صحيح احاديث ترينه منتخب اوجداکړه بيايې وروسته انتخاب ته دمجتبی نوم وړکړه داخبره دلاندې عبارت نه واضح کيږي علامة سيوطي په زهرالربی کې ليکلي چې :

قال محمدبن معاية الاحمرالراوی عن النسابی قال النَسابی كتاب السنن كله صـحيح وبعضـه معلول الاانه لم يبق علته والمنتخب المسمی بالمجتبی صحيح كله وذكربعضهم ان النسائی لما صنف السنن الكبری اهداه الی الاميرفقال له الاميركل ماهذاصحيح قال لاقال فجردالصحيح منه فصنف له المجتبی.

دمجتبی دصحت قـول نوررومحدثينوهم کری دمثـال پـه طـورلکـه علامـة ابـن منـده بـن عـدی اودارقطنی اوخطيب وغيرهم.

**تنبيه:**

په تهذيب التهذيب کې ليکلي شوی چه په سنن نسائی کې دامام ابو حنيفة روايت موجوددی دتهذيب عبارت (وفی كتاب النسائی حديثه عن عاصم عن ابن عباس قال ليس علی من اتی البهيمة حداًالخ)

یعنې په سنن نسائی کې روایت دی امام صاحب رح د حضرت عاصم رح څخه او هغه د ابن عباس رض نه روایت کړی چې د چارپائی سره چا جماع وکړه په هغه باندې حد نشته او په تقریب او خلاصه تدبیب کې د نعمان بن ثابت په نوم باندې دا (شم ر – س) رمزی علامة لیکل شوی د دې څخه صاف ظاهر او واضح معلومیږي چې امام ابو حنیفة د شمائل ترمذی او جزء القراءت للبخاری او د نسائی راوی دی.

نواوس د غور او فکر مقام دادی چې که امام ابو حنیفة رح د امام نسائی په نیز باندې غیر قوی او کثیر الغلط والخطاء وایې نو بیائې ولې ترینه روایت کولو او په خپل کتاب کې یې تولو احادیث ته څنګه صحیح ویل داخو د معترض امام نسائی په دواړه قولو کې تعارض او تکرار او راغلو.

۷ –نبه خبره داده چې په امام صاحب اعتراض رانشي اونه د امام نسائی په خبرو کې تکرار وراشي چې امام نسائی داعتراض خبره سابقه او اول وخت کې کړی وه بیائی وروسته ترینه رجوع کړیده. [مکانـة الامـام ابی حنیفة فی الحدیث ص ۱۲۷–۱۲۶]

**دریم اعتراض:** امام بخاری رح ته منسوب دی چې د امام بخاری رح د کلام څخه امام ابو حنیفة رح ناقص الحافظة ثابت دی او د تاریخ کبیر للبخاری داسې عبارت رانقل کوي : (لوکان من الضعفاء فی هـذاالباب ای فی علم الحدیث لذکره کماذکراباحنیفة فی هذاالباب.

**جواب** :دا خبره د معترضینو انتهائی جرات او زړورتوب دی ځکه د امام بخاری داسې عبارت بلکل نشته دا د معترضینو د امام صاحب سره محض حسد بغض او کینه ده.

معترضین دی د حافظ ابن عبد العزیزبن دواد رح عبارت ته توجه وکړی او د خدای څخه دی وویریږي.

فقال بیننا الحافظ عبدالعزیزبن دوادمن احب اباحنیفة فهوسنی ومن ابغضه فهومبتـدع وفی روایتـه بینناوبین الناس ابوحنیفة فمن احبه وتولاه علمنااانه من اهل السنة والجماعة ومن ابغضـه علمناانـه مـن اهل البدعة.

یعنې کوم شخص چې د امام صاحب سره مینه او محبت لري داسنې دی او کوم چې ورسره بغض حسد لري بدعتي دی او بل روایت کې فرمایې چې زمونږ او د نور خلکو مینځ کې امام ابو حنیفة دی څوک چې ورسره مینه او دوستی لري زمونږ په نیز هغه اهل السنة والجماعة دی او څوک چې ورسره بغض حسد لري زمونږ په نیز هغه اهل البدعة دی .(الخیرات الحسان ص ۳۵)

بعض غیرمقلدینو ساده عوامو دغولولو او دوکه کولو لپاره وایي چې امام بخاری پخپل کتاب الضعفاء کې لیکلی دی چې (کان مرجیاءً سکتواعن رایه وحدیثه) یعنې چې امام ابو حنیفة رح د مرجئه فرقې څخه وو او خلکو دهغه د رای او حدیث څخه سکوت اختیار کړی.

**اولاً** : خو داچې د امام بخاری کتاب الضعفاء کوم چې داله اباد څخه چاپ شوی دی په هغې کې دا مضمون بلکل نشته همدارنګه د امام بخاری کتاب ادب المفرد او جزء القراءة او خلق العباد کتابو کې هم دا عبارت نشته.

**ثانیًا** : بالفرض و التقدیر که دا عبارت موجود هم شي نو جواب دادی چې دا جرح قابل وثوق او اعتماد نده ځکه امام بخاری رح د امام ابو حنیفة رح سره سخت مذهبی منافرت لري لکه دده د تصنیفاتو څخه معلومیږي او په تمهید کې ذکرشو چه جارح به د مذهبی منافرت څخه خالي وي بیا به د هغه جرح قبوله وي لکه علامة ذهبي او ابن حجر او وصی الدین خراجي و غیرهم پدی تصریح کړیده چې داسې جرحه (لایعبابه) هیڅ اعتبار ورته نشته

**ثالثًا** : داچې د کان مرجیًا څخه کوم مرجئه مراد دی که مراد ترینه مرجئه ملعونه وي دا خو بلکل غلط دی ځکه امام ابو حنیفة رح فقه اکبر کې خپله فرمایي: ولا نقول حسناتنا مقبولة وسیئاتنا مغفورة کقول المرجئة ولکن نقول من عمل صالحا بجمیع شرائطها خالیة عن العیوب المفسرة ولم یبطلها حتی یخرج من الدنیا مؤمنا فان الله تعالی لا یضیعها بل یقبلها منه ویثبته علیها الخ.

وفی الخیرات الحسان ص ۷۳ قال الشارح المواقف کان غسان المرجئ یحکی ماذهب الیه من الارجاء عن ابی حنیفة ویعده من المرجئة وهوافتراء علیه قصد به غسان ترویج مزهبه ینسبه الی هذا الامیر الجلیل الشهیر. یعني شارح مواقف فرمایي چې غسان مرجئ داسې خبرې کوي چې د هغه خبرو څخه دا د امام صاحب مرجئ والی ظاهروي او امام صاحب پر مرجئه وو کې شماری دا د غسان قصداً افتراء او بهتان دی امام صاحب پسې او د خپل مذهب نسبت داسې جلیل القدر مشهور امام ته کوي لپاره د ترویج او اشاعت د خپل مذهب.

(وقال الشهرستانی فی الملل والنحل ومن العجب ان الغسانی کان یحکی عن ابی حنیفة مثل مذهبه ویعده من المرجئة ولعله کذب علیه) یعنی علامة شهرستانی په الملل والنحل کې فرمایي چې تعجب دی پر غسانی باندې چې امام صاحب طرف ته د خپل مرجئه مذهب او مسلک خبرې منسوب وي او په فرقه مرجئه کې شماری چې دا ټول کذب او دروغ دي او که مرجئه څخه مرجئه مرحومة مراد شي نو بیا خو تمام اهل السنة والجماعة پکې داخل دي په تمهید کې عبد الشکور السالمی رح لیکلي دي چې :

ثم المرجئه علی نوعين مرحومة وهم اصحاب النبی ﷺومرجئة ملعونة وهم الذين يقولون بان المعصية لاتضرولا يعاقب وروی عن عثمان بن ابی ليلی انه کتب الی ابی حنيفة رح وقال انتم مرجئة فاجابه بان المرجئة علی ضربين مرجئة ملعونة وانابری منهم ومرجئة مرحومة وانامنهم وکتب فيه بان الانبياء کانواکذالک الاتری الی قول عيسی ﷺ قال ان تعذبهم فانهم عبادک وان تغفرلهم فانک انت العزيزالحکيم.

**رابعًا**: داچې ډیرمعتمدوعلماءاومحدثینودامام صاحب په قول اورای اوحدیث باندې نیوکه اواستدلال کولویوڅودیاداشت پطورباندې ذکرکووه فی عقودالجواهرالمنيفة ص۱۱)

(قال يحيی بن معين مارايت احدًااقدم علی وکيع وکان يفتی برای ابی حنيفة وکان يحفظ حديثه کله وکان قدسمع عن ابی حنيفة حديثًاکثيراً.

وفی مناقب کردری ص۱۰۰ سعيدبن يحيی الحميری الواسطی احدائمة واسط واحدحفاظ روی عنه (ای ابی حنيفة)واخذمنه وکان يقول انه جرهذه الامة وايضًامنه خ ۱ص ۱۹عبدالله بن يزيدالقوی المکی سمع من الامام تسعماة حديث وفی الخيرات الحسان ص۲۳ قال ابن المبارک کان افقه الناس ومارايت افقه منه وعنه ان احتج للرای فرای مالک اوسفيان وابی حنيفة وهوافقهم واحسنهم وارقهم واغوصهم علی الفقه الخ... وقال ابويوسف الثوری اکثرمتابعتی لابی حنيفة رح

وقال يحيی بن سعيدالقطان ماسمعنااحسن من رای ابی حنيفة ومن ثم کان يذهب فی الفتوی الی قوله.

وقال ابن المبارک رايت مسعرًافی حلقة ابی حنيفة يساله ويستفيدمنه وفی الخيرات الحسان ص۲۶) کتب ابن جريرالفضل الثانی فی ذکرالاخذين عنه الحديث والفقه قيل استيعابه متعذرلا يمکن خبطه... الخ)

يعنې فصل دوهم ثابت دی په باره دهغه خلکو کې چې دامام صاحب څخه حدیث اوفقه حاصله کړې اوویل شوي چې ددغه محصلينوتعداداوشماربيانی دومره مشکله ده چه احاطه وربانديې ممکن نده.

(ومن قال بعض الائمة لم يظهرلاحدمن ائمة الاسلام المشهورين ثم مثل ما ظهر من الاصحاب والتلامذ) يعنې دمذکوروجهی څخه بعض امامانوقول کړی چې په ايمة الاسلام کې دامام صاحب برابردهيچا

شاګردان نشته نو معلومه شو چې د امام بخاري وينا چې د امام صاحب راى او حديث خلکو ترک کړى محض دورغ او سراسر غلطي ده.

**خامسًا:** که ارجائيت په راوي کې وجه د ترک د رأى او حديث د راوى وي عند الامام البخاى رح نو بيا امام بخارى د فرقو باطلو وولکه مرجئة ناصبية خارجية شيعيه جهميه قدرية وغيرهم څخه ئې ولې روايت کړى لکه د احافظ ابن حجر عسقلاني په مقدمة د فتح البارى کې په تفصيل سره نوم په نوم ليکلى او د څلور فرقو خوئې په دغه ځاى کې مجموعه تعداد بيل بيل ليکلى دى چې د بخارى راويان دى مرجئته ۱۳ شيعه ۲ قدرية ۲۸ او ناصبيه دى سره د دې تولو ته معلومه ده چې بخارى يو بې نظير کتاب دى په کتب د احاديثو کې او اصح الکتب لقب ورکړل شوى او واقعاً چې امام بخارى ډيره سعي او کوشش کړى چې د کتاب مقبوليت يې قابل د افرين او صفت دى (جعل الله سعيه مشکورًا)

خو سره د دې په بخارى کې ډير رجال مجروح په هر قسم جرح دى حتى چې کذاب او يکذب الحديث او يسرق الحديث او يضع الحديث باندې مجروح دي چې د اعلى درجه جرح ده بخارى د مجروح راويانو بيان سره د نوم او الفاظ د جرح نه په مقدمة د فتح البارى او ميزان الاعتدال کې د ۱۰۰ سلونه زيات تعداد کې بيان شوي باوجود د اسې جرحو بيا هم امام بخارى د غه مجروح راويان قابل ترک نه دى ګرځولي او نه يې د دوې روايت پرينبې او ترک کړى بلکه احتجاجًا او استشهادًا ئې په خپل کتاب اصح الکتب کې داخل کړي او د دې باوجود نور محدثينو د بخارى د اصح الکتب والي څخه انکار نه دى کړى او نه ورته چرته مقلدينو اضعف الکتب ويلي دى نو که د غه د بخارى وينا ثابت شي بالفرض نو د ابه د مذهبي منافرت څخه بل هيڅ وجه نوي.

**سادسًا:** که د امام بخارى رح په د اسې جرح باندې روايت قابل ترک وى نو بيا خو په سلها وو راويان په مسلم نسائى او ترمذى ابو داود وغيره کې موجود دي چې بخارى ترينه رواية نه دى کړى بلکې مجروح ئې ګرځولي ځکه د ده د قاعدې په وجه قابل ترک دي حالانکه محدثينو قابل ترک نه دي معرفي کړي نو د امام صاحب د امام بخارى په جرح باندې ولې مجروح شو.

امام بخارى په کتاب الضعفاء کې د حضرت اويس قرني په هکله ليکلي دي چې (وفى اسناده نظر) او د بخارى په اصطلاح کې د االفاظ د سخت جرح دي حالانکه د اويس قرني پر فضيلت او خيريت صريح احاديث موجود دي نو پد اسې جرح باندې اويس رح هيڅکله مجروح نه ګرځي.

**سابعًا:** که دامام بخاری په خپله جرحه باندې وثوق او اعتماد وی نو بیا یې ولې دهغه مجروحو راویانو چې دده لخوا مجروح شوي دي روایت ترینه په صحیح بخاری کې کولو دهغو یو څو نومو نه چې ده ترینه روایت کړی او دده لخو مجروح هم دی دالاندې دي.

١- اسیدبن زیدالجلال قال الذهبی فی المیزان والعجب ان البخاری اخرج له فی صحیحه وذکره فی کتاب الضعفاء.

٢- ایوب بن عائذقال البخاری فی کتاب الضعفاء کان یری الارجاءهووهم صدوق .

٣- ثابت بن محمدقال الذهبی مع کون البخاری حدث عنه فی صحیحه ذکره فی الضعفاء.

٤- زهیربن محمدقال البخاری فی کتاب الضعفاءروی عنه اهل الشام مناکیر

٥- زیادبن الراسغ قال البخاری فی اسناده نظرکذافی المیزان

٦- عطاء بن میمونة قال البخاری فی کتاب الضعفاء کان یری القدر وفی مقدمة فتح الباری وغیر واحد کان یری القدر کهمس بن منهالة قال الذهبی انهم بالقدروله حدیث منکرادخله من اجله البخاری فی کتاب الضعفأ.

نودانصاف په نظروایې که دامام بخاری پخپله جرح باندې وثوق او اعتماد وایې نوولی به یې ددغه مجروحو راویانو څخه نقل الروایت کولو نو چې دامام بخاری پخپله جرح باندې وثوق او اعتماد نشته نو تعجب دامام بخاری پر مقلدینو دی چې دده په جرح باندې څنګه وثوق او اعتماد کوي چې امام بخاری امام صاحب ته ضعیف الحدیث ویلی دی ثامناً که دمعترض په نیزدامام بخاری جرحه سره ددې نه چې غیرصحیح او خلاف دأصولو ده دامام صاحب په حق کې مؤثرشي نوبیا ولي دمعترض په نیزبخاری مجروح او قابل ترک نه ګرځي ولي په بخاری باندې دائمة الحدیث څخه جرحی نشته بلکې ضرورجرح شته دائمة الحدیث څخه یو څو جرحی په بخاری باندې دمثال پطورنقل کوو، دبخاری استاذعلامة ذهلی په بخاری سخته جرحه کړې په طبقات شافعیه ج٢ ص١٢ باندې لیکلي دي: قال الذهلی الامن یختلف الی مجلسه (ای بخاری) فلایاتینافانهم کتبوالینامن بغدادانه تکلم فی اللفظ ونهیناه فلم ینته فلاتقربوه. (طبقات شافعیة ج٢ ص ١٢)

یعني امام ذهلی فرمایې چې څوک د بخاری مجلس ته ځي هغه دی مونږ طرف ته نه راځي ځکه د بغداد څخه ټولو خلکو مونږه ته لیکلي چې بخاری د قرآن د الفاظ په سلسله کې خبرې کوي او مونږ ترینه منع کړو خو منعه نه شو لهذا نو د هغه طرف ته مه ورنږدي کیږي.

نوغوره او فکر پکار دی چې امام ذهلي امام بخاری ته د ورتګ څخه خلک منعه کوي او پدی باندې اکتفاء هم نکوي بلکه فرمایي چې: من زعم ان لفظی بالقران مخلوق فهومبتدع لا یجالس ولا یکلم. (طبقات ج ۲ص ۱۲)

دامام ذهلي دغه خبرو په خلکو باندې دومره اثر وکړو چې اکثره خلکو د بخاری ملاقات پریښوده په تاریخ ابن خلکان ج۲ ص ۱۲۳ کې لیکلي دي چې: فلماوقع بین محمدبن یحیی والبخاری ماوقع فی مسئلة اللفظ ونادی علیه منع الناس من الاختلاف الیه حتی هجروخرج من نیشاپور فی تلک المحنة وقطعه اکثرغیر مسلم).

یعني هر کله چې د محمد بن یحیی او د بخاری ترمنځ د الفاظ القران په باره کې اختلاف راپیدا شو نو خلکو امام بخاری ته د خلکو د ورتګ نه منع شروع کړه تردي چې په همدغه ازمائش او امتحان کې امام بخاری د نیشاپور څخه وتلو هجرت یې وکړو او د امام مسلم څخه علاوه نور ټولو خلکو تعلق ورسره کټ او پرې کړو

**۲- دوهم:** امام مسلم سره د ملکرتیا نه یې د امام بخاری څخه پخپل صحیح مسلم کې یو حدیث ندی روایت کړی بلکه د حدیث معنعن په بحث کې یې امام بخاری په بعض منتحلی الحدیث کې په لفظ د عصو ناسره یاد کړی او دا دیرزیات نامناسب او غیر ملائم الفاظ دي. ( مسلم ج۱ ص۲۱)

**۳- دریم:** ابوزرعه او ابو حاتم هم بخاری ترک کړی دی په طبقات شافعیه ج۱ ص۱۹۰ کې دی چې (وترکه (ای بخاری)ابوزرعه وابوحاتم من اجل مسئلة اللفظ )

اوپه میزان الاعتدال کې داسې الفاظ دی کماامتنع ابوزرعه وابوحاتم من روایة عن تلمیذه (ای علی ابن المدینی )محمد(ای البخاری )لاجل مسئلة اللفظ ) یعني لکه څرنګه چې ابوزرعه او ابو حاتم دعلی بن المدینی د شاګرد امام بخاری څخه روایت ترک کړی دی له وجه د اختلاف د دنه په الفاظ القرآن کې.

**۴ - څلورم:** ابن مندة امام بخاری په مدلسین کې شمارلی دی په شرح د مختصر جرجانی ص ۲۱۵ کې ليکلي: عدّه ابن مندة فی رسالة شروط الائمة من المدلسين حيث قال اخرج البخاری فی کتبه قال لنافلان وهی اجازة وقال فلان وهی تدليس.

يعنې امام بخاری پخپلو کتابو کې داسې روايت بيان کړی چې کله يې داسې وويل چې فلان راته داسې ويلي دي نو دا به اجازه وي او که داسې وه چې فلان ويلي دي نو دا به تدليس وي او دا خو ظاهره ده چې د سوء الحفظ څخه تدليس غټ عيب دی ولې څکه چې تدليس اختياری فعل دی. (والتدليس حرام عندالائمة مقدمة اصول الشيخ المحدث الدهلوی علی المشکوة ص۲) فکر او غور پکار دی چې امام بخاری د علامة ذهلی څخه تقريبًا ۳۰ ديرش روايت کړي مگر په کوم نوم باندې چې مشهور دی هغه نه ذکر کوي، ولې چې د دوی ترمنځ سخت خشونت او منافرت دی.

تاريخ ابن خلكان ج۲ ص۱۳۴ کې دي چې: (وروی ای البخاری) عنه (ای الذهلی) مقدار ثلثين موضعًا ولم يصرح باسمه فيقول حدثنا محمد بن يحيى الذهلی بل يقول حدثنا محمد ولايزيد عليه ولايقول محمدبن عبدالله وينسبه الی جده وينسبه ايضًا الی جدابيه).

**۵- پنځم** دارقطنی او حاکم ويلي دي چې امام بخاری په روايت حديث کې د اسحاق بن محمد بن اسماعيل څخه معيوب معرفی شوی دی. په مقدمة فتح الباری ص۴۵۱ کې دی چې: (قال الدارقطنی والحاکم عيب علی البخاری اخراج حديثه).

د دارقطنی او حاکم مطلب ښې دادی چې د امام بخاری په خيال کې اسحاق ابن محمد ثقة دی حالانکه دا ضعيف دی په ثقه او ضعيف کې امتياز ندی کړی او علامة اسماعيل د بخاری پدغه فعل باندې تعجب کړی دی چې د ابو صالح جهنی منقطع روايت يې صحيح معرفی کړی او متصل يې ضعيف په مقدمة فتح الباری کې دی چې: وقدعاب ذالک اسماعيل علی البخاری وتعجب منه کيف يحتج باحاديثه ابوصالح حيث يفلقلهافقال هذاعجب يحتج به اذاکان منقطعًا ولا يحتج به اذاکان متصلاً.

**۶- شپږم:** علامة ذهبی د بخاری په بعض امور باندې استعجاب ظاهر کړی په ترجمه د اسيد بن زيد الجمال کې ليکلي دي چې :(والعجب ان البخاری اخرج له وذکره فی کتاب الضعفاء) نو معترضين حضرات کې

يوذره وفكراوغوروكړي چې امام ابو حنيفة دامام بخاري په جرح باندې ضعيف شو نولې بخاري دعلامة ابن منده اوذهلي وغيره په جرح باندې ولې مجروح نه ګرځي.

**٧ - اووم :** دمعترضيو دقاعده مطابق چې امام بخاري خپله مجروح ثابت شو نودده جرح به پرامام ابو حنيفة باندې څه اثر وغرځوي افسوس پرغير مقلدين چې دمحض حسد اوبعض په وجه پرامام صاحب باندې حمله کوي نواودائې په فهم اوسمج کې نه راځي چې داخومې خپله ډيرې غرقه کړه منصفي دنياسې ساري اتهرګئ دوستوايمان داري اتهرګئ که چرته امام صاحب ضعيف شي نوبيا خودټولې دنيا تمام محدثين ضعيف اومتروک الحديث دي.

**تنبيه:**

ښکاره خبره ده چې مذکوره جرحې په بخاري باندې دامحض داسکات الخصم لپاره مونږه رانقل کړی لکه شاه عبدالعزيز الدهلوي رح چې پخپل کتاب تحفة اثناعشريةکې دشعيه په مقابل کې الزامي طرف اختيارکړی، که نه په صداقت سره زمونږه عقيده داده چې امام ابو حنيفة رح اوامام بخاري رح دواړه ثقه صدوق –عادل– ظابط– جيد الحافظ –عابد زاهداوعارف دي يوهم مجروح ندی اوديوروايةالحديث هم قابل الترک ندی. (رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّکَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ) الآية.

**خلورم اعتراض ددارقطني دي:**

دارقطني ليکلي دي ديوحديث درانقلولو څخه وروسته چې : (لـم يسـنده مـن ابـن ابى عايشـة غـيرابى حنيفـة والحسـن بـن عمـارة وهمـا ضـعيفان (سـنن دارقطـنى ج١ ص٣٧٣) يعنې دابن ابى عايشة څخه هيچاروايت ندی کړی غيرد ابو حنيفة اوحسن بن عمارة نه اودادواړه ضعيف دي

**الجواب اولاً:** خوداجرحه مبهم ده اوتعديل مفسره په موجودګې کې جرح مبهم قبوله نوي کمامرّ مرارًا

**الجواب ثانيًا:** دارقطني شافعي المذهب دی اوداجرحه دمنافرت مذهبي په وجه ده.

علامه عيني فرمايي : لوتادب دارقطني واستحى لماتلفظ بهذه اللفظة فى حق ابى حنيفة فانه امام طبق عمله المشرق والمغرب. (عمدة القارى ج١ ص٦٦ )

يعني که دارقطني دادب او حیا څخه کاراخیستی وایې نودده دخولې څخه به داسې الفاظ دامام اعظم ابوحنیفهؒ په حق کې نوي راوتي ځکه دهغه امامت اوعلم اوعمل په ټوله نړۍ کې یوه مسلم حقیقت دی، ددغه عبارت لاندې علامة عینی دامام صاحب توثیق اومناقب ددغه لاندې منل شوو اشخاصو څخه نقل کړي یحیی بن معین وشعبه وعبدالله بن مبارک وسفیان بن عیینه وسفیان ثوري وحماد بن زید وعبدالرزاق ووکیع ومالک وشافعي واحمد رحمهم الله تعالی بیا وروسته عبارت کې لیکلي چې : (وقـدظهرمن هـذاتحامل الدارقطـني علیه وتعصبه الفاسدولیس له مقداربالنسبة الى هـؤلاءحتى يـتكلم فى امـام متقـدم على هـؤلاءفى الديـن والتقوى والعلم وبتضعيفه اياه يستحق هوالتضعيف افلايرضى بسكوت اصحابه عنه وقـدروى فى سـننه احاديث سقيمة ومعلولة ومنكرة وغريبة وموضوعة )

یعني دمـذکوره توثیـق څخـه د دارقطني ظلـم اوبی بنیادتعصب دامـام صـاحب پـه بـاره کـې ښـکاره شواوددارقطني دداسې حضرات او اشخاص په مخکې هیڅ حیثیت نشته تردې چې دې دداسې امام په حق کې خبرې وکړې چې هغـه پرټولو باندې پـه دیـن او تقوی اوعلم کې مخکې دی اودی ورتـه دضعف نسبت کوي حالانکه داپخپله مستحق دی چې دده تضعیف وشي ایادی ده امام صـاحب پـه باره کې دخپلو ملګرو په سکوت راضي ندی حالانکه ده پخپله پخپل سنن کې ضعیف معلول منکرغریب اوموضوع احادیث روایت کړی دی په التعليق الممجد کې لیکلي دي چې : وبعض الجروح صدرمن المتاخرين المتعصبين كالدارقطنى وابن عـدى وغيرهمامن يشهدالقرائن الجلية بانه فى هذاالجرح من المتعصـبين والتعصـب امرلايخلومنـه البشرـالامن حفظه خالق القوى والقدروقدتقرران مثل ذالک غيرمقبول عن قائله بل هوموجب لجرح نفسه [التعليق الممجد۳۳] اوواقعي چې دارقطني ډیرزیات ثقه راویان ضعیف اوضعیف یې ثقة ګرځولی دي.

په سنن دارقطني ص ۱۴ کې یې لیکلي دي چې : (ان عمربن الخطاب ﷺ كان يسـخن له مـاءفى قمقمـة ويغتسل به فهذا اسنادصحيح ) یعني حضرت عمرفاروق رض ته به اوبه په لوښي کې ګرمه ولی شوي اوبیا به هغه پرې غسل کولو دغـه سند سره ئې اسنادصحیح لیکلي حالانکه پدغـه سند کې علی بن عزام اوهشـام بن سعدواقع دی اود امجروح دی. (الجوهرالنقی)

**ثالثـا:** دارقطني پـه امـام بخـاری هـم عیـب لګـولی هغـه داسې چې اسحاق بـن محمـد چې دبخـاری اوابوداوداونسایي راوی دی نودده دروایت لـه وجې ( دارقطني عيَّب على البخارى (مقدمة فتح البارى ص

٤١٥) نو دارقطني لكه څنګه چې يې د اسحاق بن محمد په باره کې غلط فهمي کړې همدارنګه يې د امام ابو حنيفة په حق کې غلط فهمي کړي ده.

**رابعًا:** د دارقطني په کلامينو کې تعارض او تدافع ده څکه ده سنن نسايي ته صحيح ويلي دي (فتح المغيث ص٤٤ زهرالرابى ص٣). او مخکې په ضمن د جواب عن اعتراض نسايي کې دا ثابته شوه چې امام ابوحنيفة د نسايي راوي دی.

**خامساً:** د يحيى بن معين د قول نه معلوميږي چې ده د ده ترزمانې پورې هيڅ يو شخص پر امام صاحب باندې جرحه نه ده کړې لکه چې ويلي دي: (ماسمعت احداً يجرحه) (درس ترمذى ج١ ص١٣١) نو اوس به د يحيى بن معين قول معتبروي چې امام صاحب ته قريب دی او که د دارقطني قول به معتبروي چې د امام صاحب څخه دوه صدی وروسته دنيا ته راغلی دی

(ط) او د مؤرخ وظيفة هم دا وي چې د مادحين اقوال رانقل کړی د يو شخص باره نو بيا هلته د قادحين اقوال هم رانقل کوي.

**پنځم اعتراض دخطيب بغدادي:**

خطيب بغدادی د اهل کوفه وو په حق کې ويلي دي (ان رواياتهم كثيرة الزغل قليلة السلامة من العلل) يعنې د اهل کوفه وو زيات روايت دو که او غلطي لرونکې دي او ډير کم روايات د کمزوری او علل څخه محفوظ دی خطيب ويلی چې (ماولدفى الاسلام اضرمنــه) يعنې په اسلام کې د امام صاحب څخه بل زيات مضر ندی پيدا شوی.

خطيب په تاريخ بغداد کې ذکر کړی چې ابو اسحاق فزاری فرمايلي چې: (كنت اتى اباحنيفة فاساله عن الشى من الغزواة فسالت عن مسئلة فاجاب فيهافقلت يروى عن النبىﷺ كذاوكذاقال وعنامن هذا) يعنې زه د ابو حنيفة طرف ته راتلم د غزواة مسائل کې د يو مسئلې پوښتنه مې ترينه وکړه هغه جواب راکړو ما وويل چې د نبيﷺ څخه د اسې داسې وينا وی روايت شوي دي هغه وويل وعنامن هذا يعنې حديث پريږده.

**الجــواب اولاً:** د خطيب بغدادی کوم داسې خاص عبارت نشته چې د هغه څخه دا معلومه شی چې د خطيب د امام ابو حنيفة رح په حق کې څه خيال او عقيده ده فقط بحيثيت يو مؤرخ مختلف اقوال او روايات يې

پخپل کتاب کښ رانقل کړی او د مؤرخ وظیفه هم داوي چې د ما دحینو اقوال رانقل کړی دیو شخص باره کښ نوبیا هلته د قادحینو اقوال هم رانقل کوي چنانچه د خیرات الحسان دالاندې عبارت په مذکوره خبره ګواه دی.

(الفصل التاسع والثلاثون فی ردمانقله الخطیب فی تاریخه عن القادحین فیه اعلم انه لم یقصدبذالک الاجمع ماقیل فی الرجل علی عادة المؤرخین ولم یقصدبذالک انتقاصه ولاالحط عن مرتبة بدلیل انه قدم کلام المادحین واکثرمنه من نقل ماثرة السابقة فی اکثرها انمااعتمداهل المناقب فیه علی مافی تاریخ خطیب ثم عقبه بذکرکلام القاادحین لتبین انه من جملة الاکابر الذین لم یسلموامن خوض الحسادوالجاهلین فیهم ومایدل علی ذالک ایضًا ان الاسانیدالتی للقدح لا یخلوغالبهامن متکلم فیه اومجهول ولا یجوزاجماعًا).

نو خطیب بغدادی هم د امام ابو حنیفة په حق کښ مختلف بی خونده او بی هوده روایات او اقوال رانقل کړی چې خپل کتاب یې پری باد رنګه کړیدی علاوه لاداچې هغه روایات او اقوال چې د تاریخ خطیب څخه یې خلک رانقل کوي د دوی صحت هم ثابت نه دی

**ثانیًا:** خطیب فقط په امام ابو حنیفة باندې رداو قدح او جرح باندې اکتفاءنده کړی بلکه امام احمد بن حنبل وغیره په شان یې هم رطب او یابس روایات او اقوال رانقل کړی دی نو لکه څرنګه چې د امام احمد وغیره په حق کښ دده اقوال غیر معتبر او مرفوع دی همدارنګه د امام اعظم په حق کښ هم غیر معتبر او مدفوع دی ددې خبرې تائید په لاندې عبارت باندې شوی.

وممن انتصرللامام یوسف بن عبدالهادی الحنبلی فی مجلد کبیرسماه تنویرالصحیفة وذکرفیه عن ابن عبدالبرلایتکلم فی ابی حنیفة سوءولا تصدقن احدًایسیئ القول فیه فانی والله مارایت افضل ولااورع ولاافقه منه ثم قال ولا یغتراحدبکلام الخطیب فان عنده العصبیة الزائدة علی جماعة من العلماء کابی حنیفة والامام احمدوبعض اصحابه وتحامل علیهم بکل وجه وصنف فیه بعضهم السهم المصیب فی کبد الخطیب. (شامی شرح درمختارج ١ص٣٧)

**ثالثًا:** داقول چې دعنامن هذا اکه د امام صاحب څخه ثابت شي نو داخو صحیح خبره ده ځکه داخبره په تاویل باندې بناءده ددې همشله کلام چې مقصد دداوریودی هغه په مناقب کردری ج١ ص١٠١ کښ ده چې: عن عبدالله بن ابی لبید قال کناعندیزیدبن هارون فقال المغیرة عن ابراهیم فقال اجل حدثناعنه الصلوة والسلام فقال یزید یا احمق هذا تفسیرقوله علیه الصلوة والسلام فماتصنع بالحدیث اذالم تفهم معناه).

يعني ابن ابی لبید فرمایي چې دیزید بن هارون سره مونږه ووچې حضرت مغیره دابراهیم څخه روایت ذکرکړیو شخص وویل چې دحضرت ﷺ حدیث وایه یزید ورته وویل چې ای احمق دا دحدیث الرسول ﷺ تفسیر دی ته په حدیث باندې څه کوې چې ترڅو دهغه په معنی باندې نه یې پوه شوی نو د ابواسحاق فزاری روایت که بالفرض صحیح شي نوبعینه دهمدې مطابق دی ځکه فزاری چې دامام اعظم صاحب څخه سوال وکړو هغه ورته صواب او حق جواب ورکړو وویل چې دنبی کریم ﷺ روایت خو دا سې دی هغه ورته وفرمایل چې دعنامن هذا یعني دا دحدیث تفسیر دی نو دا څو څه دجرح او قدح او الزام کلام او خبره نده.

**رابعًا:** دا قول چې ماولد فی الاسلام اضرمنه ددې قول حواله مخالف او معترض په کوم کتاب نده ورکړې چې خطیب دا فقره او جمله دچا څخه رانقل کړی او بل دا چې ددغه جملې نسبت چاته شوی دهغه بیان هم ندی شوی نو داسې بی سر او بی اصل اقوال چې مخالفین یې په معرض الاستدلال کې پیش کوي دا یو لویه دحماقت خبره ده.

**خامسًا:** دا چې دخطیب اقوال او روایات په مدح دامام اعظم کې هغه هم په تبیض الصحیفة للسیوطی کې درج دي دهغه دجملې څخه یو روایت خطیب دابن ابی داودنه کړی چې مضمون یې دادی چې په امام اعظم ابو حنیفة باندې غیر دجاهل او حاسد نه بل څوک څه کلام او قول نه کوی دوهم خطیب په کال دوفات سنه ۷۴۰ھ کې یو کتاب لیکلې په نوم دا کمال په دې کتاب ص ۶۲۵ کې دامام صاحب تذکره داسې کړی چې : (فانه کان عالما عاملا ورعا زاهدًا عابداً اماما فی علوم الشریعة )

ددې څخه معلومیږي چې خطیب په اخرکې دټولو ترونو څخه رجوع کړی ده نو خطیب دخپل روایت مذکوره په خلاف دامام صاحب په باره کې څنګه شونديږي په ماولد فی الاسلام اضرمنه باندې خوزوی.

**سادساً:** ممکن چې دغه کلمات به کوم شریرحاسد دکوم بزرګ په حق ویلې وي ځکه ډیرجاهل او حاسد خلک دبزرګانو او اولیاء په باره کې همداسې دل ازار کلمات پیش کوي خپل نفس په خوشحالوي لکه څنګه چې یو جاهل شریرحاسد دامام شافعي رح په باره کې یو وضعی حدیث پیش کړی چې :

عن انس قال قال رسول الله ﷺ یکون فی امتی رجل یقال له محمدبن ادریس اضرعلی امتی من ابلیس. (شرح سفرالسعادة ص ۵۲۳ للشیخ عبدالحق المحدث الدهلوی)

پس بالفرض که دغه مذکوره جمله او کلمات کې دامام صاحب باره کې وي نو دا به هم کوم شریر جاهل حاسد ویلی وي او دداسې قائلینو په قدح او الزام باندې دامام صاحب قدر او منزله نه کمیږي او نه څه فرق پکې راځي ځکه ټوله دنیا قائله ده چې دامام صاحب په شان حامی الدین الاسلام او مفسر الکتاب او محی السنة فقیه زاهد عابد متورع خائف من الله نشته او نه به پیدا شي او دده فیض به ابد الاباد د دنیا په مخ باندې جاري وي او د متبعینو تعداد به یې په کثرت وي

**سابعًا:** دخطیب اقوال ټول په تعصب باندې بنا دي ابن جزله حکیم بغدادی په مختصر تاریخ خطیب کې دامام صاحب ډیر زیات خوندوره مدح او ثناء کړي او خطیب بغدادي ته یې ډیر په نهایة عالي درجه متعصب او بې انصافه ویلي دي.

علامة ابن جوزی الحنبلی المتوفی ص۵۹۷ھ په خپل سند سره د اسماعیل بن ابی الفضل القومسی الاصبهانی څخه نقل کوي چې : وکان من اهل المعرفة بالحدیث یقول ثلاثة من الحفاظ لا احبهم لشدة تعصبهم وقلة انصافهم الحاکم ابوعبدالله وابونعیم الاصبهانی وابوبکر الخطیب وصدق اسماعیل وکان من اهل المعرفة. (المنتظم ج۸ ص ۲٦۹ سوانح بی بهائی امام اعظم ص۳٤۵ )

یعنې اسماعیل په حدیث پوهیدونکې وو هغه فرمایې چې دری حافظان زه نه خوښوم ځکه چې هغوی سخت متعصب او لږ انصاف درلودونکې دي امام حاکم ۲ ابونعیم اصبهانی ۳ خطیب بغدادی او اسماعیل رښتیا ویلي دي او دا داهل معرفة څخه وو .

**ثامناً:** خطیب بغدادی دخپل کتاب په اتیاو صفحو کې پر امام ابوحنیفة دوه سوپنځه پنځوس تورونه لګولی مګر دا ټول اقوال و سندونه یې ډیر زیات ضعیف او رجال یې سخت مجروح دي چې قابل اعتبار ندي لایعبابه دي علامه ابن حجر مکي الشافعی په خپل کتاب الخیرات الحسان کې لیکلې دي چې: ومما یدل علی ذالک ایضاان الاسانید التی ذکرها للقدح لایخلو غالبها من متکلم فیه ومجهول ولا یجوز اجماعًا ثلم عرض مسلم بمثل ذالک فکیف بامام من ائمة المسلمین. (الخیرات الحسان ص ٦۹)

یعنې هغه څه چې په مذکوره خبره دلالت کوي هغه دا چې کوم اسانید خطیب بغدادي دامام صاحب په قدح کې لیکلي دي هغه زیات متکلم فیه یا دمجهولو راویانو څخه منقول دي او داسې اسانیدو څخه په اتفاق سره دیو عادي مسلمان دعزت کموالی نشي راتللی دالا څه چې د مسلمانانو امام اعظم وي.

**تاسـعًا:** مخکینو اوورستینو علماءوو دخطیب بغدادی په رد کې علمي کتابونه لیکلي دي چې دیوڅو نومونه په لاندې ډول دي:

۱) السهم المجیب فی الردعلی الخطیب داکتاب علامة عیسی بن ابی بکرالملک المعظم الایوبی الحنفي المتوفی سنه٦٢٤ھ لیکلي دی.

۲) السهم المصیب فی نحرالخطیب داحافظ جلال الدین السیوطي لیکلې دي.

۳) السهم المصیب فی کبدالخطیب

٤) الانتصارلامام ایمة الامصاردعلامة ابن الجوزی تصنیف.

٥) مراة الزمان دابن الجوزی که څه هم داتاریخ دی مګرپه دې کې پرخطیب بغدادی باندې دامام صاحب په ترجمه کې رد دی.

٦) - تانیب الخطیب علی ماساقه فی ترجمة ابی حنیفة من الاکاذیب دادشیخ زاهدالکوثری دی.

٧) - نقدصنیع الخطیب البغدادي فی ترجمة الامام ابی حنیفة داد دکتورمحمدطحان دی (کشف الظنون ج ص ) وریسې مطالعه کړی نور کتابونه به هم په نظردرشي.

**عاشرًا:** په تاریخ بغدادباندې دالازهردعلماءحاشیة په کال۱۳۴۹ھ ق الموافق ۱۹۳۱م دمصرپه الاهرام ورځپانه کې دیوعالم لخوا دامضمون چاپ شوچې خطیب بغدادی په امام ابوحنیفة پورې غلط تورونه لګولی د ددې مضمون دخپریدوسره سم په مصرکې دناارآمی څپې خپرې شوې پدې لړکې دالازهرعلماءوفیصله وکړه چې په تاریخ بغدادکې په امام صاحب باندې دتورونوجواب بایدد حاشیه په شکل کې ولیکل شي.

نوهماغه و چې دالازهرعلماءوپه تاریخ بغدادترلګیدلو تورونو لاندې دتورونوجواب لپاره یوه علمي حاشیه ولیکله اودتاریخ سره یوځای چاپ شو. (دامام ابوحنیفة دژوند حالات ص٣٣٤ دتبیض الصحیفة نوی مقدمة بیروت چاپ صفحه١٦–١٥]. (تلک عشرة کاملة )

**شپږم اعتراض :**

ابن الجوزی دهغه خلکوڅخه چې په امام ابوحنیفة باندې جرح اواعتراض کړی دری اقوال پخپل کتاب المنتظم کې دحاشیه الدرایة فی تخریج الهدایة لابن حجرڅخه رانقل کړی.

۱) قال صاحب المنتظم عن عبدالله بن المدینی قال سالت ابی عن ابی حنیفة فضعفه جدًاوقال خمسین حدیثًا اخطافیه) یعنی عبدالله صاحب المنتظم فرمایي عبدالله بن المدینی وایې چې مادخپل پلار نه دابوحنیفة باره کې سوال وکړو هغه دامام صاحب نهایت زیات تضعیف وکړواوویویل چې هغه په پنځوسو احادیث کې خطایې کړیده.

۲) عن ابی حفص عمربن علی قال ابوحنیفة لیس بحافظٍ بل مضطرب الحدیث ذاهب الحدیث. یعنې ابوحفص عمربن علی فرمایي چې ابوحنیفة حافظ الحدیث نه وو بلکې ضعیف وه.

۲) قال ابوبکربن داودجمیع ماروی ابوحنیفة الحدیث مائة وخمسون اخطاء اوقوال غلط فی نصفها انتهی. یعنې ابوبکربن داود فرمایي چې ابوحنیفة ځخه یونیم سل احادیث روایت شوی او دهغوی په نصف کې خطاشوی دی یایې وویل چې غلط شوی دی.

**الجواب:**

**اولاً:** ابن الجوزی په تضعیف الحدیث اورواتو په باره کې غایت درجه متعنت اومتشدددی حتی دبخاری اومسلم حدیث یې هم په موضوعات کې داخل کړي اوددوی بعض روات ته یې هم وضاع اوکذب ویلی دي ددې وجې نه اکثر محدثین دده په تنقید اوجرح باندې اعتماد نکوي اودده تنقید یې لایعبابه شمارکړی دی.

لکه ځرنګه سیوطي په تعقبات علی الموضوعات کې لیکلي چې: (قدنبّه الحفاظ قدیمًا وحدیثا علی ان فیه (ای فی کتاب الموضوعات) تساهلاً کثیرًاواحادیث لیست بموضوعة بل هی من راوی الضعیف وفیه احادیث حسان واخری صحاح بل فیه حدیث من صحیح مسلم ونبه علیه الحافظ ابن حجر و وجدت فیه حدیثًا من صحیح البخاری وقال ابن حجر تساهله وتساهل الحاکم فی المستدرک اعدم النفع بکتابیهما... الخ)

یعنې قدیم اوجدید محدثینو پدې تنبیه ورکړي چې په کتاب الموضوعات کې ډیرزیات تساهل اوکمزوری ده اوپه کې داسې حدیث هم شته چې موضوع نوي بلکې دضعیف راوی ځخه روایت شوی وي اوبعض پکې حسن اوصحیح هم شته بلکې یو حدیث دمسلم هم پکې شته ابن حجرفرمایي چې مایوحدیث دبخاری هم پکې لیدلی دی ابن حجرفرمایي چې دابن الجوزی اودحاکم مستدرک دتساهل اوکمزوری لوجی

د دغـه دوا ړو کتـابو نفع کالعـدم ګرځـولی شـوي ده او سیوطي په نشـر المعلمین والمنیفین په خاتمه ص۱۷کې لیکلي چې د ابن الجوزی تسـامحات ډیروزیاتو محدثینو ذکرکړی دهغه جملې څخه ابن صلاح حافظ زین الدین العراقی قاضي بدرالدین بن جماعة سراج الدین بلقینی حافظ صلاح الدین بن العلایي الزرکشی وقاضی ابو الفرج نهروانی او حافظ ابن حجر وغیرهم دی بس معترضین حضرات دي اول دبخاری او مسلم او سنن اربعه وپه راویانو باندې دکذاب او وضاع اقرار وکړي بیادې په امام صاحب باندې اعتراض وکړي.

**ثانیـا:** کتـاب المنتظم نهایت درجه غیر معتبر کتاب دی صریحی غلطیانی او اوهام پکې شته کشف الظنون لیکلی دی چې: المنتظم فی تاریخ الامم لابن الفرح عبدالرحمن بن علی بن الجوزی البغدادی المتوفی سنه۵۹۷ھ ذکرفیه من ابتداءالعالم الی الحضرت النبویة قال المولی علی بـن الحنـايې وفیـه اوهـام کثیرة واغلاط صریحة اشرت الی بعضهافی هامش علی نسخة یخطه مختصرًا.

نو کتاب المنتظم دغلطیانو او اوهام دفتر دی نوتر څو چې معترض دغه روایات منقوله په معتبر سند سره ثابت نه کړي نو ترهغه پورې دده جرح هیڅ وخت قابل اعتبار نده ځکه نه ئې مؤلف مؤلو قابل وثوق دی او نه یې کتاب قابل اعتبار دی.

**ثالثًا:** پدغه روایاتو کې صرف لفظ دابو حنیفة دی نو ابن الجوزی خو کثیرالاوهام دی کما قال المولی علی بن الحنای نو که دده دابو حنیفة څخه امام اعظم ابو حنیفة مراد هم وي خو محض بلا دلیل ترینه دامراد کول حجت نشي کیدای ځکه ممکن ده چې پدغه روایات کې بل ابو حنیفة مراد وي ځکه ابو حنیفة: خو پنځو اشخاص کنیت دی کمافی کتاب الاسماءوالکنی للدولابی ج۱ ص۱۵۹ بلکې علامة محی الدین فیروزآبادی په قاموس کې لیکلي چې ابو حنیفة دشلو فقهاء کنیت دی.(قال فی ذکرلفظ الحنیف ابوحنیفة کنیة عشرین من الفقهاء اشهرهم امام الفقهاءالنعمان) او په منتهی العرب کې دی چې ابو حنیفة کنیت بست فقیه است اشهرآنهانعمان بن ثابت کوفی است هو الامام الاعظم ددغه جملې څخه:

۱) یو سماک بن فضل دامام شافعی استاد دی دده روایت په مسند امام شافعی ص ۱۴۳) کې شته.

۲) بل ابو حنیفة عدوي سلیمان بن حیان دی چې دده روایات په کتاب الاسماء والکنی للدولابی ج ا ص۱۶۰ کې موجود دی.

۳) احمد المصدق بن محمد نیشاپوری دده کنیت هم ابو حنیفة دی ذکره ابن النجار

۴) دجعفربن احمد کنیت ابو حنیفة دی.

۵) دمحمدبن عبيد الله بن علی الخطیبی کنیت ابو حنیفة دی.

۶) دمحمدبن یوسف کنیت ابو حنیفة دی.

۷) دعبدالمؤمن کنیت ابو حنیفة دی.

۸) عبيد الله بن ابراهیم بن عبد الملک کنیت ابو حنیفة دی.

۹) محمد بن حنیفة بن هامان القصی کنیت ابو حنیفة دی.

۱۰) محمد بن عبد الله الهندوانی کنیت ابو حنیفة دی.

۱۱) علی بن نصر کنیت ابو حنیفة دی.

۱۲) دقیس بن احرام کنیت ابو حنیفة دی.

۱۳) دابو الفتح محمد بن ابی حنیفة کنیت ابو حنیفة دی.

۱۴) بکربن محمد بن علی بن فصل کنیت ابو حنیفة دی.

۱۵) عبد الکریم الزیلعی کنیت ابو حنیفة دی.

۱۶) دامام طحاوی استاذ الاستاذ خوارزمی کنیت ابو حنیفة دی.

۱۷) نعمان بن ابی عبد الله محمد بن منصور بن احمد بن حیوان کنیت ابو حنیفة دی.

۱۸) احمد بن داود دینوری کنیت ابو حنیفة دی.

۱۹) دسلمان بن مروشاگرداوچې روایت دده څوی عبد الکریم ترینه کړی نوم یې مجهول دی او کنیت مشهور په ابو حنیفة سره دی.

۲۰) هغه شخص چې دجبیربن مطعم جنازه کې شریک شوی وه دهغه کنیت ابو حنیفة وه او مغیره بن مقم ترینه روایت کړی نور مجهول دی دوروستنی دواړو تذکره علامة ذهبی په میزان الاعتدال دباب الکنی په ضمن کې کړیده نوښکاره خبره ده چې مذکوره روایات یاغلط او یابل ابو حنیفة مراد دی ځکه بغیر د حجت او دلیل په محض وینا دابن الجوزی به څنګه یقین راشی چې دابو حنیفة الکوفی دی.

او دکنيت په اشتراک سره دوهم او غلطی امکان شته بلکه واقع شوي دي دمثال پطور راندې په طبقات شافعيه ج۱ ص ۱۸۷کې ذکردی چې يحيی بن معين داحمدبن صالح په حق کې داسې وينا وکړه چې: (رايته كذابًا يخطب فی جامع مصر)

ددغه عبارت څخه بعض دافهم کړی چې ددغه مجروح څخه احمدبن صالح المصری مراددی چې لوی ثقة اوحافظ اوپه رجال دبخاری کې راغلی دي اودائې ضعيف معرفی کړی حالانکه ديحی ابن معين مرادبل احمدبن صالح وه چې شمونی دی

طبقات شافعيه کې دي چې : قلت وقدذكران الذی ذكر فيه ابن معين هـذه المقالـة هواحـمدبن صالح الشمونی وهوشيخ بمكة يضع الحديث وانه لم يعن احمدبن صالح هذا) (وهكذافی مقدمة فـتح البـاری ص ٤٤٧). نومعترضين حضرات دی دمنقولة روايت دتصحيح څخه وروسته دابوحنيفة تعين وکړي په صحيح دليل اوحجت سره اوبيادې دثبوت اوتعين څخه وروسته دجرح دعوی وکړی.

**رابعًا:** پدغه روايات کې کفتوگو اومباحثه شته :

**الف:** اول روايت ابن الجوزی په واسطه دعبدالله بن علی بن المدينی نقل کړی حالانکه دعبدالله توثيق اوتعديل ثابت ندی نودا روايت به څنګه معتبروي نواول دي معترض دعبدالله تعديل اوتوثيق ثابت کړی بيادې دجرح دعوی وکړی څکه دمعتبروناقلينو څخه ثابته ده چې علی بن المدينی دامام ابوحنيفةرح توثيق کړی حافظ ابن عبدالبر پخپل کتاب جامع العلم وفضله کې دحافظ موصلی ازدی دکتاب څخه دامام ابوحنيفة رح تعديل اوتوثيق ديحيی بن معين شعبة وغيرهم نه نقل کړی.

وقال ابن المدينی ابوحنيفة روی عنه الثوری وابن المبارک وحمادوهيشم ووكيع وعبادوجعفربن عون وهوثقة لاباس به) (جامع بيان العلم وفضله ج ۲ص۱٤۹)

**(ب):** دوهم روايت که بالفرض ثابت هم شي نودا جرح مبهم ده او جرح مبهم دتعديل مفسرپه مقابله کې غيرمقبوله وي.

**(ج):** دريم روايت کې کلام دی چې ابوبکربن ابی داود چې دابوحنيفة جارح دی پخپله مجروح اوکثير الخطاءدی بلکه دده والدابوداود سجستانی دتـه كذاب (دروغجن) ويلي ده اوپخپله ابوبکرهم په خپله خطااووهم معترف دی. په تذکره ج۲ ص۳۳۱ اوميزان ج۲ ص۳۹ کې دی چې : (قال السلمی سالت الدارقطني

عن ابن ابی داودفقال ثقة کثیرالخطاء فی الکلام علی الحدیث. (وایضًا فی التذکرة اخطاءفی ستة احادیث منها ثلثة حدثت بهاکماحدثت وثلثة اخطئت.

علی بن حسین بن جنید فرمايي چې: سمعت اباداودیقول ابنی عبدالله کذاب قال ابن الصاعد کفانا ماقال ابوه فیه، وفی المیزان ج ۲ص۳۹ ثم قال ابن عدی سمعت موسی بن القاسم الاشیب یقول حدثنی ابوبکرسمعت ابراهیم الاصبحانی یقول ابوبکربن ابی داودوالله کان عندی منسلخًامن العلم.

یعني ابن عدی فرمايي چې د موسی بن القاسم الاشیب څخه مې اوریدلي هغه فرمائیل چې ماته ابوبکربیان کړی چې دابراهیم اصبحانی څخه مې اوریدلي چې قسم په الله چې ابوبکربن ابی داود دعلم څخه پاک دی. وفی التذکره ج۲ ص۳۳۳ وقدتکلم فیه ابوه وابراهیم.

**خامساً:** دابن الجوزی خیالات پخپله دده په خاندان کې یو دانش منداوانصاف پسند شخص رد کړی په کتاب تنویرالصحیفة کې لیکلي مکمل عبارت (لاتتکلم فی ابی حنیفة بسوءولاتصدقن احدًایسئ القول فیه فانی والله مارایت افضل ولااورع ولاافقه منه ثم قال ولایغتراحدبکلام الخطیب فان عنده العصبیة الزائدة علی جماعة من العلماء کابی حنیفة والامام احمدوبعض اصحابه وتحامل علیهم بکل وجه وصنف فیه بعضهم السهم المصیب فی کبدالخطیب واماابن الجوزی فانه تابع الخطیب وقدعجب منه سبط ابن الجوزی حیث قال فی مراة الزمان ولیس العجب من الخطیب فانه طعن فی جماعة من العلماء وانماالعجب من الجدکیف سلک اسلوبه وجاءبماهواعظم قال ومن المتعصبین علی ابی حنیفة الدارقطنی وابونعیم فانه لم یذکره فی الحلیة وذکرمن دونه فی العلم والزهد. (ردالمختارج ۱ص ۳۸)

مقصودفی العبارة المذکورة صرف داموضوع دی چې (واماابن الجوزی فانه تابع الخطیب الخ یعني ابن الجوزی دخطیب مقلد محض دی دابن الجوزی لمسی تعجب کړی اوپه مراة الزمان کې ئې فرمایلي دي که دخطیب څخه داسې امور ظاهرشي خیر څه دتعجب خبره نده ځکه دهغه عادة قدیمة طعن علی العلماءدی تعجب زمونږپه نیکه دی چې ده څنګه دخطیب لاره اختیارکړی بلکې دهغه څخه یې یوڅوقدمه غټ پورته کړی دحدنه يې تجاوزکړی. (قال فی المیزان ص۱۰ فی ترجمة ابان بن زیدوقداورده ایضاالعلامة ابوالفرح ابن الجوزی فی الصعفاءولم یذکره فیه اقوال من وثقه هذامن عیوب کتابه یسرالجرح ویسکت عن التوثیق).

يعني ميزان ص۱۰ کې ليکلي په ترجمة دابان بن زيد کې چې علامة ابن الجوزی دده تذکرة په الضعفاء کې کړيده خو چاچې دده توثيق کړی دهغوی اقوال يې ندی ذکر کړي او دادده دکتاب غټ عيب دی چې دجرح بیان ډير خوند ور کوي خو د توثيق تذکره بلکل پريږدي

**سادساً:** علی سبيل التنزل بالفرض که يو څو روايات کې دامام صاحب نه خطايې شوی وي نو دا خو دده دغير ثقه والی او سيئ الحافظ دليل ندی ځکه امام ابو حنيفة دنورو محدثينو او حفاظ الحديث پشان يو حافظ الحديث دی چې په سينه مبارکه کې ئې په لاکونو احاديث موجود دي ديو څو رواياتو او راويانو په مسامحت باندې خو پرې دغير ثقه اطلاق نه کيږي . غور او فکر وکړه چې محمد بن يوسف الفريابی دده تذکره ابن حجر په مقدمة فتح الباری ص۵۱۹ کې داسې کړيده چې : (من كبارشيوخ البخاری وثقه الجمهور)٠

يعني دادبخاری دلوی شيوخ او استاذانو څخه دی او جمهورو دده توثيق کړی نو دده متعلق ابن حجر ليکلي په مقدمة فتح الباری کې (قال العجلی ثقة وقداخطاءفی مائة وخمسين حديثاوذکرله ابن معين حديثًا اخطاء فيه فقال هذاباطل) يعني عجلی فرمايې چې محمد بن يوسف ثقه دی او په يو سل ۱۵۰ پنځوس احاديث کې يې خلطاً شوی دی دابن معين په حضور کې دده يو حديث بيان شو چې ده پکې خطايې او غلطې کړی وو هغه وفرمايل داباطل دی٠

نو تاسو يو لحظه فکر او نظر په غور سره وکړی چې په امام صاحب باندې ديو نيم سل احاديث دخطايې دعوی کيږي هغه هم ثابته نده او دامام بخاری شيخ او استاذ په يو نيم سل احاديثو کې خطايې او غلطي کړيده او هغه دابن حجر دمعتبر کتاب نه ثابته ده، او ددې باوجود جمهور هغه ته غير ثقه او ضعيف ندی ويلي او نه بخاری غير ثقه معرفي کړی دی او نه يې دهغه احاديث ترک کړی او نه يې دهغه په حق کې (سكتواعن رأيه وحديثه) ليکلي او نه محدثينو دبخاری داصح الکتب والی څخه انکار کړی دی نو بيا څه دليل او حجة شته دی چې دبخاری استاذ په يو نيم سل خطاء کانو باندې غير ثقه او سيی الحافظ ندی او امام ابو حنيفةؒ خامخا غير ثقه او سيی الحافظ دی دادکوم انصاف او ديانت نوم دی دامحض دحسد او ضد او دتعصب دشرابو نشه ده.

(نعم ماقال ابن المبارک فلعنة ربنا اعداد رمل من ردقول ابی حنيفة)

**نوټ:** دابن الجوزی کتاب المنتظم نایاب دی په کتب خانو کې نه موندل کیږي او نه په کوم بل کتاب کې دغه مذکوره دری روایات پیدا کیږي البته درایة فی تخریج الهدایة دحاشیه په حواله باندې منتظم دا روایات نقل کړی

بهرحال نه داصل کتاب معلومات شته او نه ددغه روایات دسند څه معلومات شته نو لهذا ددغه روایاتو څخه استدلال سراسر غلط او بی بنیاده دی د دیر تفتیش او پلټنې څخه وروسته دا معلومه شوی چې کتاب المنتظم په جامع ازهر قاهره او د مدینه منوری په کتب خانه محمودیة کې پیدا کیږي خو دا خبره هم تقریبًا دنن نه ۴۱)کاله پخوانی ده . والله اعلم. (محمد اسماعیل سنبهلی ۲۱\بیع الاول۱۳۹۲ھ)

**اووم اعتراض: دعبدالله بن مبارک رح:**

کتاب قیام اللیل ص ۱۲۳ کې او حقیقة الفقه ص۱۱۸ لیکلي چې :(قال ابن المبارک کان ابوحنیفة یتیماً فی الحدیث) ابن المبارک فرمایلي چې امام ابو حنیفة په حدیثو کې یتیم دی بل عبد العزیز نورستانی په خپل کتاب دپیغمبر مونځ ص ۳۸۴ د وتررو په بحث کې د محمد بن نصر المروزی یو اوږد بیان را نقل کړی دی او بیا یې لیکلي دی چې محمد بن نصر المروزی او ویل چې ماد اسحاق بن ابراهیم نه اوریدلي چې عبد الله بن مبارک رح فرمایلي دي چې ابو حنیفة په حدیثو کې یتیم وو او حدیثو کې یې معرفت کم وو او د علماؤ و سره یې ناسته کمه وو.

**الجواب:**

**اولاً:** یتیم فی الحدیث دا دامام ابو حنیفة په باره کې څه جرحه نده او دا د جرحی په کلماتو کې کوم د مصطلح الحدیث کتاب نده لیکلې او په دې سره دامام صاحب ضعف نه ثابتیږي ځکه چې دیتیم معنی محاوره کې دیکتا او بی نظیر هم راځي لکه څنګه چې دلغت په مشهور کتاب صحاح ج ۲ ص ۳۴۹ کې دی چې : وکل شی مفرد بغیر نظیره فهو یتیم فقال درة یتیمة قال الاصمعی الیتیم الرمله المنفردة قال وکل منفرد ومنفردة عندالعرب یتیم ویتیمة)

یعنې هرمفرد شی چې ثانی نه لری هغه ته یتیم ویلی شی لکه محاوره عربی کې درة یتیمة ویلې کیږي او اصمعی ویلی چې یتیم دشګی یو بیلی ځان ته ذری ته وایې او هر هغه شی چې د هغه ثانی نوی هغه ته یتیم او یتیمة ویلی شي پس لهذا دعبد الله بن مبارک د قول مطلبه دا ثبات په صورت کې دا دی چې امام ابو حنیفة په حدیثو کې یکتا او بی نظیر وو لکه د دې بیان تائید پخپله دعبد الله بن مبارک په بل قول سره شوی :(عن ابن

المبارک قال اغلب علی الناس بالحفظ والفقة والعلم والصیانة والدیانة والـورع. (مناقـب کـردری ج ۱ص ۲۲۹). یعني ابن مبارک فرمایلي چې امام ابو حنیفة په حفظ او فقه او علم او پرهیزګاری دیانت او تقوی کې په ټولو باندې غالب وو دلته د علم څخه علم حدیث مراد دی څکه چې فقه پخپله ذکر ده فقه سره یې ذکر د علم هم او کړه چې مراد د علم څخه علم الحدیث مراد دی، عبدالله بن مبارک د امام ابو حنیفة شاګرد دې هغه د امام صاحب ډیرزیات تعریفونه کړي . په مناقب موفق بن احمد ج ۲ ص۵۱ کې دی چې سوید بن نصررح چې پخپله ثقه متقن ثبت دی او امام بخاری او مسلم او نسایي او ترمذی ترینه روایات هم کړی دی (تهذیب التهذیب ج۲ ص۲۶۸ د غه سوید وایي چې:

۱ - سمعت ابن المبارک یقول لا تقولوارای ابی حنیفة ولکن قولـوا تفسـیرالحدیث. یعني ابن مبارک فرمایي چې تاسې داسې مه وایې چې دا د امام صاحب رایې ده بلکه وایې چې دا د حدیث تفسیر او تشریح ده همدا رنګه سوید بن نصررح دا هم ویلی چې:

۲- وفیه ایضًاالمحروم من لم یکن له حفظ من ابی حنیفة. یعني چا چې د امام اعظم رح څخه څه حاصل نه کړه نو هغه محروم دی

۳ـ وفیه وایضاًقال عبدالله بن مبارک هاتوافی العلماءمثل ابی حنیفة والادعوناولا تعـذبونا. یعني ابن المبارک ویلی دي ټولو علماء ته چې ای علماءما ته د امام اعظم ابو حنیفة په شان عالم او ښایې او که نه یې شی ښودلی نو ما پریږدی او تکلیف مه راکوی.

٤- وایضًا قال علیکم بالاثرولا بدللاثرمن ابی حنیفة یتعرف به تاویل الاحادیث ومعنـاه، یعني ابن المبارک دا هم ویلي دي چې پر تاسو باندې عمل بالحدیث ضروری دی او پر حدیث باندې د پوهی لپاره د امام ابو حنیفة قول ضروردی چې د هغه د قول په ذریعه باندې د حدیث صحیح تاویل او معنی معلومه شي

٥- وفیه ایضًالولم الق اباحنیفـة لکنـت مـن المفـالیس فی العلـم موفـق ص۳۰۷، یعني که زما د امام ابو حنیفة سره ملاقات نوی شوی نو زه به په علم کې مفلس وم.

**ثانیا:** د معترضینو حضراتو دا یو لوی تعصب دی چې دیو مجروح او ضعیف راوی جرحه د امام صاحب په شان دیو جلیل القدر امام په حق کې پیش کوي معترض دي اول اسحاق بن ابراهیم تفتیش وکړي چې دا څوک دی

دامحمد بن نصر المروزی استاذدی اوپه اتفاق د محدثینو ضعیف دی (قال ابوحاتم رایت احمد بن صالح لایرضاه) یعني ابوحاتم فرمائي چې احمد بن صالح دده څخه راضي او خوشحاله نه وو.

امام بخاري ويلي چې دده په احاديث کې نظر دی امام نسايي ويلي دی چې دا ثقه نه دی ابن حبان وايي چې دده څخه حديثو کې خطاء او غلطي کيږي ابو الفتح ايزدی ويلي دي چې دا ضعيف دی، امام حاکم وايي چې دده په حديثو کې بعض منکرات دی، امام بزار ويلي چې سترګي يې رندي شوي وي حديثو کې ئې اضطراب وو.

**ثالثاً:** بالفرض که دا خبره تسليم شی نو بيا هم ممکن ده چې عبدالله ابن مبارک به د اکلمة د امام صاحب په حق کې هغه وخت ويلي وي چې امام ابو حنيفة علم کلام طرف ته زيات مائل وو او علم حديث او فقه کې يې زيات اشتغال او مصروفيت نه وو.

او ابن المبارک به دده تعديل او توثيق او تعريفونه هغه وخت کړي وي چې د امام صاحب محدث او فقيه جوړ شوی وه پس لهذا د عبدالله بن مبارک دواړه قولونه صحيح دي او پخپل ځای دي او د امام صاحب په حق کې داځه عيب او جرح نده.

**اتم اعتراض: حافظ ابن عبدالبر:**

حافظ ابن عبدالبرد معترضينوله طرفه په تمهيد شرح موطئا ص۲۷۲ ج۲ کې داسې عبارت نقل کړی : لم يسنده غير ابى حنيفة وهوسيئ الحفظ عند اهل الحديث)

**جواب:**

**اولاً:** د حافظ ابن عبد البر په نهايت صراحت سره په خپل تاليف کتاب العلم کې د امام ابو حنيفة توثيق او تعديل د فن د ائمة و څخه نقل کړی لکه يحيى بن معين شعبة حافظ موصلي ازدی او علي بن المديني وغيرهم او جارحين يې مفرط او متجاوز الحد کې شمارلي دی : (قال ابوعمر افرط اصحاب الحديث فى ذم ابى حنيفة وتجاوزوا الحد فى ذالک کتاب العلم ص ۱۹۲) وفيه ايضاکان ابوحنيفة يحسدوينسب اليه ماليس فيه ويختلق اليه مالا يليق به. (وايضاً قال- الذين رووعن ابى حنيفة ووثقوه واثنواعليه اکثر من الذين تکلموافيه) کتاب العلم ص۱۹٤).

په الخیرات الحسان کې علامة ابن حجر مکی الشافعی لیکلي: قال الحافظ ابو عمر یوسف بن عبدالله بعد کلام ذکره واهل الفقه لا یلتفتون من طعن علیه ولا یصدقون بشئ من السوءینسب الیه.

حافظ ابو عمر یوسف بن عبدالله فرمایي وروسته د ذکر دیو څه کلام څخه چې اهل الفقه یعني فقهاء دامام صاحب باندې طعن لکوونکې طرف ته بلکل التفات او توجه نه کوي او نه یو زره سوء او خرابی منی چې امام صاحب ته منسوبیږي نو چې کله پخپله د ابن عبدالبر څخه دامام صاحب توثیق ثابت دی نو بیا د دې کلام چې (وهوسیئ الحفظ عنداهل الحدیث) څه مطلب دی ټول اهل الحدیث خو تری ندی مراد څکه دوه پخپله ویلي چې (والذین وثقوه واثنواعلیه اکثرمن الذین تکلموافیه الخ... (عقودالجواهرص۱۱۰الخیرات الحسان فصل ۳۸).

نولا محالــة بــه ترینه بعض مرادوي او هغه هم ډیرکم متجاوزین عن الحد دابن عبدالبر د کلام تیجه دا راد وتله چې (وهوسیئ الحفظ عند اقل اهل الحدیث الذین هم مفرطـون ومتجـاوزون عـن الحـدفی ذمه وغیرمصدقین اهل الفقه عنه فی نسبة السوءالیه). نو چې ابن عبدالبر پخپله داسې لیکل کړی نو بیا به په داسې کلام باندې کله امام صاحب مجروح شی کلا وحاشا.

**ثانیـا:** حافظ ابن عبدالبر دبخاری راوی ایوب بن سلیمان تـه ضعیف لیکلي دي لکن محدثینو داخبره افراط کې شمالی ده (مقدمة فتح الباری ص۴۵۴ او دصحاح راوی زهربن محمد ته هم ابن عبدالبر دضعیف لفظ استعمال کړي ددې لکن محدثینو داخبره په افراط ورحمل کړی (مقدمـة فـتح البـاری ص۴۶۸ نو لګ غور او فکر پکار دی چې دبخاری او دصحاح راوی باندې دابن عبدالبر جرح په افراط محمول ده نو دامام صاحب په حق کې ولي په افراط محمول نده.

**ثالثًا:** دحافظ ابن عبدالبر کتاب تمهید شرح موطاء او ائلو تالیفاتو څخه ده او کتاب جامع بیان العلم وروستنی تصنیف دی او په دغه کتاب کې یې دامام صاحب توثیق کړی او بیایې لیکلي دي (اوضحنافی کتاب التمهید. (مختصرجامع بیان العلم ص۲۰٤) نو معلومه شو چې وروستنی تصنیف د پخوانی معارض ندی.

## نهم اعتراض:

امام محمد بن حنبل دامام ابو حنیفة تضعیف کړی او سیئ الحفظ نسبت یې ورتـه کړی او خطیب په مختصرتاریخ کې دامام احمد نه نقل کړی چې ابو حنیفة نه کوم روایت نشته.

**الجواب:**

**اولاً** : که داعبارت ثابت هم شي نوبیاهم داجرح مبهم ده قابل قبول نده .

**ثانیاً** : ابن حجرمکي شافعي چې دخطیب بغدادی نه کوم دقدح اوطعن روایات دامام ابوحنیفة په حق کې نقل کړی داغیرمعتبر اوضعیف الاسناددي الخیرات الحسان ص۷٦] نومعترضین حضرات دی ددغه روایت سند نقل کړي اوصحت دي هم ثابت کړي .

**ثالثاً**: په تنویرالصحیفة کې خطیب دامام احمدپه باره کې دجرح روایات نقل کړی نوعلی حسب قاعده اصول الحدیث چې امام احمدپخپله مجروح دی نودده جرحه دامام صاحب په حق کې مضره نده .

حاصل الجواب داچې دامام احمددا خبره چرته په کوم عربی معتبرکتاب کې نشته لهذاامام احمدله طرف چې کوم تضعیف او سیئ الحفظ نسبت شوی دی داهسی دعوی بلادلیله ده .

علامة ابن حجرمکی الشافعی رح په الخیرات الحسان ص ۳۳کې لیکي (قال احمدبن حنبل فی حق ابی حنیفة انه کان من العلم والورع والزهد وایثارالاخرة بمحل لایدرکه احد.

علامة کردری په کتاب مناقب ص۲۵ ج۲ کې دامام ابویوسف په ذکرکې داسې لیکلي : عَن العباس بن محمد قال احمد بن حنبل اول ماطلبت الحدیث ذهبت الیه ای الی ابی یوسف وطلبته منه ثم کتبه عن الناس).

**لسم اعتراض:** معترضین حضرات دحضرت مولناشاه ولی الله محدث دهلوی رح دکتاب مصفی شرح موطئانه یومضمون نقل کړی اودعوی یې کړي ده چې مولنامحدث دهلوی امام ابوحنیفة ضعیف اوسیئ الحفظ شمارلی دی.

**الجــواب:** حضرت شاه صاحب طرف ته دتضعیف انتساب محض غلطي اوفریب دی دمصفی شرح موطئا عبارت داسې دی .

(بالجمله این امامان که عالم راعلم ایشان احاط کرده است امام ابوحنیفة وامامالک وامام شافعی وامام احمداین دوامام متاخرشاکردامام ابوحنیفة وامام مالک بودند ومستمندان ازعلم اووعصرتبع تابعین بودندمگرامام ابوحنیفة وامام مالک آن یک شخصی که رؤس المحدثین مثل احمدوبخاری ومسلم وترمذی

وابوداودونسائی وابن ماجه ودارمی یک حدیث ازوی درکتاب های خودروایت نه کرده اندورسم روایت حدیث ازوی بطریق ثقات جاری نه شدوآن دیکرشخصی است که اهل نقل اتفاق دارندهرآنکه چون حدیث روایت اوثابت شدبدروه اعلی صحت رسید).

دشاه صاحب عبارت کې دوه خبری قابل غوراولائق توجه دی یوداچې دامام ابوحنیفة څخه رؤس محدثین یوحدیث ندی نقل کړی دوهم داچې دمعتبرو راویانو نه دامام صاحب روایت نشته.

دغه اول مضمون که صحیح هم شي بیاهم قابل غوردی چې وروسته به معلوم شي نوددې خبرې څخه خوامام صاحب تضعیف هیڅکله نه لازمیږي ځکه په زرکونو ثقه راویان شته چې دبعضو څخه نقل الحدیث شته اودبعضو څخه نشته نوپه ترک روایت باندې دیوچاضعف ثابتول محض یو غلط خیال او غلطه پریکړه ده.

پدی هیڅ کوم دلیل وجودنه لري اوداوهم مضمون که صحیح ومنل شی نوددې مضمون څخه صرف دومره خبره ثابتیږي چه امام صاحب دمعتبرو راویانو څخه جریان الروایت نلري خودانه ثابتیږي چې امام صاحب ضعیف دی.

لک دعبرت نظروکړه چې په سلکونو سنن ارمسانید او معاجم چې مؤلفین یې خپله ثقه لکه موطاء خوروایتونه پکې تپول دثقه او معتبرو راویانو څخه ندی نوځرنګه داسې خبره دیوچادتضعیف سنداودلیل کیداشي مسند شافعي ومسند امام احمد ومسند ابویعلی سنن ابن ماجه سنن نسائی وسنن دارمی ومعجم طبراني ومعجم صغیرو کبیروغیرهاوګوری ددوهمې اودریمې طبقی کتابونه دې پدوی کې ضعیف روایاتونه هم شته لکن سره ددې ددوی موثقین غیرثقه نه معرفی کیږي نوپه حقیقت کې دشاه صاحب عبارت نه غلط مضمون اخیستل شوی دشاه صاحب دعبارت نه هرګزاو هیڅکله دامام ابوحنیفة تضعیف نشی ثابتیدلای.

**ثانیًا:** دتقریب او تهذیب التهذیب او خلاصه نه ثابت ده چې امام ابوحنیفة: دنسائی او ترمذی راوی دی لکه چې مخکې هم تیره شوي ده داخبره نوداخبره چې امام صاحب دصحاح سته راویانو کې نشته داغلط ده

**تنبیه:** داخبره یادسائل ضروری دی چې دمصفی شرح موطا، تهذیب او ترتیب شاه صاحب پخپله ندی کړی بلکه هغه مسودات غیرمرتبه پریښودل اوشاه صاحب ترینه رحلت وکړو دارالفناء څخه دارالبقاءته ددهٔ دوفات څخه پنځه شپږمیاشتي وروسته ددهٔ شاګرد خاص مولنامحمد عاشق صاحب ددې مسودات ترتیب او تهذیب وکړو داخبره مولنامحمد عاشق دکتاب په اخرکې خپله لیکلې ده.

نولهذا دا مضمون چې دا امام صاحب څخه صحاح ست خاوندانو روایت ندی کړی داا کرچې په مصفی کې شته خوزمونږحسن ظن دادی چې دادشاه صاحب څخه ندی بلکې دا د مرتب کتاب څخه غلطي ده والله اعلم.

**ثالثاً**: مولنا شاه ولی الله محدث دهلوی قدس سره العزيزپخپل كتاب فيوض الحرمين ص۴۸ کې ليکلي چې: (عرفنی رسول الله ان المذهب الحنفی طريقه انيقة هی اوفق الطرق بالسنة المعروفة التی جمعت وروضحت فی زمان البخاری واصحابه)

يعني ماته رسول اللهﷺ وفرمايل چې مذهب حنفي يو عمده طريقه او مذهب دی چې د سنت معروفة سره ډير موافق دی چې دا دامام بخاری په زمانه کې جمع او وضاحت يې وشونود غوراوسوچ مقام دی چې شاه صاحب ته خپله رسول اللهﷺ د حنفي مذهب تلقين ورکوي او ورته وايي چې ډير عمده مذهب او د سنت معروفه سره ډير موافق دی بيا هغه مولنا داخبره کوي چې امام صاحب ضعيف يا متروک الحديث دی او معتبرضينو د جارحينو د تعداد زياتوالی لپاره د جارحينو فهرست کې دا ظهار حسد او تعصب لپاره دا امام مسلم او ترمذی او ابن ماجه او ابوداو وکيع بن جراح او عمرو الناقة او ابن القطان او ابو اسحاق الفرازی او طاؤس او زهری او هشام بن عروة او جلال الدين سيوطی او عبد الرؤف المناوی شامل کړی دي دا د تعصب او تعنت او حسد عبارات دي چې معترضين يې پخپلو عباراتو کې داخلوي (هداهم الله تعالی)

په (الخيرات الحسان کې دي: رای بعض ايمة الحنابلة النبی ﷺ قال فقلت له يا رسول اللهﷺ حدثنی عن المذاهب فقال المذاهب ثلاثة فوقع فی نفسی انه يخرج مذهب ابی حنيفة لتمسكه بالرای فابتدأوقال ابوحنيفة والشافعی واحمدثم قال ومالک اربعة ،وعن ابی معانی فی الفضل بن خالدقال رايت النبیﷺ فقلت يارسول اللهﷺ ماتقول فی علم ابی حنيفة فقال ذالک علم يحتاج الناس اليه)

په مکتوبات مجددالف ثانی جلدثانی مکتوب پنجاه وپنجم ،کې ليکلي چې بی شائبه تکلف وتعصف کفته می شودکه نورانيت اين مذهب حنفي بنظرکشفي ورنگ دريای عظيم می نمايد وساتر مذاهب در رنگ حياض وجداول بنظرمی درآيندوبظاهرهم که ملاحظ نموده می آيدسواداعظم ازاهل اسلام متبعان ابی حنيفة اندا)

**يوولسم اعتراض:** دامام ابوداود:

قال ابوعلي سمعت اباداوديقول ليس بحديث اهل الكوفـة نورابـوداودج۲ ص۳۵] ابـوعلي فرمايې چې دامام ابوداودنه مې اوريدلي چې داهل كوفي په احاديث كې نورنشته.

**الجواب:**

**اولاً**: ددې عبارت نه دامام ابوحنيفة تضعيف نه ثابتيږي اونه دكوم كوفي شخص بلكه اصل خبره داده چې امام احمديو خاص حديث (مـن ادعى الى غيرابيـه) چې دادابوعثمان په واسطة مروى دى پدې حديث كې دسماع تصريح نشته ځكه داحديث په لفظ دحدثني سره مروى شوى دى نوامام احمدددې حديث په باره كې فرمايې چې دكوفيونومحدثينوڅخه پدې حديث كې من حيث السماع نوراورشنايې اووضاحت نشته نوددې لفظ دجرحي سره څه تعلق دى چې په جرحه كې يې پيش كوي

**ثانيًا**: بالفرض كه داخيال صحيح هم شي نوبيا خوددې عبارت څخه دتمام اهل كوفي تضعيف ثابتيږي اوظاهره ده چې په بخارى مسلم ،مسندا حمدسنن اربعة ،دارقطني ،مسندشافعي ،موطئاامام مالک كې په زركونوراويـان كوفيان دي چې داسماءالرجال دكتابوڅخـه ثابت دي نوبياخوتمـام كتابونـه داحاديثوددغه معترضينوپه خيال ضعيف اوردى وګرځيدل.

**ثالثًا**: كه دمعترضينوپه نيزباندې ټول اهل كوفه ضعيف وي نوبياامام احمدولي داهل كوفي بعضې اسانيدوته اصح الاسانيدويلي تدريب الراوى ص۳۳ ملاحظ كړى: قال عبـد الله بـن احمـدعن ابيـه لـيس بالكوفة اصح من هذاالاسناديحي بن سعيدالقطان عن سفيان الثورى عن سليمان التيمى عن الحارث بن سويدعن على رضى الله عنه.

**رابعاً**: دامـام ابوحنيفة او اويس قرني دواړوتعريف دنبوى احاديث نه هم ثابت دى اوحالانكه دادواړه كوفيان دي لكه حافظ سيوطي په تبيض الصحيفة كې ليكلي : (قدبشربالامام ابى حنيفـة فى الحـديث الذى اخرجه ابونعيم فى الحلية عن ابى هريـرة قـال قـال رسـول الله ﷺ لـوكان العلـم بالثرياالتنـاوله رجـال من ابناءفارس فهذااصل صحيح يعتمدعليه فى البشارة والفضيلة).

اومحمدبن يوسف الدمشقى الشافعي دحافظ سيوطي شاګرد ليكلي دى چې (وماجزم به شيخنامن ان اباحنيفة هوالمرادمن هذاالحديث ظاهرلاشک فيه لانه لم يبلغ من ابناءفارس مبلغه احد.)

اوحافظ ابن حجرشافعي په الخيرات الحسان ص ۲۱۶ کې ليکلي :(وممايصح الاستدلال به على عظم شان ابى حنيفة ماروى عنه ﷺ قال ترفع زينة الدنياسنة خمسين ومائة، اوداويس قرنى باره کې په)(الغية)کې داسې عبارت دى (والقرنى من اولياءاهل الكوفة ).

اوعلامة سخاوى په شرح الفيه کې داسې ليکې چې (وصوب المصنف القائلين باويس بحديث عمررض) قال سمعت رسول اللهﷺ يقول ان خيرالتابعين رجل يقال له اويس.

اوامام احمد پخپله ددې حديث تخريج په مسند کې کړى دى نودانصاف نظرپکاردى چې امام احمد په خپله پخپل کتاب مسند کې داهل کوفى تعريف دنبوى حديث څخه ثابت کړى نوبياامام احمد څنګه ټول اهل کوفى ته ضعيف وايې اوروايت يې غيرمعتبروايې .

**دولسم اعتراض :** قال المالک اذاخرج الحديث من الحجاز : إنقطع نخاعه»تدريب الراوى ۳۲) امام مالک رح فرمايې چې کله حديث دحجازنه خارج شودهغه مغزکټ اومنقطع شوه

**ديارلسم اعتراض :** امام شافعى رح فرمايې : ( اذالم يوجدللحديث من الحجازاصل ذهب نخاعه) يعنې دکوم حديث ثبوت چې دحجازنه ملاونشودهغه حديث مغزختم وي .

**څوارلسم اعتراض:** اذاحدثک العراق مائة حديث فاطرح تسعة وتسعين وکن من الباقى فى شک) يعنې چې کله عراقى درته سل حديث بيان کړه نويوکم سل وغورزوه اوپه باقى کې شکمن اوسيږه .

**پنځلسم اعتراض :** امام زهرى فرمايلي دي: ان فى حديث اهل الکوفة زغلاً کثيرًا. يعنې داهل کوفى په احاديث کې ډيره دوکه اوغدردى)

**شپاړسم اعتراض:** علامة خطيب ليکلي دي : (ان رواياتهم کثيرة الزغل قليلة السلامة من العلل) يعنې داهل کوفى روايات ډيردوکه لرونکې دي اودضعيف څخه ډيرکم محفوظ دى .

**الجواب** : ددې پنځه اعتراضاتوپه يووارجواب ته توجه وکړه .

**اولاً** : ددې اقوال څخه نه دامام ابوحنيفة تضعيف ثابتيږي اونه دکوم شخص عراقى اونه دکوم شخص کوفى اونه دااقوال په قواعداصول دجرح دى اودى حضراتودخاصووجوه په بناء باندې په خاصوخاصو مواقع داخبرې کړى .

**ثانيـا:** او که د معترض په خيال باندې دا کلمات د جرح شي نو بيا خو به په دنيا کې د حديث نوم کټ شي او مصداق به يې پيدا نشي داولې دا څکه چې د امام مالک او امام شافعي رح د قول مطابق به د هر حديث اصل د مکي او يا د مديني څخه وي او علی حسب قول طاؤس زهری په حديث عراقی يعنې بصری کوفی بغدادی وغيره کې به په سلو کې يو حديث قابل اعتبار وي او علی حسب قول هشام بن عروة په عراقی زروا حاديث کې نه سوه نوی ۱۹۹۰ احاديث متروک او لس احاديث محتمل الصحة دی کمافی تدريب الراوی وقال هشام بن عروة (اذا حدثک العراقی بالف حديث فالق تسع ماة وتسعين وکن من الباق فی شک)

**ثالثاً:** معترضين حضرات دې د خپلو دغو قواعد مطابق دا حاديثو تول کتابونه مخې ته وغورړوي مثلاً که بخاری، مسلم، نسائی، ابو داود، ترمذی، ابن ماجه، دارقطنی، موطئا امام مالک، وسنن دارمی، وغيرها او د دوی څخه دې خاص حجازی روايات منتخب کړي او نور تول روايات دې پريږدي بيا په حجازی رواياتو کې چې کوم راوي کوفی بصری بغدادی راغلی وي هغه راويات دې هم ترک کړي بيا په مابقی رواياتو کې دې هغه روايات هم ترک کړي چې په کوموکې مجروح اشخاص وجود لري بيا دې د دې څخه وروسته نظر وکړي چې د دوی په لاس کې څومره احاديث باقی سالم پاتې دې زمونږه خو دا خيال او فکر دی چې يو ازې به د مانځه احاديث هم پيدا نه کړي او هم به د اهل حديث لقب غلط او کذب صريح وي او بل دا اعتراضات به څنګه قابل اعتبار شی چې په عراق کې په زرکونو صحابه موجود وو : (کماقال ابن الهمام لان الصحابة انتشرت فی البلاد خصوصًا العراق)

(قال العجلی فی تاريخه نزل الکوفة: الف وخمسين مائة من الصحابة) انصاف پکار دی چې د اسې وطن چې په زرکونو صحابه پکې موجود او شپه او ورځ پکې قال الله او قال الرسول بيا نيږي او بيا دې د دې وطن او سيدونکې دا حاديث څخه ناواقف وي او محض د کوفی او عراقی په نوم باندې دی د دوی روايات متروک شي.

**اوولسم اعتراض :**

اصحاب ابی حنيفة کوفه وال تول په توله مجروح او ضعيف دی الجرح علی ابی حنيفة ص۱۲

**الجواب:** که د دې معترضينو خبره صحيح ثابته شي نو بيا خو به دا حاديث يو کتاب هم معتبر نشي څکه صحاح ستة ؤ بخاری، مسلم، ترمذی، ابو داود، نسائی، ابن ماجه، وغيره راويان اکثره کوفيان دي

خصوصًا د شیخینو نو که کوفیان ټول په ټوله قوي الحافظـة عـادل حـافظ ضابط او ثقـه نـوی نو بیـا ولي دغو محدثینو ترینه روایات نقل کول د نمونی په طور د اطمنان قلبی په خاطر باندې یو څو کوفي محدثین چې صحاح ستهٔ ترینه روایت کړي دي په لاندې ډول دي.

۱- علقمة بن قیس نخعی کوفي ثقة ثبت فقیه عابدروی له الستة) (التقریب)

۲- قاسم بن مخیمرة ابوعروة همدانی کوفی ثقة فاضل روله البخاری ومسلم والاربعة (تقریب)

۳- عبدالرحمن بن لیلی الانصاری کوفی ثقة روی له الستة (تقریب)

٤- صلة بن زفرعبسی کوفی ثقة روی له الستة .(تقریب)

٥- شفیق بن سلمة الاسدی کوفی ثقة جلیل روی له الستة.(تقریب)

٦- شریح بن هانی حارثی کوفی مخضری روی له الستة (تقریب)

۷- شریح بن الحارثی کندی کوفی قاضی

۸- وشریح بن هانی کوفی . ( ترمذی)

۹- شریح بن النعمان ضائدی کوفی (ترمذی)

۱۰- سعیدبن جبیراسدیَ کوفی ثقة ثبت فقیه روی له الستة (تقریب)

۱۱- سالم بن ابی الجعدغطفانی الشجعی کوفی ثقة روی له الستة (تقریب)

۱۲- سائب بن مالک والدعطاء کوفی ثقة (تقریب)

۱۳- سفیان بن عیینه ثقة حافظ فقیه امام حجة روی له الستة (تقریب) اصل پیدایش یې کوفه کې شوی(ضیاء الساری)

١٤- حبیب بن ابی ثابت اسدی کوفی ثقة فقیه جلیل روی له الستة (تقریب)

۱٥- محمدبن المنتشرهمدانی کوفی ثقة (تقریب)

۱٦- سعدبن کدام هلالی کوفی ثقة ثبت فاضل روی له الستة (تقریب)

۱۷- مسلم بن صبیح ابوالضحی عطاءهمدانی کوفی ثقة فاضل (تقریب)

۱۸- موسی بن ابی عائشة همدانی کوفی ثقة عابدروی له الستة (تقریب)

۱۹- منصوربن المعتمرسلمی کوفی ثقة ثبت روی له الستة (تقریب) دا اثبت اهل کوفه دی (ترمذی)

۲۰- محارب بن دثار سدوسی کوفی قاضی ثقة امام زاهدروی له الستة (تقریب)

۲۱- عثمان بن عاصم بن حصين اسدى كوفى ثقة ثبت سنى روى له الستة (تقريب) ددې محدث نظيرپه رواتو د صيحينو کې نشته (نووى شرح مسلم)

داهغه راويان دى چې ددوى په حافظ ثقاهت عدالت ضبط حديث فقاهت اتقان باندې جمله ټول محدثين قائل دي خصوصًا دصحاح ستهٔ رواياتو مدار په همدوى باندې دى.

**اتلسم اعتراض** : حافظ ابن حجرعسقلانى دامام ابو حنيفة تضعيف کړى اوضعيف يې ورته ويلي دي (دراية تخريج احاديث هداية)

**الجواب:** حافظ ابن حجرپه تهذيب التهذيب کې دامام ابو حنيفة توثيق کړى دى اوپه تهذيب التهذيب اوپه تقريب التهذيب وغيره کې يې هيڅ يو داسې کلمه نده ليکلې چې دهغې ځخه دامام صاحب تضعيف ظاهرشي اوداد واړه کتابونه خالص دفن الرجال او اسماء الرجال دي اوداد واړه لپاره دتنقيد الرجال دي اوپکې هيڅ تنقيد پرامام صاحب نشته نو انتساب التضعيف ابن حجرته قابل بحث دى اوپاتى داخبره چې ابن حجرپه دراية تخريج هداية کې کړى هغه ابن حجر دبيهقي اودارقطنى تضعيف حكايتً رانقل کړى.

اوکه ومنوچې حکايت ندى نوبياهم پدى کې هيڅ شک نشته چې داجرح مبهم ده او دقواعد الاصول په ملاحظه چې کله جرح اوتعديل داواړه مبهم وى نوتعديل پرجرحه مقدم وي پخپله حافظ ابن حجرپه شرح نخبة الفکرکې دا اصول بيان کړي دي. نو دمعترضينو داخبره چې ابن حجرامام صاحب ته ضعيف اوسيئ الحافظ ويلي هسى فاسد خيال دى دحافظ ابن حجرکتاب لسان الميزان ديباچې ته نظروکړه هغه پخپله داسې عبارت ليکلې (فوجه قولهم ان الجرح لا يقبل الامفسرًاهوفيمن اختلف فيه توثيقه وتجريحه)

**نولسم اعتراض:** ترننۍ پورې چې ځومره محدثين تيرشوي دي دوى ټولو امام صاحب ته من جهة الحفظ ضعيف ويلى دي (الجرح على ابى حنيفة ص ۱۲-۱۱)

**جواب:** داقول خالص محدثينوپورې افتراء ده اومقصود پکې دعوامودوکه کول اوهغوى په گمراهى کې غورزول دي مګرپه زروباندې خاوره غورزول زروته کوم نقصان نه رسوي خودابه دغورزونکې حماقت وي

عجيبه خبره ده چې تمامومحدثينوامام صاحب ضعيف ګڼلى سره ددې چې ټول محدثينو دهغه بالواسطة يابلاواسطة شاګردان دي نوکه چرته امام صاحب ضعيف فى الحديث وشميرلى شي نوتمامه سلسلة الحديث به ضعيف اوبى بنياده ثابته شي.

نو که دمذکوره رسالة مؤلف ته دامعلومه وی چې دتمامو محدثینو شیخ الکل امام ابو حنیفة دی نو هیڅ کله به یې داسې افتراء باندې جرات نوی کړی امام وکیع بن الجراح څوک نه پیژنی چې دده مرتبه په محدثینو کې څومره ده صحاح سته وکې یې په کثرت سره روایات موجود دي امام احمد، ابن مدیني، عبدالله بن مبارک، اسحاق بن راهویه، ابن معین، ابن ابی شیبه، یحیی بن اکثم وغیره لوی لوی محدثین دوکیع بن جراح شاګردان دي او امام وکیع پخپله دامام ابو حنیفة شاګرد دی په فن الحدیث کې او دده په قول باندې به ئې فتوی ورکوله.

**سلسلة الاحادیث:** امام ذهبی په دې خبره باندې په تذکرة الحفاظ کې تصریح کړیده چې :

**اوله سلسلة** : په سلسلة الاحادیث کې امام بخاری دامام ابو حنیفة شاګرد دی لکه امام بخاری داحمدبن منیع شاګرد دی او احمد بن منیع دوکیع بن جراح او هغه دامام ابو حنیفة شاګرد دی اوس که ابو حنیفة ضعیف شی نو بیا خو دغه مذکور سند ټول ضعیف او دا درې واړه امامان ضعیف او بې بنیاده دې او روایت یې قابل اعتبار ندی.

**دوهمه سلسلة** : امام بخاری دعلی بن مدینی او علی بن مدینی دوکیع بن الجراح او هغه دامام ابو حنیفة په فن الحدیث کې شاګرد دي، فلهذا دا سلسلة هم دامام صاحب دضعف په وجه باندې ضعیفه شوه بلکې دادری واړه امامان ضعیف معرفی کړی شول

**دریم سلسلة** : دامام بخاری او امام مسلم دواړه دمکي بن ابراهیم شاګردان او هغه دامام ابو حنیفة شاګرد دی په فن الحدیث کې

**څلورمه سلسلة** : امام مسلم او امام ابوداود دواړه دامام احمد شاګردان دي او هغه دابو نعیم فضل بن دکین او هغه دامام ابو حنیفة شاګرد دی.

**پنځمه سلسلة** : امام ترمذی دامام بخاری شاګرد او امام بخاری دحافظ ذهلی او حافظ ذهلی دفضل بن دکین او فضل بن دکین دامام ابو حنیفة شاګرد دی.

**شپږمه سلسلة** : امام بیهقي دارقطنی او دحاکم صاحب مستدرک شاګرد دی او دارقطنی او حاکم دواړه دابو احمد حاکم شاګردان او ابو احمد دابن خزیمة او ابن خزیمة دامام بخاری او بخاری دحافظ ذهلی او ذهلی دفضل بن دکین او فضل بن دکین دامام ابو حنیفة شاګرد دی.

**اومه سلسلة** : امام احمد دامام شافعی شاگرد دی او امام شافعي رح دامام محمد بن الحسن الشيبانی او امام محمد دامام ابویوسف او امام ابوحنیفة شاگرد دی او امام ابویوسف پخپله هم دامام صاحب شاگرد دی.

**اتمه سلسلة** : امام طبراني او ابن عدی دا دابو عوانه شاگردان دي او ابو عوانه دمکي بن ابراهيم شاگرد دی او مکي بن ابراهيم چې دبخاری او مسلم هم استاذ دی دامام ابوحنیفة شاگرد دی.

**نهمه سلسلة** : ابویعلی موصلی صاحب مسند دیحیی بن معین شاگرد او هغه دفضل بن دکین او فضل دامام ابوحنیفة شاگرد دی

**لسمه سلسلة** : ابن خزيمة صاحب صحيح -داسحاق بن راهویه شاگرد او اسحاق بن راهویة او یحیی بن معین او بخاری او مسلم او دارمي او امام احمد او حافظ ذهلي دفضل بن دکین شاگردان دی او فضل دامام ابوحنیفة شاگرد دی.

پدغه لسو سلسلو کې لوی محدثین او دفن الحديث لوی امامان یادشوي دي نو که امام ابوحنیفة ضعیف وي داټول امامان او محدثینو به ضعیف وي او ددوی روایات به ضعیف او قابل اعتبار نوي.

داسلاسل عشرة مشت نمونـه خروار او لـگ دډیرو نبـه چې ټـول محـدثين دامـام ابوحنیفـة بلا واسطة یا بالواسطة په فن الحديث کې شاگردان دي.

**شلم اعتراض:** دامام صاحب استاذ حماد ضعيف دی او هم ئي بل استاذ اعمش ضعيف دی (الجرح علی ابن حنیفة ص۱۲-۱۱ ص۱۶

**جواب** : دحماد بن ابی سلیمان باره کې دمیزان الاعتدلال ج۱ ص۲۷۹ عبارت (حماد بن ابی سليمان اخرج له الائمة الستة ابواسمعيل الاشعرى الكوفى احدائمة الفقهاءسمع انس بن مالک وتفقه بابراهيم النخعى روى عنه سفيان وشعبة وابوحنيفة وخلق تكلم فيه للارجاء ولولاذكرابن عدى له فى كامله لمااوردته قال ابن عدى حمادكثيرا الرواية له غرائب وهومتماسک لاباس به وقال ابن معين وغيره ثقة مختصرًا)

یعني حافظ ذهبی په میزان الاعتدلال کې دحماد بن ابی سليمان په ترجمه کې داسې ليکلي چې دده څخه ایمة ستة و امام بخاری مسلم، ابوداود ،نسائی ترمذی، او ابن ماجه داحادیث تخریج کړی دی او دده کنیت ابو اسماعيل الاشعری الکوفی دفقه په امامانو کې یو امام دی او دانس بن مالک څخه یې سماع الحديث کړی

ده او دفقه فن يې دابراهيم نخعي څخه حاصل کړى دي او سفيان ثوري او شعبه او ابو حنيفة رح او يو دلـه نور محدثين يې د حديث په فن کې شاگردان دي او دارجائيت لوجه نه پده کي خلکو کلام کړى او که چرته ابن عدي په خپل کامل کې دده توثيق او بيان نوى کړى نومابه هم ميزان کې دده توثيق او بيان نوي کړى ابن عدى ويلى دي چې حماد كثير الروايت دى او يو څه غرائب هم لرى او متماسک او لاباس به دى او ابن معين امام الجرح والتعديل وغيره ورته ثقة ويلى او علامه ذهبي د ميزان په مقدمة ص ۳ کې ويلى دي چې حماد بن ابى سليمان شيخ ابى حنيفة ثقة او د بخارى او مسلم شيخ دى او د غير مقلدين ايمان په رواياتو د صحيحنو دى او ددوى صحت د غير مقلدينو په نيز كالو چې المنزل من الله دى او دارجائيت څخه جواب همغه دى کوم چې د امام ابو حنيفة رح څخه جواب شوى دى.

او علامة ذهبي په ميزان کې د مسعربن كدام په ترجمه کې ليكلي چې (ولاعبرة بقول السليمان كان من المرجئة مسعروحمادبن ابى سليمان والنعمان وعمروبن مرة وعبدالعزيزبن ابىٰ روادوابومعاوية وعمروبن زروسرد جماعة قلت الارجاءمذهب لعدة من جملة العلماء لاينبغى التحامل على قائله). (ميزان الاعتدال ج۳ ص۱۶۳).

(قال ابن معين حمادثقة وقال ابوحاتم صدوق وقال العجلى كوفى ثقة وكان افقه اصحاب ابراهيم وقال النسايى ثقة (تهذيب التهذيب وفى الكاشف كان ثقة اماما مجتهداً كريمًا جوادًا)(تنسيق النظام وتعليق ممجد) يعنې يحيى بن معين فرمايلي چې حماد ثقة دى، ابو حاتم ويلى چې صدوق دى

عجلى ويلى چې كوفي ثقة دى او اصحاب ابراهيم نخعي کې افقه دى امام نسايې ويلى ثقه دى او په الكاشف کې داسې بيان دى چې حماد ثقة او امام او مجتهد او كريم او جواد دى

او د امام اعمش نه جواب چې معترضينو دده په حق کې د ميزان ج۱ ص۳۸۰ عبارت رانقل كړى چې: (قال ابن المبارک انما افسد حديث اهل الكوفة ابو اسحاق والاعمش وقال احمدفى حديث الاعمش اضطراب كثير وقال ابن المدينى الاعمش كان كثيرا لوهم انتهى ملخصًا)

او غور او فكر بايد وشي چې داهغه اعمش دى چې د صحاح ستة په رواة کې داخل دي خصوصًا د صحيحنو بخارى او مسلم نو كه داضعيف شى نود غه مقلدينو يېرى به غرقه شي ځكه دهغوى پـدى صحاح کې په صحيحينو باندې يو خصوصې ايمان دى او بخارى خو په مرتبه د صحت کې قران كريم پسې شمارې. امام ذهبى

په میزان ج اول ص ۴۲۳ کې دعبدالله بن مبارک دقول جواب پخپله رانقل کړی دی اوداسې عبارت یې لیکلي دی:

کانه عنی الروایة عمن جاءوالافالاعمش عدل صادق ثبت صاحب سنة وقران یحسن الظن بمن یحدثه ویروی عنه ولا یمکننابان نقطع علیه بانه علم ضعف ذالک الذی یدلسه فان هذاحرام.

اوحافظ ابن حجرفرمایي چې (سلمیان بن مهران الاسدی الکاهلی ابومحمدالکوفی الاعمش ثقة حافظ عارف بالقراة ورع لکنه یدلس من الخامسة (تقریب ص ۷۹) یعني سلیمان بن مهران الاسدی الکاهلی چې کنیت یې ابو محمد او دکوفی دی اولقب یې اعمش دی داثقة حافظ اوپه قراءة کې ماهراوعارف دی اوپرهیزګاره شخص دی خومدلس دی تدلیس کوي اوپه طبقه خامسة کې داخل دی.

اوحافظ ابن حجردصحاح ستة رواة په نبنه کولوکې داپه طبقة ثانیة کې حساب کړی اودحافظ په اصطلاح په طبقه ثانیة کې هغه شخص داخل وی چې محدثینویې نبه په تاکیدسره دهغه مدحه کړی وي لکه چې لیکلي دي: الثانیة من اکد مدحه اما بافعل کاوثق الناس اوبتکریرالصفة لفظاکثقة ثقة اومعنًی کثقة حافظ (تقریب ص۲)

اوامام ذهبی فرمایي: ابومحمداحدالائمة الثقات عداده فی صغارالتابعین مانقمواعلیه الاالتدلیس. (میزان ج۱ ص۴۲۳ )

یعني سلیمان بن مهران چې کنیت ابو محمد دی دثقات امامان څخه یوثقة امام دی اوپه صغارتابعین کې شمار دی اومحدثینوپه نیزدتدلیس څخه ماسوی بل عیب پکې نشته اوکه چرته بل عیب پکې وایې نوامام ذهبی به بیان کړی وه داسې به یې نه لیکل چې (مانقمواعلیه الاالتدلیس)

**تنبیه:** بالفرض والتقدیرکه دغه اعتراض صحیح هم شي نودامام ابو حنیفة خوهم داوه استاذان ندي بلکې دفقهاءاومحدثینوپه نیزدامام صاحب په زرګونواستاذان اومشائخ دي علی طورمشت نمونه خروار دالاندي مشائخ ته نظروکړه په تذکرة الحفاظ دحافظ ذهبی کې دامام صاحب دمشائخ تذکرة داسې کوي عطاءنافع ،عبدالرحمن بن هرمزالاعرج سلمة بن کهیل ،ابوجعفرمحمد بن علی،قتادة ،عمروبن دینار،ابواسحاق، اوپه اخرکې لیکلي چې امام ابو حنیفة دډیروخلکوڅخه روایت الحدیث کړی.

اوپه لس کونو مشائخ تهذیب الکمال په یوساه یاد کری لکه موسی بن ابی عائشة ،ابن شهاب زهری ،عکرمة مولی ابن عباس ،سماک بن حرب ، عون بن عبدالله ،علقمة بن مرثد ،علی بن اقمر ،قابوس بن ابی طبیان ،خالدبن علقمة ،سعیدبن مسروق ،شدادبن عبدالرحمن ،ربیعة بن عبدالرحمن ،هشام بن عروة ،یحیی بن سعید ،ابوالزبیرالمکی محمدبن السائب ،منصوربن المعتمر ،حارث بن عبدالرحمن ،محارب ،بن دثار ،معن بن عبدالرحمن ،قاسم مسعودی .

دامام صاحب داستاذانو معلومول که څوک غواړی اوکوشش وکړي نوترڅلورزروپوری به یې پخپله هم پیداکړی: حکی عن عبدالله بن ابی حفص الکبیرانه وقع منازعة فی زمنه بین اصحاب ابی حنیفة وبین اصحاب الشافعی فجعل اصحاب الشافعی یفضلون الشافعی علی ابی حنیفة فقال ابوعبد الله بن ابی حفص عدومشائخ الشافعی کم هم فعدوافبلغواثمانین ثم عدوامشائخ ابی حنیفة من العلماء التابعین فبلغوا اربعة الاف فقال عبد الله هذامن ادنی فضائل ابی حنیفة. (الموفق لابن احمدالمکی ج۱ ص۳۸)

که دالاندی کتابونه اوداسې نورچې دامام صاحب په مناقب کې لیکلې شوی اویاپه اسماءالرجال دی مطالعه کړی تبییض الصحیفة، تنویر الصحفه، جواهر منیفة تهذیب ،تذهیب التهذیب ،تهذیب الاسماء الخیرات الحسان ،قلائدعقیان ،عقودالجمان، مناقب النعمان په دې نوم باندې دده باره کې۹ نهه کتابه لیکلې شوی دي شقائق النعمان سیرة النعمان ،نظم الجمان، تحفة السلطان ،کتاب المناقب ،طبقات حنیفة ،تذکرة الحفاظ ،تاج التراجم، فی الطبقات الحنفیة وغیرها او دمناقب کتابوکې یې ورته مستقل بابونه اوفصلونه عنوان کړی دي

**یوویشتم اعتراض:** نظروکړی دامام صاحب بل استاذ ابراهیم نخعی ته چې دادحماداواعمش هم استاذدی یعنې واهم مجروح دی اواعمش چې دده شاګردی ویلی دي دده په حق کې (مارایت احدًا روی بحدیث لم یسمعه من ابراهیم الخ )(الجرح علی ابی حنیفة ص ۱٦) یعنې ماهیڅوک غیردابراهیم نخعی نه نه دی لیدلی چې داسې حدیثونه روایت کوي چې اوریدلي نه وي

**جواب :** حافظ ابن حجردده باره کې داسې ویناکوي چې: ابراهیم بن یزیدبن قیس بن الاسودالنخعی ابوعمران الکوفی الفقیه ثقة الاانه یرسل کثیراًمن الخامسة مات سنة ست وتسعین وهوابن خمسین

او نحوها)(التقريب ص ١١) نوکه دامام ابراهیم نخعی مجروح وایي نو حافظ به دده باره کې دجرح الفاظ لیکلي وي نه دامذکوردتوثیق الفاظ.

او امام ذهبی دده باره کې داسې بیان کړی: ابراهیم بـن یزیـدالنخعی احـدالاعلام یرسـل عـن جماعة وقدرای زیدبن ارقم وغیره لم یصح له سماع من صحابی) (میزان ج ١ص ٣٥)

نوددې عبارت نه معلومه شوچې امام ابراهیم تابعی او په خیرالقرون کې داخل دی او په بشارت نبوي کې چې (طوبی لمن رای من رانی) کې هم شامل دی اوس دامام اعمش وینا اوره چې هغه هم همداسې ویلي دي لکه تاچې لیکلي دي او که بل څه دي (قال الاعمش کان خیراً فی الحدیث (تهذیب التهذیب)

یعنې ابراهیم نخعی په احادیث کې ډیرزیات غوره او خیرا وپسندیده شخص وو بل قول داعمش ته توجه وکړه ـ(قال الاعمش قلت لابراهیم اسندلی عن ابن مسـعودفقال اذاحـدثتکم مـن رجـل عـن عبدالله فهوالذی سمعت اذاقلت قال عبدا لله فهوعن غیرواحد)(تهذیب التهذیب)

حافظ ابن حجرفرمایي: مفتی اهل الکوفة کان رجلاًصالحافقیهاوجماعة مـن الائمـة صـحوا مراسیله (تهذیب التهذیب)

وقال الشعبی ماترک احـداً اعلـم منـه )تهذیب التهذیب شعبی فرمایې چې ابراهیم نخعی دځان نه وروسته دخپل ځان نه لوی عالم پرې نښودو)

حافظ ذهبی فرمایي : ( قلت واستقرالامرعلی ان ابـراهیم حجـة ) (مـیزان ص٣٥) یعنې پدې باندې اتفاق دی چې ابراهیم نخعی په حدیثو کې حجت دی ابن حبان په ثقات تابعینو کې ابراهیم نخعی ذکرکړی دی: ( قال الطحاوی حدثناالاعمش قال ابراهیم النخعی ماا کلت من اربعین لیلة الاحبـة عنـب ) (الکاشـف) وقال التیمی وکان ابراهیم عابدّاصابراً علی الجوع الدائم (تهذیب التهذیب)

**دوه ویشتم اعتراض:** دامام ابوحنیفة رح مقرب شاګرد امام ابویوسف ضعیف دی فی میزان الاعتدال: قال الفلاس کثیر الغلط، وقال البخاری ترکوه الی قوله) وفی لسـان المـیزان قـال ابـن المبـارک ابویوسـف ضعیف الروایة . (الجرح علی ابی حنیفة ص١٥-١٤ )

**جـواب** : داخبری دامام ابویوسف په حق کې صرف دتهمت څخه او محض دعناداوعداوة اوتعنت اوتعصب څخه بل هیڅ ندي.

که داواقعت وايې نوبیاامام الجرح والتعدیل امام احمداوامام جرح والتعدیل امام یحیی بن معین دده شاگردی ولـي کولـه اول دوی تـه پکـاروه چـې دامـام ابویوسـف تضـعیف ئـې بیـان کـړی وايـې لکـن دی حضراتواونوروداامام ابویوسف په حق کې ( صاحب حدیث صاحب سنة منصف فی الحدیث اثبت واکـثر حدیثاً،اتبع الحدیث ،حافظ الحدیث ) فرمایلي دي.

امام نسائی په کتاب الضعفاوالمتروکین کې امام ابویوسف ته ثقه ویلی دي حافظ ذهبی په حافظانو دحدیث کې شمارکړی لاندې عبارت ته توجه وکړی (سمع ابویوسف هشام بـن عـروة واباسـحاق الشـیبانی وعطاءبن السائب وطبقتهم وعنه محمدبن الحسن الفقیه واحمدبن حنبل وبشربن الولیـدویحی بـن معین وعلی بن الجعدوعلی بن مسلم الطوسی وخلق سواهم نشاءفی طلب العلم وکان ابـوه فقـیراً فـکان ابوحنیفـة یتعاهده قال المزنی ابویوسف اتبع القوم للحدیث وروی ابراهیم بن ابی داودعن یحی بن معین قال لیس فی اهل الرای احداکثرحدیثاولا اثبت منه وروی عباس عنه قال ابویوسف صـاحب حـدیث وصـاحب سـنة وقال ابن سماعة کان ابویوسف یصلی بعدماولی القضاءفی کل یوم مـائتی رکعـة وقـال احمـدکان منصـفافی الحدیث مات سنة اثنتین وثمانین ومائة وله اخبارفی العلم والسیادة وقدافردته وافـردت صـاحبه محمـدبن الحسن فی جزءانتهی ملخصًا(تذکرة الحفاظ للذهبی)

نُواب صدیق حسن خان غیرمقلد فرمایې : (کان القاضی ابویوسـف مـن اهـل الکوفـة وهوصـاحب ابی حنیفة وکان فقیهاعالماحافظًا ) (التاج المکلل ص ۹۱)

(ثم قال نواب صدیق حسن خان ولم یختلف یحیَ بن معین واحمدبن حنبل وعلی بن المدینی فی ثقة فی النقل ) (التاج المکلل ص ۹۲)

یعني یحیی بـن معین او احمدبن حنبـل اوعلی بـن المـدینی دری واړه دامـام ابویوسـف په ثقاهت فـی الحدیث باندې متفق دی اوهغه امام علی بن المدینی هم یدې کې اتفاق لری چې دهغه په حق کې امام بخاری داسې ویناکړی لاندې دابن حجرپه عبارت کې موجود ده (ثقة ثبت امام اعلم اهل عصره بالحـدیث وعللـه حتی قال البخاری مااستصغرت نفسی الاعنده (تقریب)

امام بخاری فرمایې چې دعلی بن المدینی په حضور زما هیڅ حقیقت او حیثیت نشته نو کله چې امام بخاری خپل ځان دعلی بن المدینی په حضور کې په نشتې باندې حسابوي نو بیا به د هغه تضعیف په مقابل دعلی بن المدینی دتوثیق کې په څه تقابل شی که چیرته دامام بخاری نه داجرحه ثابته وي.(الا بعدًا للترجیح)

ولم یختلف یحیی بن معین واحمدوابن المدینی فی کونه ثقة فی الحدیث (الانساب للسمعانی) وذکرابن عبدالبرفی کتاب الانتهاقی فضائل الثلاثة الفقهاءان ابابوسف کان حافظًاوانه کان یحضرالمحدث ویحفظ خمسین ستین حدیثًاثم یقول فیملیهاعلی الناس وکان کثیرالحدیث. (التاج المکلل ص ۹۲)

پدې عبارت کې تردید دقول دفلاس شوی دی چې هغه ویلی وه (وکان کثیرالغلط) اودمذکورعبارت په اخرکې ذکردی چې (وکان کثیرالحدیث) (قال طلحة بن محمدبن جعفرابویوسف مشهورالامرظاهرالفضل افقه اهل عصره ولم یتقدم احدفی زمانه وکانم النهایة فی العلم والحکم والریاسة والقدروهواول من وضع الکتب فی اصول الفقه علی مذهب ابی حنیفة واملی المسائل ونشرهاوبث علم ابی حنیفة فی اقطارالارض (التاج المکلل )ص ۹۲].

ثم قال نواب: قال عماربن ابی مالک ماکان فی اصحاب ابی حنیفة مثل ابی یوسف لولاابویوسف ماذکرابوحنیفة ولامحمدبن ابی لیلی ولکنه هوالذی نشرقولهماوبث علمهما (التاج المکلل ص۹۲)

وقال ابویوسف سالنی الاعمش عن مسئلة فاجبته عنهافقال لی من این لک هذافقلت من حدیثک الذی حدثتناه انت ثم ذکرت له الحدیث فقال لی یایعقوب انی لاحفظ هذا الحدیث قبل ان یجتمع ابواک وماعرفت تاویله الان (التاج المکلل ص ۹۲)

نواب صدیق حسن خان په اخرکې علی طورفیصله داسې ونیاکوی (واخبارابی یوسف کثیرة واکثرالناس من العلماء علی فضله وتعظیمه یعنې دمادصحینوتعدادزیات دي نودجارحیوجرحه به قابل قبول نوي اودهم عصرجرحه هم دهم عصرباره کې مقبول نده لکه عبدالله بن مبارک اووکیع بن الجراح اوددارقطنی اوابن عدی اوبخاری جرحی په تعصب اوتشددبناديي هغه هم مقبولي ندی . (الفضل ماشهدت به الاعداء).

یوخبره قابل توجه چې معترض دفلاس په مقوله کې خیانت کړی پوره مقوله يې نده رانقل کړی په میزان الاعتدال کې دامقوله پوره داسې ده: قال الفلاس صدوق کثیر الغلط.

نو دفلاس دمقولي اولني الفاظ دتعديل او توثيق دي يعني دفلاس په نيز هم دامام ابويوسف صداقت مسلم دى او داصدوق لفظ دجرح او تعديل په اصطلاح كې دتوثيق په الفاظ كې شامل دى دنورائمه وو اقوال دامام ابويوسف په باره كې لاندې عبارت كې بيان شوى دى (قال عمروالناقدكان صاحب سنة وقال ابوحاتم يكتب حديثه وقال المزنى هواتبع القوم لحديث واماالطحاوى فقال سمعت ابراهيم بن ابى داودالبراسى قال سمعت يحيى بن معين يقول ليس فى اصحاب الراى احداكثرحديثاولااثبت من ابى يوسف. (ميزان ج ٣ص٣٢١)

وقال ابن عدى ليس فى اصحاب الراى اكثرحديثامنه الاانه يروى عن الضعفاءالكثيرمثل الحسن بن عمارة: وغيره وكثيراماىخالف اصحابه ويتبع الاثرواذاروى عنه ثقة وروى هوعن ثقة فلاباس به .(ميزان ج٣ ص٣٢٢).

نولگ غوراو فكر پكاردى چې دومره لوى ايمة الحديث دامام ابويوسف تعديل او توثيق كوي او معترض صرف دعوام خلكو دوكه كولو او كمراه كولو لپاره دفلاس او امام بخارى اقوال دامام ابويوسف دعلم او دين مرادكرځولي دي دمذكوره اقوال څخه دومره ثابته شو چې امام ابويوسف دضعيف راويانو څخه روايت كوي نو كه دضعيف راويان څخه روايت باندې ديو چا تضعيف كيږي نو بيا خو امام بخارى او مسلم هم ضعيف دي ځكه په بخارى او مسلم كې متكلم فيه روات موجود دي على طور نمونه به يو څو دبخارى راويان ياد كړو چې ضعيف دي، حافظ ابن حجر په مقدمة دفتح البارى كې ليكلي چې په كتاب المناقب كې حسن بن عمارة موجود دى چې دده په متروك والى باندې دائمة الجرح دوالتعديل اتفاق دى (مقدمة ص ٣٩٥

اسيد بن زيد الجمال دبخارى په كتاب الرقاق كې موجود دى حافظ ابن حجر فرمايي چه دده توثيق دهيچا څخه ندى رانقل شوى (مقدمة ص ٣٨٨

بل حسن بن بصرى بخارى راويانو كې شته امام احمد او ابن معين او ابو حاتم، نسائى او ابن مدينى پنځو واره په اتفاق سره دده به ضعف باندې قائل دي (مقدمة ص ٣٩٤).

همدارنگه نعيم بن حماد متوفى ٢٢٨ هـ دادامام بخارى شيخ او استاذ دى او دده په نيز معتبر هم دى او يو څو احاديث يې دده څخه پخپل صحيح كې درج كړى دادا اكثر محدثينو په نيز سخت مجروح دى.

او ضعف او نکارت نه علاوه په وضع الاحادیث باندې هم ملزم دی څو اقوال ته توجه وکړی دده باره کې.

قال النسائی ضعیف ونسبه ابوبشرالدولابی الی الوضع (مقدمة فتح الباری)

رهو (ای نعیم) مع امامة منکرالحدیث وقال سعیدبن یونس روی احادیث من یسرعن الثقات وکان من اوعیة العلم ولا یحتج به (تذکرة الحفاظ ج۲ ص۸-۷ وقـال ابـوداودکان عنـدنعیم بـن حمادنحوعشرین حدیثاعن النبی لیس لهااصل. (میزان الاعتدال ص ۵۲۵)

هنربچشم عدوات بزرگ ترعیب است     گل است سعدی ودرچشم دشمنان است

**درویشتم اعتراض :**

دامام ابو حنیفة بل مقرب شاګرد باره کې متعصبینو متشددینو معترضینو داسې نیمګړی ویناوی لیکلې دي میزان الاعتدال داسې لیکلي (ولینه النسایی وغیره من قبل حفظه) اولسان المیزان کې داسې عبارت دی (قال ابوداودلا یکتب حدیثه) اوپه کتاب الضعفا والمتروکین کې امام نسائی فرمایي: (ومحمدبن الحسن ضعیف).

**جواب:** دشاهین الاحناف امام محمدبن الحسن الشیبانی رحمه الله قدراو منزله فضیلت او علمیت ټولې نړی ته داسې روښن او واضح دی کالشمس فی نصف النهار او کالقمربین النجوم هیڅ ضرورت جواب اوبیان او وضاحت د دغسې بی هوده الفاظو او اعتراضونو ته نشته خو بیا هم صرف داطمنان قلبی په خاطر به فی الجملة جواب ولیکلو.

اول د میزان الاعتدال عبارت معترض مکمل ندی راخیستی ځکه دتلیین النسائي څخه وروسته حافظ ذهبی لیکلي چې : وبروی عن مالک بن انس وغیره وکان من بحورالعلم والفقه قویافی مالـک )(میزان ج۲ ص ۴۳. یعنې امام محمد د حدیثو روایات دامام مالک څخه کړي دي اوپه علم او فقه کې نه ختمید ونکې لوی سنداو دریاب دی او دامام مالک په روایات کې قوي دی )

او حافظ ذهبي په مقدمة د میزان کې فرمایي هغه خلک چې جلالت او ثقاهت دهغوی مسلم دی او دادنی لین او تساهل لوجې نه متشددین فی الجرح پکې کلام کړی دی که چرته دغه خلک ابن عدی وغیره په خپله کتابونوکې نوی ذکرکړی نومابه ددوی دثقاهت لوجې پخپل میزان کې نـوی ذکرکړي: ولـم اره فی الـرای ان احذف اسم احدممن له ذکربتلیین مافی کتب الایمة المذکورین خوفامن ان یتعقب علی لاانی ذکرته لضعف

فيه عندى. (مقدمة ميزان الاعتدال) نو داثابته شو چې د حافظ ذهبي په نيز امام محمد ضعيف زدى او كه څوک يې دعوى كوي نو خپله دعوى دى ثابته كړي.

او حافظ ابن حجر په لسان الميزان كې داسې تحرير كړى دى :

هومحمد بن الحسن بن فرقدالشيبانى مولاهم ولد بواسط ونشا بالكوفة وتفقـه على ابى حنيفـة وسـمع الحديث من الثورى ومسعروعمروبن ذرومالک بن مغول والاوزاعى ومالک بن انـس وربيعـة بـن صـالح وجماعة وعنه الشافعى وابوسليمان الجوزجانى وهشام الرازى وعلى بن مسلم الطوسى وغيرهم ولى القضاء فى ايام الرشيدوقال ابن عبدالحكم سمعت الشافعى يقـول قـال محمـداقمت على بـاب مالـک ثـلاث سـنين وسمعت منه اكثرمن سبع مائة حديث وقال الربيع سمعت الشافعى يقول حملت عن محمدوقربعيركتباوقال ابن على ابن المدينى عن ابيه فى حق محمدبن الحسن صدوق (لسان الميزان مطبعه حيداباد)

وفيه من تكلم فيه مع ثقته وجلالته بادنى لين وباقل تجريح فلولاابن عدى اوغيره من مؤلفى كتـب الجرح ذكرواذالک الشخص لماذكرته لثقته (ديباجه ميزان ص۳ ج ۱)

نو دعلى بن المدينى په شان امام چې دامام محمدبن الحسن توثيق وكړو نو بيا دامام محمد په ثقاهت فى الحديث كې هيڅ شک نشته او دعلى بن المدينى د توثيق په مقابل كې دامام نسائى او امام بخارى جرحه په نشت باندې حساب ده.

او على بن المدينى دامام محمد توثيق پـه لفظ د صدوق باندې كړى او د اصدوق د توثيـق پـه اعلى الفاظو كې موجود دى لكه چې حافظ ذهبى په ميزان كې د توثيق الفاظ په لاندې ډول بيان كړى (فـاعلى العبارات فى الرواة المقبولين ثبت حجة ،وثبت حافظ وثقة متقن وثقة ثم ثقة ثم صدوق ولاباس بـه الـخ) (ميزان ج۱ ص ۳) قال الشافعى مارايت اعقل من محمدبن الحسن (الانساب للسمعانى).

وروى عنه اَنّ رجلاًساله عن مسئالة فاجابه فقال الرجل خالفک الفقهاءفقال له الشافعى وهل رايـت فقيهًااللّهُمَّ الاان يكون رايت محمدبن الحسن (الانساب للسمعانى).

يعنې دامام شافعى څخه يو كس ديوى مسئلې پو ښتنه وكړه هغه ورته جواب وركړو هغه سړي وويل چې ستاسره پدې مسئله كې فقها،مخالف دى امام شافعى ورته وويل تاچرته كوم فقيه ليدلى دى مګر كه امام

محمد بن الحسن دي ليدلی وي نو بيا تيک او صحيح ده ستا خبره هغه د دې قابل دی نو امام شافعي رحمه الله د امام محمد په فقاهت فی الدين باندې د ټولی دنيا په فقهاو وکی تصريح وکړه.

وکان اذا احدثهم عن مالک اءمتلامنزله وکثرالناس حتی يضيق عليه الموضع )(تهذيب الاسماء) يعني کله به چې امام محمد د امام مالک نه دا ورېدلو او وزده کړو حديثو درس کولو نو خپل کور به يې د شاګردانو ډکه شو تر دې پورې چې دده خپل دناستی ځای به هم تنګ شو نو امام محمد که ضعيف فی الحديث وايې نو ولې به دده په کور باندې دو مره ازدحام د محدثينو وايې او دومره شوق د سماعت الحديث به يې درلودلو )

عن يحيي بن معين قال کتبت الجامع الصغيرعن محمدبن الحسن (تاريخ خطيب وتهذيب الاسماء) عن يحيي بن معين قال سمعت محمدًا صاحب الرای فقيل سمعت هذاالکتاب من ابی يوسف قال والله ماسمعته منه وهواعلم الناس به الاالجامع الصغيرفانی سمعته من ابی يوسف (مناقب کردری ص۱۵۰)

يعني يحيی بن معين د امام محمد څخه روايت کړی دی او هغه د کتابو سمع يې کړی او د هغه شاګردي اختيار کړی ده دا ټول امور دلالت کوي په دی چې امام محمد صاحب فضيلت او صاحب علم او عادل او حافظ ضابط محدث فقيه صدوق دی.

عن عبدا لله بن علی قال سالت ابی عندمحمدقال محمدصدوق .(مناقب کردری ج۲ ص۱۵۰) عن عاصم بن عصام الثقفی قال کنت عندابی سليمان الجوزجانی فاتاه کتاب احمدبن حنبل بانک ان ترکت رواية کتب محمد جئنا اليک لنسمع منک الحديث فکتب اليه علی ظهررقعته مامصيرک الينا يرفعنا ولاقعودک عنا يضعناوليت عندی من هذاالکتاب اوقارًاحتی ارويهاحسبة . (مناقب کردری ج۲ ص۱۵۴)

وذکرالامام ظهيرالائمة المدينی الخوارزی انه )(محمد)قال مذهبی ومذهب الامام وابی بکرثم عمرثم عثمان ثم علی رضی الله عنه واحد.(مناقب کردری ج ۲ص ۱٦۲)

وذکرالسلامی عن احمدبن کامل القاضی قال کان محمدموصوفًابالرواية والکمال فی الرای والتصنيف وله المنزلة الرفيعة وکان اصحابه يعظمونه جدًا.(مناقب کردری ج۲ ص۱۵۳ )

وذکرالجلسی عن يحيي بن صالح قال قال يحيي بن اکثم القاضی رايت مالکًاومحمدًاقلت ايهماافقه قال محمدوبه عن ابی عبيدقال مارايت اعلم بکتاب الله تعالی من محمد.(کتاب مناقب کردری ج۲ ص۱۵٦)

عن ابراهيم الحربي قال سالت احمدبن حنبل من اين لک هذه المسائل الدقاق قال من کتب محمدبن الحسن .(مناقب کردری ج۲ ص۱۶۰)

وعن ادريس بن يوسف القراطيسی عن الامام الشافعی قال مارايت رجلاً اعلم بالحلال والحرام والناسخ والمنسوخ من محمد(مناقب کردری ص۱۵۷ وقال اسماعيل بن ابی رجاءرايت محمدًافی المنام فقلت مافعل ا لله بک فقال غفرلی ثم قال لواردت ان اعذبک ماجعلت هذاالعلم فيک فقلت له فاين ابويوسف قال فوقنابدرجتين قلت فابوحنيفة قال هيهات ذالک فی اعلی عليين .(درمختارص۲۶ )

وروی ان الشافعی استحسنه (ای المبسوط)وحفظه واسلم حکيم من کفاراهل الکتاب بسبب مطالعته حيث قال هذاکتاب محمدکم الاصغرفکيف کتاب محمدکم الاکبر.(کشف الظنون ج۲ ص۳۷۳)

وقال الشافعی (اعانني الله فی العلم برجلين فی الحديث بابن عيينه وفی الفقه بمحمدثم قال من ارادالفقه فليلزم اصحاب ابی حنيفة فان المعانی قدتيسرت لهم والله ماصدت فقيهاالابکتب محمدبن الحسن )وخرج الکسائی ومحمدبن الحسن مع هارون الرشيدالی الری فماتابهافی يوم واحدفقال الرشيددفنت اليوم اللغة والفقه .(تاريخ بغداد ج۲ ص۱۸۲-۱۸۱ )

وقال الشافعی رح مارايت اعلم بکتاب ا لله من محمدبن الحسن لوأشاءان اقول ان القرآن نزل بلغة محمدبن الحسن لقلته لفصاحته .(تاريخ بغدادج۲ ص۱۸۵ )

وقال الامام احمدبن حنبل اذاکان فی المسالة قول ثلاثة لم يسع مخالفتهم قيل من هم قال ابوحنيفة وابويوسف ومحمدبن الحسن فابوحنيفة ابصرالناس بالقياس وابويوسف ابصرالناس بالاثارومحمدبن الحسن ابصرالناس بالعربية .(الانساب للسمعانی ج۸ ص۲۰٤ )

نودايو څو مشت نمونه خروارد ايمه اقوال چې د امام محمد په فضل او علم او حفظ او ضبط او صدق او ديانت او مفسر او محدث او فقيه والي باندې عادلانه شاهدي نو داسې شخص ضعيف کيدل که قيامت نوي نو بل به څه وي .

**خلورویشتم اعتراض:** دامام ابو حنیفة دځوی حماد اولمسی اسماعیل باره کښ په میزان الاعتدال جلد اول کښ دی: اسماعیل بن حماد ابن دابی حنیفة نعمان بن ثابت الکوفی عن ابیه عن جده قال ابن عدی ثلثتهم ضعفاء انتهی (الجرح علی ابی حنیفة ص۱٤).

**الجواب:**

**اولا:** خودا دابن عدی لخوا جرحه ده او ابن عدی من المتعصبین نهایت سخت متعصب دی خصوصا په باره دامام ابو حنیفة کښ او د معتصب جرح قبوله نوي

**ثانیا:** دا جرحه غیر مفسره او مبهم ده قابل قبول نده له دې وجې نه خو حافظ ابن حجر په تقریب کښ قطعی فیصله او د جرحی مفسر الفاظ ندي ذکر کړي فقط د تکلموا کلمه یې ذکر کړی. (اسماعیل بن حماد بن ابی حنیفة الکوفی القاضی حفید الامام تکلموا فیه من التاسعة مات فی خلافة المامون). (تقریب)

او دا ظاهره چې د (تکلموا) لفظ د مبهمه جرحی دی اعتبار نه لري لکه دالاندې عبارت کښ د فلان ضعیف الفاظ د جرحی مبهمی دی. (ومن ذالک قولهم فلان ضعیف ولا یبینون وجه الضعف فهو جرح مطلق والاولی ان لا یقبل من متاخری المحدثین لانهم یجرحون بما لا یکون جرحًا (سعی مشکور).

حافظ ابن حجر په مقدمه د فتح الباری کښ د عبد الاعلی البصری په ترجمه کښ فرمایلي دي چې ابن سعد ویلي چې عبد الاعلی قوی ندی ما وویل چې دا جرح مردود ده غیر مقبوله ده.

(قال ابن سعد لم یکن بالقوی قلت هذا جرح مردود غیر مقبول) (مقدمة فتح الباری) نو فکر وکړه چې د لم یکن بالقوی او فلان ضعیف الفاظو باندې دیر راوی ضعف نه ثابتیږي حالانکه دا دواړه الفاظ د جرح په صورت کښ جارحین پیش کوی خو معلومیږي چې دا جرحه مبهم ده د دې ځخه کوم عیب نه راپیدا کیږي د راوي په حق کښ همدارنګه دابن عدی قول چې د دری واړو په حق کښ یې کړی نو دا دوی په باره کښ کوم ضعف او عیب نه راڅرګندوي او دده دا قول غلط او غیر مقبول دي.

(قلت قول ابن عدی ان کان مقبولاً فی اسماعیل وحماد اذا بین سبب الضعف لعدم اعتبار الجرح المبهم فهو غیر مقبول قطعًا فی ابی حنیفة وکذا کلام غیره ممن ضعفه کالدارقطنی وابن القطان کما حققه العینی فی مواضع من البنایة شرح الهدایة وابن الهمام فی فتح القدیر وغیرهما من المحققن (الفوائد البهیة ص ٤٦)

حافظ ذهبی په میزان الاعتدال کښ دابن عدی دقول نه وروسته دخطیب قول رانقل کړی دی چې دابن عدی دقول ردپکښې شوی دی

(وقال الخطیب وحدث عن عمروبن ذرومالک بن مغول وابن ابی ذئب وطائفة وعنه سهل بن عثمان العسکری وعبدالمؤمن بن علی الرازی وجماعة ولی قضاءالرصافة وهومن کبارالفقهاءقال محمدبن عبدا لله الانصاری ماولی من لدن عمرالی الیوم اعلم من اسماعیل بن حمادقیل ولاالحسن البصری قال ولاالحسن (میزان ج۱ ص۱۵۰)

یعنې اسماعیل فن الحدیث دعمروبن ذراو مالک بن مغول اوابن ذئب اویو جماعت محدثینو څخه حاصل کړی وه اوبیاده څخه دافن الحدیث سهل بن عثمان العسکری اوعبد المؤمن بن علی الرازی اویو جماعة نورو محدثینو حاصل کړی وه او اسماعیل په لویو کبار فقهاء کښ شمار شوی دی اودرصافه قاضی وه محمد بن عبدالله الانصاری وایې چې دعمربن عبدالعزیزدزمانی نه ترننه پورې داسماعیل بن حماد څخه لوی عالم څوک دقضاپه منصب ندی ګمارل شوی اومقررشوی چا وویل اوحسن بصری هم دهغه برابرنه وه هغه هغه ورته جواب کښ وویل اوحسن بصری هم دهغه برابرنه وه صرف دقضاوت لائق اسماعیل وه )نودمذکوره عبارت نه دامام اسماعیل بن حماد محدثیت او فقاهت او اعلمیت او افضلیت اظهرمن الشمس فی نصف النهاردی علاوه داچې حافظ ذهبی چې دابن عدی قول پخپل میزان کښ رانقل کړی ددې نه دالازمه نده چې د حافظ ذهبی په نیزهم اسماعیل بن حمادضعیف دی ولی ځکه حافظ په میزان کښ ډیرداسې ثقة اوجلیل القدرراویان دتضعیف په قطارکښ ذکرکړي دي دلین نومی اواقل تجریح له وجې چې هیڅ اعتبارورته نشته.

اوحافظ فرمایې داصرف پدې خاطرچې نوروحضرات پخپلو تصانیفو کښ ذکرکړی وه که چرته نورو مصنفینو حضراتو دا نوی ذکرکړي نومابه هیڅکله دوی دثقاهت لوجې پخپل کتاب کښ یادکړی نوی

(وفیه من تکلم فیه مع ثقته وجلالته بادنی لین وباقل تجریح فلولاابن عدی اوغیره من مؤلفی کتب الجرح ذکرواذالک الشخص لماذکرته لثقة (دیباچه میزان ج۱ ص۳).

اوحافظ ذهبی دیاداشت په طورباندې دخپل کتاب اختتام په دالاندې قول باندې کړی.

(وفیه خلق کماقدمناقی الخطبة من الثقات ذکرتهم للذب عنهم اولان الکلام فیهم غیر مؤثر (جلد ۳ ص۴۰ میزان الاعتدال) اوپه الفوائد البهیه کښ نورداسې الفاظ ده امام اسماعیل باره کښ دی چې (ولی

القضاء بالجانب الشرقى ببغدادوقضاءالبصرة والرقة وكان بصيراًبالقضـاءعارفابالاحكام والوقـائع والنـوازل صالحا ديناعابدًازاهداً صنف الجامع والردعلى القدرية وكتاب الارجـاءوعن الحلـوانى اسـماعيل نافلـة ابى حنيفة كان يختلف الى ابى يوسف يتفقه عليه ثم صار بحال يعرض عليه ومات شـبابًا)(الفوائدالبهيـة ص ٤٦) نوكه لگ فكراوتوجه وشى هغه امورته چې دمذكوره عباراتونه راڅرګنديږي نوهرشخص اوانسان چې صرف عقل هيولانى ولري نوهم به دافيصله وكړي چې دابن عدى جرح كلوم الخفاش لايضرالشمس)هيڅ اعتبار اوقبوليت نه لري تعجب پداسې متعصبينو باندې كه چرته داسې ايمة ضعيف اومجروح وي نوبيا به دائقه څوک وي افسوس صدهزارافسوس اودحمادبن ابى حنيفة رحمهماالله باره كې توجه وكړي لاندې عباراتو. (وبعض المتعصبين ضعفواحمادًامن قبل حفظه كماضعضوا اباه الامام لكن الصواب هوالتوثيق لايعرف له وجه فى قلة الضبط والحفظ وطعن المتعصبة غيرمقبول انتهى (تنسيق النظام ص١٣)

اوعلامة على القارى المكى فرمايي: هوحمادبن النعمان الامام ابن الامام تفقه على ابيه وافتى فى زمنه وتفقه عليه ابنه وهوفى طبقة ابى يوسف ومحمدوزفروالحسن بن زيادوكان الغالب عليه الورع قال الفضل بن دكين تقدم حمادبن النعمان الى شريک بن عبدفى شهادة فقال شريک وا لله انک لعفيف النظروالفرج وخيارالمسلمين (شرح مسندالامام)

(هزارتف ايسى عقل وسجهه پر)

## پنځه ويشتم اعتراض :

امام بخارى دفزارى داسې روايت كړى (كنت عندسفيان فنعى نعمان فقال الحمد لله ينقض الاسلام عروة عروة ماولدفى الاسلام اشام منه)يعني فزارى وايې زه دسفيان ثوري سره وم چې دامام ابوحنيفة دوفات خبراورسيدلو نوسفيان وويل الحمدلله ينقض الاسلام عروة عروة الخ يعني اسلام به حلقه حلقه اوكړي كړى مات شي خودامام ابوحنيفة په شان غټ بدبخته څوک په اسلام كې ندى پيداشوى.

## جواب:

دا روايت امام بخارى په تاريخ صغيرد نعيم بن حماد عن ابى اسحاق الفرازى نه روايت كړى دى بايد موږ دزړه دكومې داخبره وكړوچې دا روايت محض اوخالص جعلى اووضعى دى اوپه حضرت سفيان ثوري باندې صريح افترى اوبهتان دى

چې دسفیان په شان شخص دی دامام ابو حنیفة په وفات خبرید ودې معاذالله داسې الفاظ ووایې

داځکه چې نعیم بن حماد مروزی متوفی ۲۲۸ﻫ اګرچې دامام بخاری شیخ دی اودده په نیزمعتبرهم دی اودده څخه یې یو څورو ایات په خپل صحیح بخاری کې لیکلې لکن داکثرمحدثینو په نیزسخت مجروح دی اوضعف اونکارت څخه علاوه په وضع الاحادیث باندې هم ملزم دی اودامام صاحب سره دومره دشمني لري چې په هغه باندې په عیب لګولو کې دځان نه دروغو روایات جوړه وي اوبل چاته یې منسوبوي.

(قال الازدی کان نعیم یضع الحدیث فی تقویة السنة وحکایات مزدرة فی ثلب النعمان کلها کذب (میزان الاعتدال)یعني ابو الفتح ازدی مشهورحافظ موصلی وایې چې نعیم دځان نه احادیث جوړوي لپاره دتقویة السنة اودروغو قصی دځان نه دعیب ګیری لپاره په نعمان ابو حنیفة پسې جوړوي چې داټول په ټوله کذب اودروغ دی

وقال ابوداود کان عندنعیم بن حمادنحوعشرین حدیثًاعن النبی ﷺ لیس لهااصل (میزان الاعتدال) اونسائې په حقله داسې فرمایې: وقال النسائی ضعیف ونسبه ابوبشرالدولابی الی الوضع)مقدمة فتح الباری ص ۵۲۵).

اوپه تذکرة الحفاظ جلد ۲ صفحه ۷ کې دده پحقله داسې ویناده (وهو(ای نعیم)مع امامة منکرالحدیث وریسې په صفحه ۸ کې وقال ابوسعیدبن یونس روی احادیث مناکیرعن الثقات )اوپه اخرکې لیکلې چې .(وکان من اوعیة العلم ولایحتج به ) یعني اګرکه دعلم دلوښو څخه دی خوحجت نشي کیدای لاندې وضعي حدیث ته وګوره: (نعیم بن حمادثنااابن وهب ثناعمروبن الحارث عن سعیدبن ابی هلال عن مروان بن عثمان عن عمارة بن عامر عن ام الطفیل انهاسمعت النبیﷺ یقول رایت ربی فی احسن صورة شابًاموفرًارجلاه فی خضرعلیه نعلان من ذهب) (میزان الاعتدال)

نولګ غور اوفکر او تدبرپکاردی چې یو شخص دخدای رسول پورې دځان نه احادیث جوړوي اوافتراءورپورې کوي.

نو که داسې شخص دامام ابو حنیفة په عیب ګیری کې دځان نه ددرغو قصې جوړکړي نو هیڅ پروانه کوي اودهغه په شان کې څه نقصان نه راولي نودامام بخاری دامذکورروایت دحافظ ازدی په قول صریح دروغ اووضع ده اودسفیان ثوري داخبره چې دامام ابو حنیفة په وفات یې کړی سراسر افتراء اوبهتان دي بلکه سفیان

ثوري دهغه په باره کې داسې ويلي دي لاندې قول ته توجه وکړه . (قال سفيان الثوری کنابين يدی ابی حنيفة كالعصافيربين البازى وان اباحنيفة سيدالعلماء قلائدعقيان. يعني سفيان فرمايي چې مونږ دامام ابوحنيفة په مخکې داسې يولکه چنچنې د باز مرغه په مخکې او امام ابوحنيفة سيدالعلماء دی

روى الخطيب عن محمدبن المتشرقال كنت اختلف الى ابى حنيفة والى سفيان فاتى ابى حنيفة فيقول لى من اين جئت فاقول من عندسفيان فيقول لقدجئت من عندرجل لوان علقمة والاسود حضر الاحتاجاالى مثله فاتى سفيان فيقول من اين جئت فاقول من عندابى حنيفة فيقول لقدجئت من عندافقه اهل الارض .(تبيض الصحيفة ص ١٤)

دسفيان ثوري بل قول ته غوږشه بروايةابن المبارک (وكان (ابوحنيفة) وا لله شديدالاخذللعلم ذابّاعن المحارم لاياخذالا بماصح عنه عليه السلام شديدالمعرفة بالناسخ والمنسوخ وكان يطلب احاديث الثقات والاخيرمن فعل النبى ص ومادرک عامة علماءالكوفة فى اتباع الحق اخذبه وجعله دينه وقدشنع عليه قوم فسكتناعنهم بمانستغفرا لله تعالى منه بل قدكان مناللفظة بعداللفظة قال قلت ارجوا لله تعالى ان يغفرلک ذالک (الخيرات الحسان ص٣٢ وكتاب كردرى ج٢ ص١٠ )

بل روايت دعبدالله بن مبارک دسفيان څخه دامام ابوحنيفة په حقله (عن العسكرى عن ثابت الزاهدقال كان اذا اشكل على الثورى مسالة قال مايحسن جوابهاالامن حسدناه (اباحنيفة )ثم اصحابه ويقول ماقال فيه صاحبكم فيحفظ الجواب ثم يفتابه)

**شپږويشتم اعتراض:** خطيب بغدادی پخپل تاريخ کې ليکلي چې امام صاحب (العياذبالله )زنديق هم دی ؟

**اووه ويشتم اعتراض:** بل داچې خطيب بغدادی ويلی (ماولدفى الاسلام اضرمنه) يعني دامام صاحب نه بل غټ مضرپه اسلام کې ندی پيداشوی

**اته ويشتم اعتراض:** بل دتماموا احنافوبار ه کې اعتراض په لاندې عبارت کې نقل دی (ليس لهم فى الاسلام نصيب كماوردفى الحديث فافهمواولاتعجلوا (الجرح على ابى حنيفة ص ١٦-١٥)

**جواب**: ددين اسلام کم بخته دشمنان دداسې مضامين او روايت په ليکلو لکه دامذكور دستر لارښود او ستر مجتهد امام ابوحنيفة اودده دپيروانو باره بغيره دخپل عاقبت دخرابوالی څخه بل هيڅ ثمره نه لري اودوی په

شان کې به هیڅ فرق اونقص رانولي تولـه دنیاپدې قائله اوګویاده چې داسې مقتداءاسلام اوجامي الدین مفسرالکتاب محی السنة، محدث ،مجتهد ،فقیه ،زاهد ،عابد متورع خائف من الله نه څوک دده په دورکې تیرشوی دی اونه به ترقیامته انشاءالله راشي اودده فیض به ترابدالاباد پورې ددنیاپه مخ جارې وي اودده دمتبعین تعداد بفضل الله اوس داسلامی آبادی دوبرخوته قریب دی (اللهم زد فزد)

ناظرینوته دخطیب بغدادی درواياتومتعلق مفصل معلومات تیرشوی دی اواعاده به يې هسې تحصیل الحاصل وي ځکه دمحققینوپـه نیـزداهیڅ اعتبـارنلري اوهسـې لایعني خیـالات دي ددوی تـرک پکـاردی داطمنان قلب لپاره به ووایو .(کان ابوحنیفة یحسدوینسب الیه مالیس فیه ویختلف الیه مالایلیق به (کتاب العلم لابن عبدالبر)

حافظ ذهبی داسې وینا لیکلې ده : (قلت قداحسن شیخناابوالحجاج حیـث لـم یوردشـیئایلزم منـه التضعیف (تذهیب).

وقدجهل کثیرممن تعرضواالسهام الفضیعة وتحلوا بالصـفات القبیحـة القطیعـة علی ان یحطوامرتبـة هذاالامام الاعظم والحبرالمقدم الی قول له فماقدرواعلی ذالک ولایفیدکلامهم فیه (الخیرات الحسان )

وقال الحافظ عبدالعزیزبن ابی روادمن احب اباحنیفة فهوسنی ومن ابغضـه فهـو مبتـدع وفی روایـة بینناوبین الناس ابوحنیفة فمن احبه وتولاه علمناانه من اهل السنة ومن ابغضه علمناانه من اهل البدعة (الخیرات الحسان)

محترم کتوونکې اولوستونکې دي لک فکراوغوروکړی چې څومره ایمه ؤ اومحدثینودامام ابوحنیفة توثیـق اوتعریفـات کـړی اوپـه سـلکونوکتابونه خـالص دده پـه محامـداومناقب لیکلـې شـوي دي اوپـه زرګونوشاګردان لري اوپه سلکونوکتابونودده مذهب دنیاته پیش کړی اوپه لاکونومقلدین لري چې په دوی کې لوی مجتهدین علماصلحاشهداوغیره قسم خلک هم موجوددي ددې سره سره بیاسپک دل ازاده خلک دده په حق داسې بی هوده ویناوي کوي اودایې هم ویلي چې امام ابوحنیفة دزندیقیت اوکافریت څخه دوه ځله توبه ګارشوی (نعوذبالله من ذالک)

محترم لوستونکي او ناظرين حضرات دی لاندې واقعې ته عميق نظر او توجه وکړي او مطالعه دې کړی چې د زندیقیت او کافریت اعتراض نه پرده او چتوي او دا به معلومه شي چې اصل حقیقت څه شی دی او معترضینو متعصبینو ترینه کوم صورت جوړ کړي (هداهم الله تع)

اخبرنا الامام الاجل رکن الدين ابوالفضل عبدالرحمن بن محمدالکرمانی حدثنا القاضی الامام ابوبکر عتيق بن داودالیمانی قال حکی ان الخوارج لماظهرواعلی الکوفة اخذواباحنیفة فقیل لهم هذاشیخهم والخوارج یعتقدون تکفیرمن خالفهم فقالواتب یاشیخ من الکفرفقال انا التائب من کل کفرفخلواعنه فلماولی قیل لهم انه تاب من الکفروانمایعنی به ماانتم علیه فاسترجعوه فقال راسهم یاشیخ انماتبت من الکفروتعنی به مانحن علیه فقال ابوحنيفة ابظن تقول هذاام بعلم فقال بظن فقال ان الله تعالی یقول ان بعض الظن اثم وهذه خطيئة منک وکل خطيئة عندک کفرفتب انت اولاً من الکفر فقال صدقت یاشیخ اناتائب من الکفرفتب انت ایضاً من الکفر فقال ابوحنيفة اناتائب الی الله تعالی من کل کفرفخلواعنه فلهذاقال خصماءاستتب ابوحنيفة من الکفرمرتين فلبسواعلی الناس وانمایعنون به استتابة الخوارج (کتاب المناقب للموفق ج ۱ص۱۷۷)

بس دا دې واقعې په بنا باندې د امام صاحب دشمنانو ویلي چې امام ابوحنیفة دوه ځله توبه کار شوي د کفر نه دعوام دو که کولو لپاره او دهغوی دګمراه کولو لپاره حالانکه دا الفاظ امام ابوحنیفة د خوارجو په جواب کې پیش کړی وه نو دا د خلکو په ستر ګو کې په رڼا ورځ شکی او خاوری غورزول دي او که بل څه او هغه خبره چې خطيب ته منسوب ده چې (ماولدفی الاسلام اضرمنه) نو دې خبرې حواله معترض نده ورکړی چې خطيب دا خبره په کوم کتاب کې او د چا څخه روایت کړی ده نو دا هسې د سرنه تر پښو پورې بی ځایه او بې اصله او بی دلیله کلمات په معرض الاستدلال کې پیش کول د غټې حماقت اظهار دی

او د خطيب لخوا نه د امام صاحب مدح او منقبت په تبييض الصحيفة وغيره د مناقب په کتابو کې مفصلا درج دي يو د هغو څخه د عبدالله بن ابی داود الخريبی روايت دی دا د صحاح سته په رواتو کې شامل دی (روی الخطيب عن محمدبن سعدالکاتب قال سمعت عبد الله بن داودالخريبی یقول یجب علی اهل الاسلام ان یدعوا الله لابی حنيفة فی صلاتهم قال وذکرحفظه عليهم السنن والفقه (تبييض الصحيفة ص ١٤)

يعني محمدبن سعدچې د مسلم اوسنن اربعه په شيوخ کې دی فرمايي چې ما دعبدالله بن داود الخريبی څخه اوريدلي هغه به ويل چې په تمام اهل اسلام باندې فرض دی چې پخپلو مونځونو کې امام ابو حنيفة رحمه الله تعالى ته دعا مو کړي او دا خبره يې هم ياده کړه چې امام ابو حنيفة رحمه الله اهل اسلام ته حديث او فقه په پوره طريقې سره محفوظ کړي. (وروى الخطيب عن ابن ابى داودقال ان الناس فى ابى حنيفة حاسدوجاهل واحسنهم عندى حالاً الجاهل (تبيض الصحيفة ص ۱۸)

وكذاعن بشربن الحارث قال ابن ابى داوديقول لايتكلم فى ابى حنيفة الارجلان اماحاسدلعلمه واماجاهل بالعلم لايعرف قدرعلمه )(تببيض الصحفة ص ۲۰)

وروى الخطيب عن اسرائيل بن يونس انه قال نعم الرجل النعمان ماكان احفظ لكل حديث فيه فقه واشدفحصه وعلمه بمافيه من الفقه منه ـ(شامى ج ۱ص ۴۲)

وروى الخطيب عن محمدبن المنتشرقال كنت اختلف الى ابى حنيفة والى سفيان فاتى ابى حنيفة فيقول لى من اين جئت فاقول من عندسفيان فيقول جئت من عندرجل لوان علقمة والاسود حضرـ الاحتاجاالى مثله فاتى سفيان فيقول من اين جئت فاقول من عندابى حنيفة فيقول لقدجئت من عندا فقه اهل الارض (تبيض الصجيفة ص۱۴ ورى ابوعبد الله الحسين بن محمدالبلخى عن عبدالرزاق قال كنت عندمعمدواتاه ابن المبارك فسمعت معمداًيقول ماأعرف رجلاً يحسن التكلم فى الفقه ويسعه ان يقبس ويشرح الحديث فى الفقه احسن معرفة من ابى حنيفة ولااشفق على نفسه من ان يدخل فى دين الله شيئاً من الشک مثل ابى حنيفة. (تبيض الصحيفة ص۲۰) نو داسې مضامين او کلمات د امام ابوحنيفة په حق کې سوا ی د حاسو يا جاهل نه بل هيڅوک نه بيانوی او نه ئی ليکي.

او خطيب د خپلو مذکوره رواياتو ما د حو په خلاف د امام صاحب په مذمت کې داسې کلمات چې ما ولد فی الاسلام اضر منه کله وايي: ممکن ده چې دا کلمات به کوم حاسد شرير د کوم بزرک په نسبت کې ويلي وي ځکه اکثره حساد د دين د بزرګانو په نسبت کې همداسې بی هوده او دال ازاره کلمات ليکې د خپل ځان د خوشحال کولو لپاره لکه څرنګه چې يو شرير جاهل حاسد د امام شافعی رحمه الله په مذمت کې يو وضعي حديث روايت کړی دی: عن انس قال قال رسول الله ﷺ يكون فى امتى رجل يقال له محمد بن ادريس اضر على امتى من ابليس. (العياذبا لله) (شرح سفرالسعادت صفحه ۵۲۳ للشيخ عبدالحق المحدث الدهلوى)

او بالفرض والتقدیر که داعبارت دخطیب څخه ثابت هم شي نو دادخطیب څخه څه تعجب پیدا کوونکې امرندی ولي څکه دخطیب عادت دی کلام کول په ایمة ووکې لپاره ددې چې په ایمه ؤوکې دطعن نشانې اونبی راپیداکړي (ولیس العجب من الخطیب بانه یطعن فی جماعة من العلماء(مراة الزمان)

ولاعبرة لکلام بعض المتعصبین فی حق الامام ابی یوسف (الی ان قال) بل کلام من یطعن فی هذاالامام عندالمحققین یشبه الهذیانات (میزان الکبری للشعرانی ص ۸۱)

دخطیب دقدح مذمت وینـاوی په حق دامام صاحب کې یې چې کړي دی ددې په ردباندې ډیرو علماء مستقل کتابونه لیکلي دی تبییض الصحفة کې داسې عنوان دی (اشهرمن ردعلی الخطیب من العلماء) ددې عنوان لاندې دعلماء کتابونه اودرد اقوال هغه رانقل کړی دصفحه ۴۶ نه تر صفحه ۵۲ پورې خواهشمند حضرات دی هلته رجوع وکړي.

**نهویشتم اعتراض:** ډیرداسې خلک چې مذهب حنفي پریښی اوبل مذهب یې اختیارکړی ددې سره ددې نه چې داخلک دامام صاحب دمزی دارومسائلو څخه واقف هم وودااختصارله وجهی څخه مونږدهغه کسانو چې حنفي مذهب کې ترک کړی نومونو باندې تصریح ونه کړه.

**جواب:** داهسې دکج فهمی اوبی عقلي اعتراض دی داسې به څوک ونه ښایې چې یو کس حنفي مذهب پریښی وي اوبل مذهب کې شامل شوی وي

داسې به شوی وي چې مذهب یې پریښی وي اوغیرمقلدترینه جوړشوی وي خوداسې ندې شوي چې حنفي مذهب ئې پریښې وي اوبل مذهب کې داخل شوی وي بلکې داسې شوي دي چې بل مذهب ئې پریښې وي اوحنفي مذهب کې داخل شوی وي اوناظرین دی توجه وکړي یو څواشخاصوته چې دنورو مذاهبو څخه راغلی وي اوحنفی مذهب کې داخل شوی وي علی طورمشت نمونه خروارد امام ابوجعفر طحاوي اولاشافعی المذهب وه بیایې حنفي المذهب اختیارکړو (کان تلمیذالمزنی فانتقل من مذهبه الی مذهب ابی حنیفة ) الانساب للسمعانی)

همدارنګه په مراة الجنان اوکتاب الاشاداوتاریخ ابن خلکان وغیره کې هم دامضمون بیان شوی دي

دوهم امام احمدبن محمدبن محمدبن حسن تقی شمنی اولاًمالکي المذهب وو بیایې حنفي مذهب اختیار کړو (ضوء لامع للسخاوی وفوائدبهیة ص۲۸ )

(۳) دریم علامۃ عبد الواحد بن علی العکبری اول حنبلی المذهب وه بیا یې حنفي مذهب اختیار کړو.
وکان حنبلیا فصار حنفیًا. [بغیة الوعاة للسیوطی وفوائد بهیة ص۱۱۳ وطبقات الکفوی].

(۴) څلورم علامة یوسف بن فزعلی البغدادی سبط ابن الجوزی اولاً حنبلی المذهب وه بیا یې حنفی مذهب اختیار کړو (طبقات کفوی و فوائد بهیة ص۲۳۰ علامة الوسی صاحب تفسیر روح المعانی اول شافعی المذهب وه بیا حنفي شو الغرض د نمونی په طور مود څو رعلماء چې د خپل وقت امامان معرفی شوی ذکر وکړو او که چرته د طبقاتو او رجالو کتب مطالعه کړی شي نور ډیر داسې ایمه به درته په نظر راشي چې هغوی نور مذاهب ترک کړي او حنفي مذهب یې اختیار کړی

**دیرشم اعتراض:**

علامة بهیقی په معرفة السنن والاثار کې لیکلي دي چې (لم یتابعهما علیه إلا من هو اضعف منهما) یعني په دغه حدیث کې د دغه دواړو متابعت صرف او صرف یو داسې شخص (ابوحنیفة) کړی چې د دې دواړو نه زیات ضعیف دی.

**جواب:**

**اولاً:** دا جرحه مبهم ده د قاعدة داصول الحدیث نه خلاف ده غیر مقبوله ده کما مر مرارًا.

**ثانیًا:** که چرته علامة بیهقي امام صاحب ته د دغه مرفوع حدیث چې (من کان له الامام فقرائة الامام له قراءة) په روایت کولو باندې ضعیف ویلي وي نو دا محض سپین دروغ دي ځکه دا حدیث خو یوازې امام صاحب ندی روایت کړی بلکه نورو ډیرو ثقاتو راویانو لکه سفیان ثوری او شریک هم په صحیح سند سره مرفوعًا روایت کړی دی او که د ضعف کوم بله وجه وي نو د بیهقي مقلدین د مهربانې وکړي را په ګوته دې کړي او د بیهقي په کتاب کې دې صراحت سره و ښائي

**ثالثاً:** بیهقي د متأخرینو په قطار کې حساب شوي او شافعی المذهب و، او صرف د امام شافعی رحمه الله د دلائلو جمع کوونکې و، (بستان المحدثین ص۵۱) در تصانیف خود نصرت او نموده و بتائید و نصرت او رواج این مذهب دو بالا گشته و هکذا (فی الطبقات الشافعیة ج۳ ص٤)

علامة ابن خلکان په خپل تاریخ ج۱ ص۲۹ کې لیکلي دي چې: وسنن نسائی وجامع ترمذی وسنن ابن ماجه نزداونبودوبراحادیث این سه کتاب کماینبغی اطلاع نـدارد. یعنې امام بیهقي سره د محدث والي دده سره د حدیثو دیر کتابونه نه وه لکه نسائی ترمذی ابن ماجه وغیره او د دغه کتابونو د احادیثونه واقف هم نه وو (بستان المحدثین ص۵۱) وقال الذهبی دائرته فی الحدیث لیست کبیرةً (الطبقات الشافعیة ج ۳ص٤)

یعنې علامة ذهبی فرمایې چې بیهقي د علم حدیث دائره وسیعه او پراخه نه وه باقي د بیهقي مسامحات او چشم پوشیاني که څوک ګوري نو الجوهر النقی فی الرد علی البیهقي دي وګوري نو نقط د دغه مسامحاتو له وجې هم د بیهقي جرحه قابل قبول نه ده.

**یو دیرشم د ألباني اعتراض:** په معاصره علماؤ کې د نصیر الدین البانی څخه هم د امام اعظم ابو حنیفة په حق کې یو غلطي یا اشتباه شوی ده

البانی پخپل کتاب (سلسلة الاحادیث الضعیفة) کې د دغه حدیث (اذاطلع النجم رفعت العاهة عن اهل کل بلد) لاندې داسې لیکلي دي (وهذا اسنادرجاله ثقات الاان اباحنیفة رح علی جلالته فی الفقه الخ) بیائې لیکلي (ولذالک لم یزدالحافظ ابن حجر فی التقریب علی قوله فی ترجمته (فقیه مشهور)(سلسلة الاحادیث الضعیفة ج ۱ص۷۸-۷۷).

**جواب اولاً:** خو دا جرحه مبهم ده غیر مقبوله ده کمامرّ مرارًا.

**ثانیاً:** که د حافظ ابن حجر په نیز امام صاحب ضعیف وائې نو ولې ئې د هغه په ضعف باندې تصریح نه ده کړی چې یواځې ئې په دغه خبره اکتفاء کړیده چې یو مشهور فقهي وو د دې سره سره چې حافظ ابن حجر عسقلانی د خپل کتاب التقریب په مقدمه کې لیکلي : انی احکم علی کل شخص منهم وبحکم یشمل اصح ماقیل فیه واعدل ماوصف به بألخص عبارة وألخص اشارة. (تقریب التهذیب ج ۱ص۲٤) یعنې زه دد ې نه په یو شخص په داسې حکم باندې حکم کوم چې د دوی په هکله هغه اصح قول دی او تعدیل کوم چې د دوی په کوم سره چې د وی ستائل شوی وي

**ثالثاً:** داچې د مصطلح الحدیث په کوم کتاب دا خبره ذکر ده چې (فقیه مشهور) د راوي پر ضعف باندې دلالت کوي؟ آیا کوم راوي چې په فقاهت شهرت ولري دا د هغه پر ضعف دلالت کوي او که د هغه په زیات علم او شهرت او معرفت باندې دلالت کوي ؟ آیا د چا سره چې د فقیه لفظ استعمال شي دا د هغه پر زیات خیریت

او بهترو الی دلالت نه کوي؟ څنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي (من یرد الله بـه خیراً یفقهـه فی الدین) متفق علیه. فلهذا دابن حجر عسقلانی د قول څخه دا مطلب اخیستل ظلم او زیاتی دی.

**رابعًا:** په دې کې شک نشته چې شیخ البانی دا حادیثو ترېو حده خدمت کړی دی او مرنږیې په دې خدمت دنیت پر صحیح والي هم شک نلرو خو سوال دادی چې ایا شیخ البانی په یو ازی سر د دې لوی خدمت جوګه وو او که نه دومره لوی خدمت ته په پام سره د دیرو علماء نظر دادی چې البانی د دې کار پوره لائق او ورنـه وو (فتاوی المعاصرة ج۱ ص ۱۱۰انعام الباری ج٤ ص٨٦].

او د شیخ البانی څخه د احادیث په تصحیح او تضعیف کې ډیر زیات اشتباهات او خطاګانی شوي دي داسې چې دهغه په تالیفاتو کې ډیر تناقضات موجود دي په یوه ځای کې ئې یو حدیث ته صحیح خو بل ځای کې هم دغه حدیث ته ضعیف حتی موضوعی ویلي دي

او یا ئې په یو کتاب کې صحیح بل کتاب کې ئې ضعیف ګڼلی دی او پدغه موضوع باندې مستقل کتابونه علماوو لیکلي لکه د شیخ حسن بن علی السقاف کتاب (تناقضات البانی) په نوم او د شیخ محمود سعید کتاب (تنبیـه المسـلم الی تعـدی الألبـانی علی صـحیح مسـلم) په نوم باندې نو په همدې خاطر د البانی تصحیح او تضعیف ته اعتبار نشته.

**دوه دېرشم اعتراض :** د قلت روایت حدیث چې ابن خلدون د بعض الناس نه نقل کړی چې امام صاحب ته ټول اولس ۱۷ حدیث یاد وه او ابن عدی په الکامل کې لیکلي چې درې سو حدیث ترې نه نقل دي او بعضې وایې پنځه سوه ۵۰۰، او بعضې وایې چې اوسوه ۷۰۰، او بعضې وایې شپږسوه شپږشپیته او بعضې وایي یونیم سل (۱۵۰) ترینه نقل شوي دي.

**اول جواب منعی :** دا خبره انتهایې بي بناده افتراده هیڅ اصل او حقیقت نلري په علم حدیث کې د امام صاحب جلالت قدر یو مسلم او ناقابل انکار حقیقت دی ځکه امام صاحب بالاتفاق مجتهد دی او د مجتهد په شروطو کې لازمي شرط دادی چې مجتهد لره به کامل بصیرت او پوهه او عبور تام په شپږو اشیاء کې حاصل وي.

**قران، حدیث، اثار، تاریخ، لغت، قیاس.**

که چیرته امام صاحب کامل العلم في الحدیث نوی نو څرنګه مجتهد شوسره ددې چې دده په علم بالحدیث باندې لویولویو علماء اعترافونه کړي دي د مکي ابن ابراهیم دامام صاحب شاګرد مخکې تذکرة شوې دهٔ دا امام بخاري قابل فخر استاذ دامام صاحب په باره کې داسې وایې (ان أبا حنیفة کان اماما).

حضرت امام ابوداود رحمه الله فرمایي (کان ابوحنیفة اعلم اهل زمانه) او دا ظاهره ده چې په دغه زمانه کې دعلم اطلاق په علم حدیث او علم فقه باندې کیدلو (تذکرة الحفاظ ج۱ص ۱٦۰)

مشهور محدث یزید بن هارون رحمه الله فرمایې (ادرکت الفا...الخ) ما زرشیوخ ولیدل او احادیث مې ترینه ولیکل لیکن دامام صاحب نه مې لوی فقیه او لوی پرهیزګار او لوی عالم ونه لیدلو. (تـذکرة الحفاظ ج۱ص ۱۹۵)

دیحی بن نصر رحمه الله وینا ده چې زه یوځل دامام صاحب ملاقات ته ورغلم، کمره یې د کتابونو نه ډکه وه ما ورته وویل دا څه دي هغه جواب راکړچې دا د حدیثو کتابونه دي. (عقود الجواهر المنیفة لعلامة زبیری)

شیخ محدث عبدالحق الدهلوي لیکلي په شرح سفر السعادت کې چې امام صاحب سره زیات صندقونه وو چې په هغې کې د احادیثو مسموع و ذخیره محفوظه وه دامام حسن بن زیاد بیان دی چې امام صاحب څلور زره احادیث روایت کړي دي دوه زره یې د حماد نه او دوه زره یې د نورو مشائخ نه روایت کړي دي. (موفـق بـن احمد المکي ج۱ ص ۹٦).

امام ابویوسف ددرې لاکه احادیث حافظ وو او پنځوس زره د هغه یواځې موضوعي احادیث یاد وه نو دده دشیخ امام ابوحنیفة رحمه الله به په حدیثو کې کوم مقام او قدر وي

وکیع بن جراح رحمه الله دامام ابوحنیفه رحمه الله څخه نهه سوه (۹۰۰) احادیث روایت کړي دي. (درس ترمذی ج۱ص ۹۵) د تاریخ او سیره په کتابونو کې دامام صاحب ډیری زیاتي حیرانونکې واقعات شته یو به یې ذکر کړو ابوعبدالله الصیمری روایت دی چې عبدالله بن عمر ویلي چې مونږ دامام اعمش سره ناست وو دیوڅو مسائلو پوښتنه تري وشوه امام اعمش ابوحنیفة رحمه الله ته وویل چې دغه مسائلو کې ته څه وایې هغه جوابونه ورکړل امام اعمش رحمه الله ورته وویل چې دغه جوابونه دې د کوم ځایه کړل؟

امام صاحب وفرمایل (انت حدثتنا عن ابي صالح عن ابي هریرة ﷺ عن رسول الله ﷺ بکذا او انت حدثتنا عن فلان الصحابي عن رسول الله ﷺ بکذا) او داسې یو څو احادیث یې په دغه طریقه ذکر کړل.

امام اعمش رحمه الله ورته وويل بس کافي دی درته مادرته په سلوورځوکې بيان کړي وو اوتا په يو ساعة کې دغه ټول بيان کړه بيا يې وفرمايل چې ای دفقهاوو ټوليه تاسو طبيبان اومتخصصين يې او مونږ دوا نروشان يو ، اوته يودا سې سړی يې چې تا نيوکه کړې ده په دواړو باندې هم طبيب يعنې فقيه يې او هم دوافروش يعنې محدث يې .( عقودالجمان ص ٢٥٧) اوددې نه علاوه مخکې ذکرشو چې دامام صاحب څلورزره استاذان وو نوچې دهراستاذ څخه يې يويو حديث زده کړی وي هم څلورزره احاديث شوو سره ددينه چې هغه وخت حفاظ حديث هم زيات وه.

او وروسته پکې کمبوت راغلی اودامام بخاري زراستاذان دي او احاديث ورته شپږلاکه يادوه چې ده ترينه دصحيح بخاري احاديث تاليف کړي دي او په دغه وخت کې حفاظ حديث کم پيدا کيدل او امام بخاري دامام صاحب دشاګردانو شاګرددی نو هرانسان بايد دخپل معنوي پيغمبرنه چې عقل دی پوښتنه وکړي چې دامام صاحب به څومره احاديث يادوو.

ابن ګرامة وايي چې مونږدوکيع بن الجراح سره يوه ورځ وو يوسړي وويل امام ابوحنيفة رحمه الله خطاءشوی حضرت وکيع رحمه الله وويل ابوحنيفة څرنګه په خطائي قادرشو په داسې حال کې چې دامام ابويوسف اوامام زفر او امام محمد غوندې خلک ورسره دي په قياس او اجتهاد کې .

اوديحی بن زکريا او حفص بن غياث او حبان ومندل دواړه دعلی ځامن داسې خلق ورسره دي په حفظ الحديث او معرفة الحديث کې.

اوداقاسم بن معن بن عبدالرحمن بن مسعود غوندې کسان ورسره دی په معرفة دعربيت اولغت کې.
اودداود بن نصير الطايي او فضل بن عياض غوندی کسان ورسره دی په زهد اوتقوی کې ، نوچاسره چې داسې شاګردان او اهل مجلس وي ، نو څنګه خطاء کيږي که چيرته خطاءشوی وي نودوی به بيرته حق اوصواب ته واپس کړی وي، بيا وکيع وويل هرڅوک چې دامام صاحب په حق کې داسې ويناکوي هغه به پشان دڅناوروي بلکې دهغوی نه به هم زيات بې لارې او ګمراه وي .( عقودالجمان ص ١٥١)

امام صاحب ويلي دي چې ماپنځه حديث دپنځه لاکه حديثونه راجمعه کړيدی : (قـال الامـام والتاسع عشران تعمل بخمسة احاديث جمعتهامن خمسة ماة الف حديث .

(الف) انماالاعمال بالنيات وانمالکل امرءمانوي .

(ب) ومن حسن اسلام المرء تركه مالايعنيه .

(ج) لا يؤمن احدكم حتي يحب لاخيه مايحب لنفسه .

(د) ان الحلال بين وان الحرام بين وبينهمامشتبهات لا يعلمهن كثيرمن النـاس فمـن اتـق الشبهات استبرءلدينه وعرضه ومن وقع في المشبهات وقع في الحرام كراع يرعي حول الحمي يوشک ان يقع فيه الاوان لکل ملک حمي الاوان حمي الله محارمه الاوان في الجسد مضغة اذاصلحت صـلح الجسـدكله واذافسـدت فسدالجسد كله وهي القلب .

(ه) المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده. (وصاياامام اعظم ص ٦٥) دپښتو ترجمه کې ص: ۴۳ ده، نو دامام صاحب په صداقت اورشتياوالي باندې تولـه دنياموافقه ده نوچې پنځه لاکه په پنځو کې جمعه کوي خو پنځه لاکه به ورتـه خامخا يادوو طحاوي روايت کړی دامام ابويوسف نه چې امام ابوحنيفة به فرمايل (لاينبغي لرجل ان يحدث الابماحفظ يوم سمعه الي يوم يحدث به اوامام ابويوسف ويلي : په هرشي کې چې کله ما دامام ابوحنيفة رحمه الله څخه مخالفت کړی دی ،بيا وروسته ديرسوچ او فکر اوتدبر نه ماته ثابته شوې چې دهغه قول اوفعل په آخرة کې دنجاة لويه ذريعه ده او هرکله چې به مايو حديث طرف تـه توجه اوميلان وکړو نو دامام صاحب بصيرت فی الحديث الصحيح به زمانه زيات وو . ( عقودالجمان ص ٢٥٦)

اوکه دغه مخکې اعتراض دقلت روايت الحديث تسليم کړو نو بيا د امام صاحب قلت روايت دڅو وجوهو نه وو چې لږ وروسته به يې بيانکړو بعضې جاهلان داهم وايي چې دامام صـاحب څخه په صحاح سته وو کې روايت نشته واقعيت چې په صحاح سته وو کې يواځې دامام ابوحنيفة نه بلکې دامام شافعي نه هم کوم حديث روايت شوی نه دی بلکه دامام احمدبن حنبل نه چې دامـام بخاري خاص استاذدی دهغه احاديث هم په بخاري کې درې ځايه راغلي دي اودامـام مالک نه هم يو څو ځايه راغلي دي نو ددې وجه دانه ده چې معاذالله دغه حضرات په علم حديث کې کمزوري وو بلکې ددې څو وجهې دي .

**اوله وجه داده :** چې دوی فقهاءوو اودهغوی اصل مشغله داحکامو او مسائلو استنباط اوبيانول وو لکه څرنګه چې لوی لوی صحابه کرام لکه خلفاء راشدين مشغول وو په عمل باندې دروايت کولو نه نو دابوبکر صديق ﷺ نه (١۴٢) حديث روايت دي اوحضرت عمر ﷺ غالبا (۵٣٩) دي او دحضرت عثمان ﷺ نه (١۴۶) دي او دحضـرت علـی ﷺ (۵٨۶) اودحضرت عبـدالله بـن مسـعود ﷺ (٨۴٨) اودحضـرت ابـوهريره ﷺ نه

(۵۳۷۴)پنځه زره درې سوه څلور اويا دي نو دې نه خودا نه لازميږي چې د حضرت ابو هريرةؓ او ابن مسعودؓ رتبه به په خلفاء راشدينو باندې اوچته وي.

**دوهمه وجه داده** : چې دغه حضرات امامان مجتهدين وو او دهغوى په سلهاوو شاګردان او متبعين موجود وو لهذا اصحاب د صحاح سته بنه په دې باندې پوهيدل چې دهغوى علوم به دهغوى د شاګردانو په ذريعه محفوظ پاتې شي چنانچه هغوى دهغو استاذانو حضراتو دعلومو حفاظت وکړو چې دهغوى د ضائع کيدو انديښنه وه.

**دريمه وجه داده** : شدت شرائط يعني امام ابو حنيفة رحمه الله په روايت حديث کې ډير زيات محتاط وو دهغه شرائط د صحت الحديث او د تحمل او روايت الحديث ډير زيات سخت او قوي وه لکه ديحي بن معين قول دی کان ابو حنيفة لايحدث الابما حفظ اي من يوم سمع الي يوم يحدث او عبد الوهاب شعراني فرمايي چې د امام صاحب چې کوم حديث نه استدلال کوي دهغه لپاره يې دا شرط لګولی چې په خيار او اتقياء تابعينو کې به يو جماعت د حضراتو صحابه وو نه مسلسل نقل کړی وي او په سند کې به يې متهم بالکذب نوي. (الميزان الکبري ج ۱ص ۶۲)

**اوڅلورمه وجه** حديث مرفوع بصورت مسئلة فقهية: يعني بعض مرتبه محدثين بنظر احتياط حديث مرفوع په ځای د دې چې نبي کريم ﷺ ته منسوب کړی خپل قول يې وګرځوي د فقهي مسئلي په طور يې بيان کړی دې لپاره که په دغه نقل الرواة کې څه خلل وي چې نبي کريم ﷺ ته منسوب نشي نو امام صاحب دا طريقه اختيار کړی نو د امام صاحب چونکه مشغله روايت حديث نوه بلکې استنباط احکام وه نو دده زياتره رويات په حيثيت حديث ندی باقې بلکې په حيثيت د مسائل فقيه باقې دی

او مخکې د ابن خلدون اعتراض داهسې يو بيکاره سپين دروغ دی په اصل کې ابن خلدون د امام اعظم رحمه الله څخه دومره لری دی چې هغه ته د حقيقت حال علم نه وو شوی حقيقت خو دا دی کوم چې علامة زاهد الکوثري د شروط الائمة الخمسة للحازمي په حاشيه کې په (۵۰صفحه کې کړی دی چې په حقيقت کې د امام ابو حنيفة مروج احاديث هم پداسې اولسو دفترنو کې دي په کومو کې چې ترتولو وړوکی دفترهم د سنن شافعي بروايت الطحاوي او مسند شافعي بروايت ابي العباس الاصم څخه لوی دی حال دا چې د امام شافعي

داحاديثو معيارپه هم دغودواړوكتابونوباندې دى اودامام صاحب ديوشاگردقول دى چې دامام صاحب په تصانيفوكې اويازره (۷۰۰۰۰)احاديث موندل كيږي ( درس ترمذي ج۱ص ۹۸)

اشرف علي تهانوي صاحب دمذكوراعتراض په حق كې داسې وينا كړې ده چې زه خپلودوستانوته وايم چې تاسودابن خالدون يادابن خلكان ددې قول ترديدولې كوي ددينه خوځمونږدامام صاحب منقبت اوعزت معلوميږي نه نقصان ځكه چې دامام صاحب مجتهد كيدل خوټولوته مسلم دى ددينه څوك انكارنكوي؟ اوانكار څنگه كيدى شي؟ ځكه چې په هرباب اوهرمسئله كې دامام صاحب اقوال شته، اومخالفين يې هم اكثراختلاف ذكركوي، ددينه معلومه شوه چې مخالفين اگرچې امام صاحب محدث نه مني خومجتهديې مني ،ددې نـه عـلاوه پـه صـراحـت سـره دامـام شـافعي وغيـره امامـانو وارثانودابوحنيفـة دمجتهداوفقيـه كيدلو اقراركړى دى ،اونه صرف دمجتهد كيدلو بلكه ټول فقها په فقه كې اولاددابوحنيفة كيدل مني، نوچې دايو مقدمه واخستلى شي اودې سره بله مقدمه دااولگولى شي چې امام صاحب ته ټول اولس حديث رسيدلي وو اوس چې دواړه مقدمې يوځاى كړى نوددينه داننيجه راوځي چې دامام صاحب پوهه دومره اوچته وه چې هغوى صرف داولس احاديثو نه دومره مسائل راوويستل چې نوروامامانو دلكهونو احاديثو څخه نه دي را ايستلي نومعلومه شوه چې هغه ديرلوى مجتهدوونوزمونږملگري احناف دابن خلدون نه هسې خفه كيږي پدې باندې خوهغه دامام صاحب دومره لويه مدحه كړى ده چې دهغې څه حدنشته دى.

خيرداخويولطيفه وه ددې قول دغلط كيدلوخوپه خپله ټول محدثين هم اقراركوي خودې كې شك نشته دى په درايت كې دوى په درجه كې دومره اوچت دى چې كه انصاف سره اوكتلى شي نوداسې معلوميږي چې حديث اوقران خوټولواوويلواوويلوستلوخوپوه پرې احناف شول. ( اشرف الجواب دويمه حصه ص ۱۸۳-۱۸۴مطبوعه مكتبه فاروقيه پشاور)

اخري ويناداچې كه چيرته امام ابوحنيفه رحمه الله عالم بالحديث نوى اوصاحب دفقه غيرما خوذمن الكتاب والسنة وي نو الامام الجليل يحى بن معين امام الجرح والتعديل من غلات الحنفية به دامام صاحب تقليد نكولوچې دده په حق كې امام احمدبن حنبل وايي چې كوم حديث چې يحى بن معين ته نومعلوم هغه حديث ندى اونه ثابت دى.

علامه عجلي وايي : چې غير د يحيى بن معين رحمه الله نه زيات عارف بالحديث الله پاک هيڅوک نه دي ندي پيدا کړی. (تعليق علي تبييض الصحيفة ص ۱۱۰).

اعتراض د قلة عربيت قاضي ابن خلکان په وفيات الاعيان کې د امام صاحب په حق کې داسې کړی دی چې (ولم يكن يعاب بشي سوى قلة العربية).

جواب : ددې ترديد خپله ابن خلکان کړی هغه ويلی ددې اعتراض بنياد صرف يو واقعه ده چې يو ځل امام صاحب مسجد حرام کې تشريف فرما شو هلته يو مشهور نحوی ابو عمرو ابن العلاء المازني البصری القاری داپوښتنه ترې وکړه که چيرته يو سړی بل په تيګه (کاڼې) باندې ووژلی او مړشي نو قصاص پرې شته ؟

امام صاحب ورته وويل قصاص پرې نشته (ولورماه باباقبيس) په ځای د (بابي قبيس) نو دغه نحوی داخبره مشهوره کړه چې امام صاحب عربيت کې مهارت نه لري ليکن دا اعتراض بې ځايه دی ځکه چې بعضې قبائل دعربو او کوفين د اسما سته مکبرة اعراب په درې واړو حالاتو کې په الف وايې نو دامام صاحب عربيت ډېر قوي وو دغې لغات نه هغه نحوی نوو خبر .ددې تائيد په يو شعر د مشهور شاعر کې داسې دی.

ان اباها وابا اباها     قد بلغا في المجد غايتاها

اوپکارو ابا ابيها وو او دالغت په بخاري ج ۲ ص: ۵۷۳ کې دابن مسعود رضی الله عنه نه هم ثابت دی عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ابوجهل ته وفرمايل انت اباجهل په ځای دابوجهل.

**دري ديرشم اعتراض** : دارجائيت قطب الاقطاب سيدنا شيخ عبد القادر جيلاني رحمة الله عليه په خپل کتاب غنية الطالبين (ص : ۲۲۷) الجرح على ابى حنيفة (۱۵ - ۱۶) کې فرقة حنيفة په اقسام د فرقة مرجئيته کې شمارلی او امام بخاري په تاريخ کبير کې ويلي دي چې امام صاحب مرجئ دی.

**جواب:** المرجئة على نوعين مرجئة مرحومة وهم اصحاب النبي ﷺ ومرجئة ملعونة وهم الذين يقولون بان المعصية لاتغرو العاصى لا يعاقب ، وروى عن عثمان بن ابى ليلى انه كتب الى ابى حنيفة رحمه الله وقال انتم مرجئة فاجاب بان المرجئة على ضربين مرجئة ملعونة وانا برئ منهم ومرجئة مرحومة وانا منهم وكتب فيه بان الانبياء كانوا كذالک ألا ترى الى قول عيسىٰ قال ان تعذبهم فانهم عبادک وان تغفرلهم فانک انت العزيز الحكيم ( تمهيد عبدالشكور)

**يعني مرجيه دوقسمه سره دي:**

(١) مرجية سنيّة في مقابلة المعتزلة والخوارج.

(٢) مرجيه مبتدعه في مقابلة اهل السنة والجماعة.

نومرجية اهل السنتوته وايي په مقابلة دمعتزلة وواوخوارجوكې څكه اهل السنة قائل دي چې تاركين دفرايضو اواهل كبائر يقيناً په اخرت كې مستحق د عذاب دي اومخلد في النار به نوى، نورد الله خوښه ده چې ببنى يې اوكه عذاب وركوي.

اودوهم قسم مرجيه چې په مقابل د اهل السنت كې دي هغوى پدې قائل دي چې په ترک د اعمال صالحه وو اوپه ارتكاب د معاصيوو ايمان ته كومه ګټه ياضررنشي رسيدلى، ايمان او اعمال جدا جدا مختلف شيان دى نوكوم كس چې په توحيد او نبوة معترف وي او فرائض نكوي اوارتكاب د معاصيو كوي نودا كامل الايمان دى مستحق د عذاب ندى، نوامام صاحب طرف ته دارجا بدعت نسبت كول قطعاً غلط دي اودارجا سنت نسبت ورته صحيح دى اوداعيب ندى بلكه دمعتزلة او خوارجو په مقابلة كې ارجا سنت دتمام اهل حق مسلک دى اودقران او حديث نه ثابت دى.

(٢) جواب : دشيخ عبدالقادر او امام بخاري مراد فرقة غسانية ده چې باني يې غسان بن ابان كوفي دى دا فرقه په اصولو كې د مرجيه ضالة معتقد دي او په فروعو كې د امام صاحب د اتباع ادعاء كوي لپاره ددې چې قبوليت په عوامو كې پيدا كړي : كما فى الملل والنحل لعبد الكريم الشهرستانى قال ومن العجب ان غسان كان يحكي عن ابى حنيفة مثل مذهبه ويعده من المرجئة : نوددې په وجه ورته احناف ويل كيږي نود اهل السنة نه خارج دي له وجهې د اعتقاد ارجاء نه بيا هم دوى مشهور دي په لقب حنفي سره لكه غير مقلدين چې بالكل محدثين نه دي لكن بيا يې هم ځان مشهور كړى دى په اهل حديث سره، نوشيخ عبدالقادر په بيان د اصولي اختلاف كې ددغه فرقې ضالې تذكره په لقب د حنفية سره كړيده.

(٣) - امام صاحب په فقه اكبر كې په فرقه مرجئه باندې پخپله رد كړى نو چې دى پخپله مرجئه و، نوبيا يې ولې رد پرې كولو، دالاندې دفقه اكبر عبارت ته توجه وكړئ : لانقول حسناتنا مقبولة وسيئاتنا مغفورة كقول المرجئة ولكن نقول من عمل عملاً حسناً بجميع شرائطه خالياً من العيوب المفسدة ولم يبطله حتى يخرج من الدنيا مؤمنا فان الله تعالى لايضيعه بل يقبله منه ويثبته عليه : يعني مونږ داسې نه وايو چې زمونږ نيكې

مقبولې او ګناهونه مو معاف او بښل شوي دي لکه د مرجئو چې دا وینا ده بلکې مونږه وایو چې هر چانیک عمل وکړو په شرائطو برابر او د مفسداتو او عیوب نه خالي وو او وروسته یې بیا باطل هم نه کړو تردې چې د دنیا څخه یې کوچ او رحلت د ایمان او سلامتیا د عمل سره وکړو نو الله ﷻ به دد معمل نه ضائع کوي او قبلوي به یې او دا به الله ﷻ ثابت قدمی ساتي.

(۴) او علامه ابن اثیر جذری رحمه الله د دې مسلې په تردید کې داسې فرمایي: وقد نسب الیه وقیل عنه من الاقاویل المختلفة التی یجل قدره عنها وینزه منها القول بخلق القرآن والقول بالقدر والقول بالارجاء وغیر ذالک مما نسب الیه ولاحاجة الی ذکرها ولا الی زکر قائلها والظاهر انه کان منزهاً عنها (جامع الاصول).

یعنې ډیر زیات داسې مختلف اقوال امام صاحب طرف ته منسوب دي چې د دې نه د هغه مرتبه ډیره اوچته ده او بلکل ترینه منزه او پاک دی لکه د خلق القران او تقدیر او ارجاء او داسې نور مسائل چې د ته منسوب شوي نو داسې أقوال او قائلین ذکر کولو ته هیڅ ضرورت او حاجت نشته دا بدیهي خبره ده چې امام صاحب د دغه امور څخه بلکل بري او پاک دی نو چې علماؤ او أیمة په دې تصریح کوي چې د داسې امورو نه امام صاحب پاک دی او د ابهتان او دروغ او افتراء ده نو تعجب په داسې خلکو چې ځان ته اهل حدیث او متبع د حق وایي او بیا پخپلو رسالو او کتابو کې غلط او باطل امور شائع کوي د عوامو د و که کولو لپاره:

هنرهانهادهٔ بکف دست عیب هارا گرفته زیر بغل

## د تمامو لویو محدثینو او ائمة ثلاثه وو شهادة د الامام الاعظم ابوحنیفة رحمه الله په علمیت، فقاهت، ثقاهت، محدثیت، ورع، زهد او اجتهاد باندې

### (۱) د امام المذهب امام مالک رحمه الله شهادت:

امام مالک رحمه الله د امام ابو حنیفة رحمه الله مدحه او توثیق کړی دی یو ځل امام شافعی رحمه الله د امام مالک رحمه الله نه د څو محدثینو د حال پوښتنه وکړه بیا یې ترینه د امام ابو حنیفة د حال پوښتنه وکړه نو هغه وفرمایل سبحان الله امام ابو حنیفه عجیب شخص دی دده مثل ما چرته نه دی لیدلی (الخیرات الحسان)

ذکر الصیمری باسناده عن ابن المبارک قال کنت عندمالک اذجاءه رجل فرفعه فلماخرج قال اندرون من هذاهذاابوحنیفة لوقال هذه الاسطوانة من ذهب لقام بحجته لقدوفق الله تعالی له الفقه حتی ماعلیه

کثیرمؤنة ثم قدم علیه الثوری فاجلسه دونه فلماخرج قال هذاسفیان وذکرفقهه ورعه )( کتاب کردری ج ۲ص۳۹)

یعنې دمحدثینوپیشوا عبدالله بن مبارک رحمه الله فرمایلي دي : چې زه امام مالک رحمه الله سره ناست وم ناڅاپي یوسړی راغلو امام مالک رحمه الله ډیرپه اوچت ځای باندې کینولو کله چې داسړی لاړنو وی فرمایل تاسو پوه شوی چې دا څوک وه؟

دا امام ابوحنیفة وه دده دعلم مرتبه داده که وی ویل چې داستن دسروزرو ده نوپه دلائل قاطعه وربه دادعوی ثابته کړي الله ﷻ ورته داسې توفیق دفقاهت ورکړی دی چې هیڅ کوم مشکل اومانع ورته نه جوړیږي بیاسفیان ثوري رحمه الله راغلو هغه یې لک په ټیټ مکان کې کینولو بیالاړو بیا امام مالک رحمه الله دده دفقاهت اوتقوی ذکرهم وکړو.

علامة موفق بن احمد مکي په کتاب مناقب ابی حنیفة رحمه الله کې لیکلي دي چې (حدثنی اسحاق بن ابی اسرائیل سمعت محمدبن عمرالواقدی یقول کان مالک بن انس کثیرًاماکان یقول بقول ابی حنیفة یتفقده وان لم یکن یظهره)

یعنې اِسحاق بن ابی اسرائیل چې دابوداود اونسائی دشیوخ اواستاذانو نه دی روایت کوي دامام مالک دشاکرد محمدبن عمر الواقدی نه داشاکردیې وایې چې امام مالک به اکثرحکم اوفتوی دامام اِبوحنیفة په قول باندې ورکوله اودهغه دقول تالاش به یې کولو اګرکه هغه به ظاهرنه وه.

په همدې صفحه باندې داسحق بن محمدبن عبدالرحمن امیرالقراء دامام مالک شاګرد روایت دی چې: قال کان مالک ربمااعتبربقول ابی حنیفة فی المسائل.

**د مذکوره اقوالو خلاصه :**

داول روایت نه داثابته شوه چې امام مالک رحمه الله دملاقات په وخت دامام ابوحنیفة رحمه الله دفضیلت لحاظ ساتلو اوپه اوچت ځای باندې کینولو اوحاضرینوته یې مخامخ دهغه دقابلیت اوقوت استدلال بیان وکړو چې بالفرض که یومستحیل الثبوت امرباندې دلیل قائم کړی نوثابته ولی شي،

اودوهم اودریم روایت نه داثابته شوه چې امام مالک په اکثره مسائلو کې سره دمجتهد والي نه دامام ابوحنیفه اقوالوتلاش کوي اودده په قول باندې فتوی ورکوي.

نو دامام مالک رحمه الله دمدح او تعریف نه دا ثابته شوه چې امام صاحب دامام مالک نه په فضیلت او کمال او فقه او اجتهاد کې اوچت دی واقعًا چې امام اعظم امام اعظم دی)

**(۲) شهادة الامام الشافعی رحمه الله:**

امام شافعی دامام ابوحنیفة رحمه الله ځای په ځای ډیر تعریف او توصیف کړی دی او دده په علمیت او فقاهت باندې دزړه ذکومې معترف دی دکتاب په مختلفو برخوکې دده له طرفه تعریف او توثیق دامام صاحب ذکرشوی دی یو څو روایاته به اجمالاً دلته هم ذکرکړو.

(۱) عن الربیع قال قال الشافعی ان الناس عیال فی الفقه علی ابی حنیفة مارایت ای علمت احدًا أفقـه منه) (الخیرات الحسان ص۳۱)

(۲) په همدې صفحه کې بل روایت دی : (قال من لـم ینظـر فی کتبـه لـم یتبحـر فی العلـم ولا یتفقـه) همدارنګه بل روایت په همدې مذکوره کتاب کې :

(۳) قال الشافعی من اراد ان یتبحر فی الفقه فهو عیال علی ابی حنیفة انه ممن وفق له الفقه).

(۴) علامه کردري پخپل کتاب کې دامام محمد بن حسن الشیبانی دامام ابوحنیفة شاګرد په تذکره کې لیکلي دي چې: (ذکرالدیلمی عن امام شافعی قال جالسته (ای محمدًا) عشرسنین حملت من کلامه حمل جمل لوکان کلمهم علی قدرعقله مافهمنا کلامه ولکنه کان یکلمنا علی قدرعقولنا).

(۵) قال الشافعی اعاننی الله تعالی فی العلم برجلین فی الحدیث بابن عینیة وفی الفقه بمحمد.

(٦) قال الامام الشافعی من اراد الفقه فلیلزم اصحاب ابی حنیفة فـان المعـانی قدتیسرت لهـم و الله ماصرت فقیهًا الابکتب محمدبن الحسن.

(۷) علی بن میمون وایې چې مادا امام شافعی رحمه الله نه اوریدلي هغه به ویل چې زه په امام ابوحنیفة رحمه الله باندې تبرک حاصلوم او دضرورت په وخت کې دهغه دقبرخوا کې دوه رکعته صلوة حاجت کوم او دالله نه سوال کوم ډیرزر مې الله پاک حاجت پوره کوي : (عقودالجمان ص ۲۸۷)

امام شافعی رحمه الله فرمایلي دي چې ددنیا ښځونه یو کس دامام أبوحنیفة رحمه الله په شان عقلمند هوښیار نه دی پیدا شوی . (کمالات امام ابوحنیفة ص ۳۴۱)

## (۳) دشهادة الامام احمدبن حنبل رحمه الله :

دامام احمدبن حنبل رحمه الله تعالى راى په باره دامام ابوحنيفةاودهغه دشاګردانوکې دلاندې عبارت څخه ظاهريږي. قال احمدبن حنبل فى حق ابى حنيفة انه كان من العلم والورع والزهـدوايثارالاخرة بمحل لايدركه احد. (الخيرات الحسان ص ٣٣)

امام احمدبن حنبل فرمايلي دي دامام صاحب باره کې چې امام ابوحنيفة رحمه الله په علم اوورع تقوى اوزهداوايثارالاخره (ترجيح داخرة په دنيابانديږ)کې داسې درجې ته رسيدلى دى چې دغه درجې ته هيڅوک رسيدکې نشې کولاى.

علامة كردرې پخپل كتاب المناقب ج٢ ص٢٥ کې دامام ابوحنيفة شاګردامام ابويوسف تذکره کې ليکلي دى چې: عن العباس بن محمدقال قال احمـدبن حنبـل لماطلبـت الحـديث ذهبـت اليـه وطلبتـه منـه ثـم كتبتُهاعن الناس) يعنې عباس بن محمد چې دسنن اربعه شيخ دى روايت کرى دى چې امام احمدبن حنبل رحمـه الله فرمايـل چې مـااول طلب اوزده کـره دحـديث دامـام ابويوسف نـه شـروع کـره بيـا دنورخلکونـه نوکوموکسـانوچې د: ويلـي دي چې امـام صـاحب مجتهدنـدى ځکـه ايمـة ثلاثـة دده پـه اجتهادبانديږ قائـل اومتعرف نه دى نوداوه دهغوى شهادة اواعتراف په اجتهاداوعلميت اوثقاهت دامام ابوحنيفة رحمه الله دمستندوكتابوحوالى سره نودداسې كسانوپه باره کې به ولي داويناحق نه وي چې (لعنة الله على الكاذبين)

## (۴) دنورو محدثينو شهادت:

اول المحـدثين حضـرت سـفيان ثـورى رحمه الله چې تقريـب التهـذيب دده توثيـق اوتعـديل پـه لانـديږ الفاظوسره كړى ثقه ،حافظ،فقيه،عابد،امام،حجة،دامام صاحب هم عصر،اوهم وطنه دى ده دامام صاحب په نسبت داسې فرمايلي دي په روايت دعبدالله بن مبارک

وكان والله شديدالاخذللعلم ذابّاعن المحارم لاياخذ الابماصح عنه عليـه الصلوة والسـلام شـديد المعرفة بالناسخ والمنسوخ وكان يطلب احاديث الثقات والاخيرمن فعل النبى ﷺ ومادراک عامـة وعلمـاء الكوفة فى اتباع الحق اخذبه وجعله دينه وقدشنع عليه قوم فسكتناعنهم بمانستغفرالله تعالى منه بـل قـد كان منا اللفظة بعداللفظة قال قلت ارجو الله تعالى ان يغفرلک ذالک (مناقب كردرى ج٢ ص١٠ الخيرات الحسان ص٣٢)

يعني قسم په الله چې امام صاحب دعلم په اخذ او تحصيل کې او دمنهيات په انسداد او بند ولو کې سخت مستعد او جدی او چټک وه او اخذ او استدلال يې صرف په صحيح حديث باندې وه او دناسخ او منسوخ په معرفت کې دزيات قوي طاقت واله وه او دثقه راويانو په احاديثو او دنبی کريم ﷺ داخری فعل په تالاش کې وه او دحق په پيروي کې يې تمسک په هغه خبره کولو چې دکوفې دجمهور علماوو به پرې اتفاق وه او دابه يې خپل مذهب گرځولو او مونږ خپله ځړ به بنده ساتو دهغه تشنيعی او طعنی الفاظو څخه ورته مغفرت غواړو او يو څه غلط الفاظو مونږ لخواهو وه چې اميد دمغفرت يې لرم.

(۲) عبد الله بن المبارک عن العسکری عن ثابت الزاهدقال کان اذااشکل علی الثوری مسالة قال مايحسن جوابهاالامن حسدناه ثم يسال عن اصحابه ويقول ماقال فيه صاحبکم الجواب ثم يفتا به).

يعني ثابت زاهد دسفيان ثوري شاگرد او دبخاری او ترمذی په راويانو کې فرمايي چې کله به سفيان ثوری باندې ديوه مسلې حل مشکل شونو به ويل چې ددې مسئلي بهترين حل او جواب دهغه شخص سره دی چې زمونږ ورسره حسد دی يعني امام ابو حنيفة رحمه الله بيابه يې دامام صاحب دشاگردانو ته وويل چې ستاسو امام په دغه مسئله کې څرنگې فتوی ورکوي نو دهغوی نه به يې جواب زده کړو او بيابه يې ددې مطابق فتوی ورکوله

(۳) روی الخطيب عن محمدبن المنتشرقال کنت اختلف الی ابی حنيفة والی سفيان فاتی اباحنيفة فيقول من اين جئت فاقول من عندسفيان فيقول لقدجئت من عندرجل لوان علقمة والاسود حضر الاحتاجا الی مثله فاتی سفيان فيقول من اين جئت فاقول من عندابی حنيفة فيقول لقدجئت من عندافقه اهل الارض. (تبييض الصحيفة ص ۱٤)

(٤) قال سفيان الثوری کنابين يدی ابی حنيفة کالعصافيربين يدی البازی وان اباحنيفة سيدالعلماء) (قلائدعقيان ومقدمة إعلاءالسنن ج۱ ص۲۷ )

ددې دواړو عبارتونو ترجمه مخکې تيره شوی ده.

نو دسفيان ثوری اقوال دامام همام ابو حنيفة رحمه الله په فضيلت او ثقاهت او اجتهاد او تبحر فی الحديث باندې څومره خوندور او زبردست گواه دی، دمذکوره عباراتونه دا ثابته شوه چې امام ابو حنيفة ته په معرفة

دصحيح اوضعيف اوناسخ اومسنوخ احاديثو کې. ډيره لويه ملکه حاصله وه اودهغه تمسک په هغه احاديث باندې چې دهغوی مدار په محبت باندې وه

اودهغه دتمسک په اخری افعال دنبي کريم ﷺ اودصحابه کرامو رضي الله عنهم باندې وه اودسفيان دتبحرفي الحديث والی سره په مشکلوه سائل کې دامام صاحب تحقيق خوندورګڼي اودده په قول باندې فتوی ورکوي اوپه حجة الله فی الارض باندې ورته قائل اوتسليمه وي اوخپل ځان دهغه په مقابل کې داسې شماري لکه چنچنی دبازپه مقابل کې، نودداسې ګواهي اواقوالو باوجودبی شرمه غيرمقليدن وايې چې امام صاحب اهل الرای دی اومذهب يې په ضعيفه احاديث باندې بنادی اودده په اجتهاد باندې اکثره محدثين اعتراض کوي.

**(۵) شهادة الامام الاعمش رحمه الله:** سليمان بن مهران المتوفی ۱۴۷هـ) په تقريب کې دده په حق کې داسې الفاظ دي ثقه، حافظ، عارف بالقراءة، ورع اودصحاح په اعلی روايانو کې شماردی.

دده شهادت دامام همام امام اعظم په حق کې داسې دی : وسئل الاعمش مسئلة فقال انما يحسن جواب هذاالنعمان بن ثابت واظنه بورک له فی علمه. (الخيرات الحسان ص ٣٤)

يعنې دامام اعمش نه ديو مسئلې پوښتنه وشوه هغه وويل چې ددې بهترين جواب ورکوونکې نعمان بن ثابت دی اوزماخيال دی چې الله دده په علم کې ډيربرکت اچولی دی په الخيرات الحسان ص ۶۷کې داسې عبارت نقل دی

(٢) وروی الخطيب عن ابی يوسف قال وکان عندالاعمش فسئل عن مسائل فقال لابی حنيفة ماتقول فاجابه قال من اين لک هذاقال من احاديثک التی رويتهاعنک وسردله عدة احاديث بطرقهافقال الاعمش حسبک ماحدثتک به فی مائةيوم تحدثنی به ساعة واحدة ماعلمت انک تعمل بهذه الاحاديث يامعشر-الفقهاء انتم الاطباء ونحن الصيادلة وانت ايهاالرجل اخذت بکلا الطرفين)ددې عبارت ترجمه مخکې تيرشوی ده.

نودجليل القدر امام المحدثين امام اعمش رحمه الله څومره زبردست اوخوندورشهادت دی په کمال اوفضيلت اوثقاهت اوفقاهت دامام اعظم ابوحنيفة رحمه الله باندې (انچه خوبان همه دارندتوتنهاداری)

## (٦) شهادت الامام عبدالله بن مبارک رحمه الله المتوفی ۱۸۱ھ)

دده باره کې په تقریب کې داسې الفاظ لیکلي دي ثقة، ثبت، فقیه، عالم، جواد، مجاهد، جمعت فیه خصال الخیر، او صاحب داتحاف النبلاء لیکلي دي چې دده دامام مالک سفیان ثوری او سفیان بن عیینه وغیره څلور زره شیوخو نه روایت کړی او علم یې ترینه زده کړي او امام احمد رحمه الله داو دده به شان محدثین یې په شاګردانو کې داخل دي او دا یې هم لیکلي دي چې ابن مبارک دامام ابو حنیفة سره اول زده کړه او شاګردی کړی ده او دامام صاحب د وفات نه وروسته بیا مدینې منورې ته لاړو او د امام مالک شاګردی اختیار کړه او دهغه نه یې تفقه او علم زده کړونو ابن المبارک دامام ابو حنیفة رحمه الله په حق کې شهادت او ګواهي په لاندې الفاظو سره نقل ده : قال ابن المبارک لیس احداحق ان یقتدی به من ابی حنیفة لانـه کان امامًـا تقیـا ورعا فقیهـا کشف العلم کشفًالم یکشف احدببصروفهم وخطبة وتقی. (الخیرات الحسان ص ۳۲)

یعنې دامام ابو حنیفة رحمه الله نه بل داسې دلوړی مرتبې شخص نشته چې هغه مستحق ددې وي چې دهغه تقلید دی وشي ځکه هغه یو لوی متقی او متورع عالم فقیه امام وه او پخپل بصارت او فهم او زیرکتیا هو بنیارتیا او تقوی باندې یې دعلم وضاحت او دعلم ټولي دروازې خلاصې کړی وي.

نو اوس ابن المبارک په څومره زور او قوة سره دامام اعظم فضیلت ثابت او بیان کړو چې ضمنایې پر امام مالک باندې هم کامله ترجیح ورکړه حالانکه امام مالک دده اخری استاد دی چې زیات شاګرد ته محبوب او محترم وي او دستور او عرف دادی چې شاګرد اخري استاذ ته ترجیح ورکوي پر نورو باندې.

نو دابن المبارک داسې صفا وینا چې هیڅ یو لوی عظیم شخص دامام ابو حنیفة نه نشته چې مستحق ددې وي چې دهغه تقلید دی وشي) دا یو لوی شهادة دی په ثقاهت او فقاهت او علمیت دامام اعظم رحمه الله باندې خو که څوک دانصاف دنظر او دصفا عقل او دحیا خاوندوي مګر افسوس پر بعض خلکو چې دهغوی حال داسې ګویادی (شرم چې سکی است که پیش مردان بیاید)

## (۷) شهادة معمربن راشدالمتوفی ۱۵۴ھ:

په تقریب کې ورته ثقة، ثبت، فاضل، ویلی شوی دي او د ترمذي په اعلی راویانو کې دی دده شهادة دامام صاحب په حق کې په لاندې الفاظو سره دی: روی الخطیب عن عبدالرزاق قال کنت عندمعمرواتاه ابن المبارک فسمعت معمراًیقول مااعرف رجلاًیحسن التکلم فی الفقه ویسعه ان یقیس ویشرح الحدیث والفقه

احسن معرفة من ابی حنيفة ولااشفق علی نفسه من ان يدخل فی دين الله شيئاًمن الشک مثل ابی حنيفـة. (تبيض الصحيفة ص ۲۰)

يعني عبد الرزاق فرمايي چي زه دمعمرسره وم چي عبدالله بن مبارک يې مجلس ته راغلومعمروويل چي زه دامام ابوحنيفة نه بغيرهيڅ يوداسي شخص نه پيژنم چي هغه په فقه باندې ماهروي اودقياس دائره يې هم پراخه وي اودحديث اوفقه خوندوره تشريح هم وکړي.

اونه مي هيڅ يوداسې شخص په نظرراغلی چې دهغه پخپل ځان باندې زيات خوف ويره لري ددې خبرې چې په الهی دين کې څه مشکوک اشياداخل کړي بغيردامام ابوحنيفـة نـه نوچې لـک غـوراوفکروکړي نودمعمرتوثيق اوشهادت ډيرخوندوردی صرف فقيه اوشارح الحديث اوصاحب الرای يې ورته نه دي ويلي بلکې په دغه اوصافوکې يې بی مثل اولامثال ثابت اومعرفی کړی دی

اوهم په دينې امورو کې يې محتـاط اوخـائف من الله معرفـی کړوپداسې اندازچې نظيريې پردنيانشته نودامام صاحب دمخالفينوطعنونه اوزبان درازی دخپل عاقبت دخرابوالي څخه بل څه په لاس نه ورکوي.

## (۸) شهادة دعمروبن دينارالمکی المتوفی ۱۲۶ھ:

کـوم چې په لويوتـابعينوکې حسـاب دي دده تعريـف پـه تقريـب کـې پداسې الفاظونقل دي ثقه،ثبت، او دصحاح په اعلی رواتو کې شـامل دی ده چې په ابتدائي حالت کې کوم عزت دامام صاحب کړی دی هغه په الخيرات الحسان ص۳۵) کې په داسې الفاظوسره نقل شوی دی.

وقال حماد بن زيد کنا ناتی عمرو بن دينار فاذا جاءابو حنيفـة اقبـل عليـه وترکنـا فسـأل اباحنيفـة فنسـاله فيحـدثنا) يعنې حمـادبن زيدچې دصحاحوسته په اعلی روات کې داخل دی فرمـايي چې مونږ به دعمـروبن دينـارمجلس ته تلوراتلوکله به چې امام ابوحنيفـة راغلونو مونږبـه يې پريښـوداودهغه طرف ته به متوجه شواوپوښتنې به يې ترينه کولي مونږبه هم ترينه تپوسونه کول اوامام صاحب به راته احاديث بيانول.

نوعمروبن دينارپه ابتداءکې دامام صاحب دومره قدراوعزت کولونوچې وروسته يې ترينه حديث حاصل کړل نوبياپه انتهاکې به يې څنګه دهغه په امام اعظم والي اوټول امت ته په پيشوايي باندې نوی تسليم کړی خامخابه دهغه په فقاهت اوثقاهت اومحدث والي باندې قائل اومعترف وي.

**(۹) شهادة دمسعربن كدام المتوفى ۱۵۳ھ :**

دده تعریف او توثیق په تقریب التهذیب کې په لاندې الفاظوسره نقل دی ثقة،ثبت، فاضل، او دصحاحو په اعلی شیوخ کې شماردی دده نظراو رای دامام ابوحنیفة په حق کې په لاندې دول ده.

قال مسعربن کدام من جعل اباحنیفة بینه وبین الله رجوت ان لایخاف ولایکون فی الاحتیاط لنفسه وقیل له لم ترکت رای اصحابه واخذت برایه قال لصحته فاتواباصح منه لارغب عنه الیه وقال ابن المبارک رایت مسعراًفی حلقة ابی حنیفة یساله ویستفیدمنه وقال مارایت افقه منه(الخیرات الحسان ص ۳۲). یعنې مسعربن کدام وایې چې هرهغه شخص چې دالله تعالی او خپل ځان ترمنځه یې امام ابوحنیفة واسطه کړونو امیددی چې دده لپاره به هیڅ خوف او خطره نه وي دته چاوویل چې ولې دی دخپلو ملګرو رای پریښودله اودده رای دی اختیارکړه ده ورته وویل چې له وجې دصحت نه او که تاسوراته ددې څخه زیاته صحیح رای اوښایې دابه پریږدم هغه به اختیارکړم (یعنې دده رای نه بله زیاته صحیح رای پیدا کول محال دی ) عبدالله بن مبارک فرمایې چې ما مسعربن کدام دامام ابوحنیفة ددرس په حلقه کې ولیدلو چې دامام صاحب نه یې دمسائل پوښتنه کوله او دهغه نه یې استفاده کوله او ویل به یې چې دده څخه په دنیا کې زیات فقیه بل څوک نشته.

وعن ابی اسحاق الخوارزی قاضی خوارزم قال مرمسعربن کدام بابی حنیفة واصحابه فوجدهم قدارتفعت اصواتهم فاقام ملیّاثم قال هؤلاءأفضل من الشهداءوالعبادوالمتهجدین هؤلاء یجهدون فی احیاءسنة النبی ﷺ ویجتهدون فی اخراج الجهال من جهلهم هؤلاءافضل الناس کتاب امام موفق ج۱ ص۲٤۹.

یعنې ابواسحاق چې دخوارزم علاقې قاضی دی ده ویلي دي چې مسعربن کدام یوه ورځ دامام ابوحنیفة اودهغه دملګرو په فقهي مجلس باندې تیریدلو چې دهغوی اوازونه اوچت شوه یعنې دفقهي مسائل دمذاکرې په وخت کې ددوي اوازونه اوچت شول)نو مسعریو څه وخت ودریدلو بیایې وویل چې دغه خلک دشهداءاوعابدانو او تجهدکوونکو نه زیات غوره او افضل دی داخلک دنبی کریم ﷺ دسنت په ژوندې کولو باندې مشغول او مصروف دي اوه دوي داکوشش اومحنت او خواري کوي چې تول خلک دجهل دتوروتیارو نه راوباسي نو داډیربهترین او افضل خلک دي.

الله اکبر سوچ او فکر کول په کار دی چې امام المحدثین حضرت مسعربن کدام دامام اعظم په حق کې څومره په اوچت اندازه باندې حسن اعتقادلري چې وایې هرڅوک چې امام ابو حنیفهٔ د ځان او الله ترمنځ واسطه کړی هغه به د خوف او خطری څخه په امن کې وي او امام ابو حنیفهٔ او دهغه ملګری دپیغمبر ﷺ دسنتو په ژوندی کولو باندې دشهداءاو عابدانو او تهجد کوونکونه بهتر او غوره دي اوددوي اجتهاد او فقاهت په ټولو اعمالو صالحو کې افضل او غوره دی او هیڅ یو عمل صالح دغی رتبی ته نشي رسیدلای.

## (۱۰) شهادة عبدالملک بن عبدالعزیزبن جریج المکی المتوفی ۱۵۰ھ :

دده تعریف تقریب التهذیب داسې کړی ثقه،فقیه،فاضل،اودصحاح په اعلی شیوخ کې داخل دی ده دامام ابو حنیفهٔ په حق کې داسې ویناکړی ده: عن ابن عیینه قال ابن جریج لمابلغه مـن علمـه وشـدة ورعـه وصیانته لدینه وعلمه احسبه سیکون له فی العلم شان عجیب وذکرعنده یوم فقال اسـکتواانه لفقیـه إنـه لفقیه )(الخیرات الحسان ص۳۳)

یعنې ابن جریج ته چې کله دامام ابو حنیفهٔ علم او تقوی او استقامت علی الدین او استقامت فی العلم معلوم شوه نو هغه وویل چې عنقریب به دي شخص لره پخپل علم کې یو عجیب او غریب شان او حال وي او یوه ورځ دده په حضور کې دامام صاحب تذکره وشوه ده وویل چې خاموش او چپ شي یقینا او واقعًا چې دا فقیه دی دا فقیه دی او په الخیرات الحسان ص ۶۹ کې دده په حق کې داسې الفاظ راغلی : (ولمابلغ ابن جریج فقیه مکة وشیخ شیخ الشافعی موته استرجع وقال ای علم ذهب).

یعنې کله چې ابن جریج ته چې دمکې مکرمی فقیه او دامام شافعی رحمه الله شیخ الشیخ دی دامام ابو حنیفهٔ رحمه الله دوفات خبرورسیدونو داسترجاع (انالله وانااليه راجعون)ویلو نه وروسته یې وویل چې څه عجیب علم ددنیا نه لاړو یعنې نن ددنیا نه دعلم یو غټ نشان ورک شو)

## (۱۱) شهادة دداودالطائی رحمه الله المتوفی ۱۶۰ھ :

دده تعریف تقریب التهذیب داسې کړی دی ثقه،ثبت ،فاضل،اودامام نسـایې په لویو شیوخ کې دی دده شهادت دامام اعظم رحمه الله په حق کې په الخیرات الحسان ص۳۵ کې داسې رانقل شوی دی : وذکرعنـد داودالطائی فقال ذاک نجم یهتدی به الساری وعلم تقبله قلوب المؤمنین.

یعنې ددواد طائی په حضور کې دامام ابوحنیفة رحمه الله یادو شو هغه وفرمائیل چې دا یو رو ښانه ستوری دی چې تول خلک دده په روشنایې باندې هدایت یافته دي او داسې عالم دی چې دده علم تول ه مؤمنانو د زړه د کومې قبول کړی او تسلیم کړی دی.

**(۱۲) شهادة دمحمدبن اسحاق امام المغازی المتوفی ۱۴۴ھ :**

دته امام بخاری دامیر الحدیث لقب ورکړی دی دده حسن ظن په امام ابوحنیفة رحمه الله باندې امام موفق پخپل کتاب ج۲ ص۳۳ داسې رانقل کړی : (عن یونس بن بکیر یقول قدم محمدبن اسحاق الکوفة فکنانسمع منه المغازی وَربمازاراباحنیفة فیمابین الایام ویطیل المکث عنده ویجاریه فی مسائل تنویه)

یعنې یونس بن بکیر چې دصحاح درواتو نه دی هغه فرمایې چې کله به محمدبن اسحاق کوفې ته راغلو مونږ به دهغه نه دغزواتو بیانات اوریدل او په دغو ورځو کې به یې ډیر کرته دامام ابوحنیفة رحمه الله ملاقات کولو او دهغه سره به یې اوږده زمانه قیام کولو او دهغه مسائلو چې دته به رامنځ ته شوی وې دهغو باره کې به یې دامام صاحب نه استفاده کوله داهغه محمد بن اسحاق دی چې دفاتحة خلف الامام دحدیث دارومدار پرده باندې دی او امام بخاری ورته امیر الحدیث لقب ورکړی دي نو امام محمدبن اسحاق دلوی پای محدث دی او دده دامخکې مذکور فعل دامام ابوحنیفة پر فضلیت باندې اعلی شهادت دی سره ددې نه غیر مقلدین متعصبه دامام صاحب د فضلیت نه منکر دی.

**(۱۳) شهادة الامام شعبة بن الحجاج رح المتوفی ۱۶۰ھ :**

دده تعریف تقریب داسې الفاظو سره بیان کړی دی ثقه، حافظ، متقن، کان الثوری یقول هو امیر المؤمنین فی الحدیث او دصحاح دراویانو په جمله کې دی، دده رایه دامام ابوحنیفة رحمه الله په حق کې په کتاب امام موفق ج ۲ ص ۴۶ کې داسې رانقل شوي ده :عن یحیی بن ادم قال کان شعبة اذاسئل عن ابی حنیفة اطنب فی مدحه وکان یهدی الیه فی کل عام طرفه.

یعنې یحیی بن ادم فرمایې چې هر کله به دامام شعبة رحمه الله نه دامام ابوحنیفة رحمه الله باره کې پو ښتنه وشوه نو هغه به دده ډیر زیات اوږده تعریف او صفت کولو او هر کال به یې امام ابوحنیفة ته نوی نوی تحفی ورلیږلې او په الخیرات الحسان ص ۳۴ کې داسې الفاظ رانقل دی : (وقال شعبة کان و الله حسن الفهم جیدالحفظ حتی شنعواعلیه بماهواعلم به منهم و الله سیلقون عند الله )

يعنې شعبة فرمايې چې قسم په الله چې امام ابو حنيفة رحمه الله نهايت زيات دتيزفهم اوتيزى حافظې خاوندو ه خلکوپرده باندې دداسې خبرو طعنونه لږولې چې ددوي نه هغه پدې خبروباندې زيات عالم وه پرې قسم پرالله چې ددوى به دالله تعالى سره ملاقات وشي يعنې هغه وخت به الله تعالى دوى ته ددغه خبروبدله ورکړى) اوپه ص۶۹ کې يې ليږلي چې (فلمابلغ شعبة موته استرجع وقال طفئ عن الكوفة نورالعلم اماانهم لا برون مثله ابداً)

يعنې کله چې شعبه ته دامام صاحب دوفات خبرورسيدنودا سترجاع نه بعديې وويل چې دکوفى دعلم چراغ اوډيوه ګل شوه او اهل کوفى ته به ترقيامته پورې دده نظيرملاونشي.

## (۱۴) شهادة الامام محمدبن ميمون المتوفى ۱٦٧هـ :

دادصحاح په اعلى شيوخ کې داخل دى اوتقريب دده تعريف داسې کړي ثقه،فاضل،دده دامام اعظم رحمه الله په شان کې داسې شهادت کړى دى: قال الحافظ محمدبن ميمون لم يكن فى زمن ابى حنيفة اعلم ولا اورع ولا ازهدولا اعرف ولا افقه منه تا الله ماسرنى بسماعى منه مائة الف دينار (الخيرات الحسان٣٥).

يعنې حافظ الحديث محمدبن ميمون وايې چې دامام ابو حنيفة رحمه الله په زمانه کې دده نه هيڅ يو شخص زيات عالم اوتقوى داره اوزاهدنه وه اونه هيڅ يو شخص په علم اوفقاهت کې دده مساوي وه قسم په الله چې دده څخه ديو حديث په اوريدُ باندې ديو لک دينارملاويدونه زيات خوشحاله کيږم، نو دمحدثينو دومره بى اندازه مينه وه دامام صاحب سره چې درسول اللهﷺ ديو حديث سماع دامام ابو حنيفة رحمه الله څخه داورته ديولاک اشرفينونه زيات خوښ وه.

## (۱۵) شهادة الامام عطاءبن ابى رباح رحمه الله المتوفى ۱۱۴هـ :

دلويو کبارتابعينوپه تولي کې داخل دي تقريب کې يې توثيق داسې رانقل دى (ثقةٌ،فقيهٌ،فاضلٌ)اوپه تهذيب کې داسې الفاظ رانقل دي (هواحدالفقهاءوالايمة وكان ثقة عالمًا كثيرالحديث انتهت اليه الفتوى بمكة) اوپه اعلى راويانو دصحاح سته وکې دي دده نه دامام صاحب باره کې په لاندې ډول بيان رانقل دى: عن الحارث بن عبدالرحمن قال كناعندعطاءبن ابى رباح رحمه الله بعضناخلف بعض فاذاجاءابوحنيفة اوسع له وادناه (كتاب موفق ج ۲ص٦٧)

يعنې حارث بن عبد الرحمن وايي چې مونږتول طالبان به يو بل پسې د سماعت الحديث لپاره امام عطاءبن ابی رباح مجلس کې ناست وه کله به چې امام ابو حنيفة رحمه الله مجلسته راغلو نو دهغه لپاره به ئې پراخه ځای جوړکړو او خپل ځان ته به يې نژدی کړو د عزتمند دا بل عزت چې استاذئې عزت او احترام ساتی بيا هر استاذ هم نه بلکې امام عطاءبن ابی رباح رحمه الله چې د خپل وخت يو مسلم امام او مقتدی او مسلم محدث وونو چې دشاګردی په زمانه کې ئې استاذ قدر او عزت کوي بس خود اِنتهائی کمال د شاګرد دي

## (۱۶) شهادة الامام فضيل بن عياض المتوفى ۱۸۷ه :

دده تعريف تقريب کې په داسې الفاظ رانقل دی ثقه،عابد ،او د امام ترمذی په اعلی روات کې شامل دی دده شهادت په حق کې د امام صاحب په لاندې ډول رانقل دی : روى الخطيب عن سعيدبن منصورقال سمعت فضيل بن عياض يقول كان ابوحنيفة رجلاًفقيها معروفا بالفقه مشهوراًبالورع وكان اذاوردت عليه مسئالة فيهاحديث صحيح اتبعه وان كان عن الصحابة والتابعين والاقاس فاحسن القياس. (تبيض الصحيفة ۱۹)

يعنې سعيدبن منصورچې د اهم د صحاح ستـه وو په شيوخ کې دی داوايې چې ما د فضيل بن عياض نه داسې وينا اوريدلی چې هغه به ويلې امام ابو حنيفة يو فقيه شخص او په ورع او تقوی باندې مشهوروه چې کله به ورته يو مسئله راغله نو په هغې کې به يې د صحيح حديث اتباع کوله اګر که دا به د صحابه وو او يا تابعينو نه وو او که صحيح حديث به پيدا نشو نو بيا به يې ښاسته خوندور قياس پکې کولو.

## (۱۷) شهادة الامام سفيان بن عينيه المتوفى ۱۹۸ه :

دده تعريف تقريب داسې کړی (ثقه،حافظ،فقيه ،امام، حجة)او د صحاح ستة وو اغلی شيخ دی دده شهادت او نظريه د امام صاحب په حق کې په الخيرات الحسان ص۳۲ داسې رانقل شوی ده وقال ابن عيينه مارايت عينی مثله) يعنې ابن عينيه رحمه الله فرمايي چې د امام ابو حنيفة رحمه الله په شان شخص زما سترګو نه دی ليدلی او په کتاب امام موفق ج۱ ص ۱۹۵کې داسې روايت دی (عن ابی يعقوب المروزی سمعت ابن عينيه يقول لم يكن فى زمان ابى حنيفة بالكوفة رجل افضل منه واورع ۰``افقه منه) يعنې ابن عينيه فرمايي چې د امام ابو حنيفة رحمه الله په زمانه کې په کوفه کې هيڅ يو شخص دده نه زيات بهترا و تقوی داره او فقيه نه وه

**(۱۸) شهادة الامام يحى بن سعيدالقطان المتوفى ۱۹۸ھ :**

دده تعریف تقریب په داسې رانقل کړی دی (ثقة،متقن،حافظ،امامقدوة)دده رای اونظردامام ابوحنیفة رحمه الله باره کې داسې رانقل شوی دی.

وروى الخطيب عن يحى بن معين قال سمعت يحى بن سعيديذهب فى الفتوى الى قول الكوفين ويختارقوله من اقوالهم ويتبع رايه من بين اصحابه.

یعنې یحی بن معین چې دجرح اوتعدیل امام وه فرمایې چې دیحی بن سعید القطان خبره مې اوریدلی وه هغه ویل چې په الله قسم چې دروغ نه وایم چې دامام ابوحنیفة رحمه الله څخه دصحیح رای واله بل څوک نشته اواکثربه یې دهغه پراقوال تمسک کولوراوی وایې چې یحی بن سعید په فتوی کې دکوفیانوقول طرف ته رجوع کوله اوبیابه یې دامام صاحب قول غوره کولوددوی په اقوالوکې اوپه ټولو اصحاب الرای کې به یې دده په قول اورای باندې عمل کولو: عن يحى بن معين سمعت عن يحيى القطان يقول جالسناو الله اباحنيفة وسمعنا منه وكنت و الله اذانظرت اليه عرفت فى وجهه انه يتقى الله عزوجل) (موفق ج۲ ص۱۹۱)

یعنې یحی القطان فرمایې چې په الله قسم چې دامام صاحب سره می صحبت او مجلس کړی اودهغه نه مې زیات تعداد مسائل هم اوریدلی او قسم په الله چې کله به مې ده مخ مبارک ته وکتل نودتقوی اوورع اثاربه پکې ځلیدل.

**(۱۹) شهادة الامام حفص بن عبدالرحمن البلخى المتوفى ۱۹۹ھ:**

دده تعریف تقریب داسې بیان کړی دی صدوقٌ،عابدٌ،اودنسائی اوابوداودپه اعلی شیوخ کې داخل دی دده شهادة دامام اعظم رحمه الله باره کې په کتاب امام موفق ج۱ ص۲۰۰ داسې نقل دی: قال حفص بن عبدالرحمن جالست انواع الناس من العلماء والفقهاء والزهادواهل الورع منهم فلم اراحداًفيهم اجمع لهذه الخصال من ابى حنيفة. یعنې حفص بلخی فرمایې چې دهرقسم علماءوفقهاءوزهاداودتقوی خاوندان سره مې صحبت وکړ، خو دا مجموعه تمام صفات مې بغیردامام ابوحنیفة رح نه په بل هیچا کې ونه لیدل.

**(۲۰) شهادة الامام الحسن بن صالح الكوفى رح المتوفى ۱٦۹ھ :**

کوم چې دتقریب په قول باندې ثقه،فقیه،عابد،دی اودصحاح ستة وپه اعلی رواتوکې شامل دی دده شهادة دامام اعظم رحمه الله په باره کې په کتاب امام موفق ج۱ ص۸۹ داسې رانقل شوی دی: (عن احمدبن

عبد الله قال الحسن بن صالح كان ابوحنيفة شديدالفحص عن الناسخ من الحديث والمنسوخ فيعمل بالحديث اذاثبت عنده عن النبي ﷺ وعن اصحابه وكان عارفًا بحديث اهل الكوفة وفقه اهل الكوفة شديدالاتباع ماكان عليه الناس ببلده وقال كان يقول ان لكتاب الله ناسخًاومنسوخًاوان للحديث ناسخًاومنسوخه وكان حافظالفعل رسول الله ﷺ الاخيرالذى قبض عليه مماوصل الى اهل بلده).

یعني حسن بن صالح فرمائي چې امام ابو حنيفة رحمه الله د ناسخ او منسوخ حديث باره کې زبردست تفتيش کوونکې او متشدد وو او چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم او يا د صحابه کرام نه به ورسره يو حديث ښه ثابت شونو بيا به ئې ورباندې عمل کولو او امام ابو حنيفة رحمه الله يو اځې د اهل کوفی په احاديثو او فقه باندې يو ښه عالم او عارف نه بلکې په ټوله کوفه کې يو زبردست إتباع کوونکې هم وه او ويل به ئې چې کتاب الله هم ناسخ او منسوخ لری او احاديث هم ناسخ او منسوخ لرې خو امام صاحب د نبی کريمﷺ د هغه افعالو حافظ او عامل وو چې د پيغمبرﷺ اخيری افعال وو او هغه پرې وفات شوی وو.

### (۲۱) شهادة الامام جريربن عبدالحميدالكوفى المتوفى ۱۸۸ھ:

کوم چې په قول د تقريب باندې قاضي الكوفة ثقة ،صحيح الكتاب،دی او د ائمه صحاح سته په اعلی رواتو کې دی د ده شهادت او توثيق د امام اعظم رحمه الله باره کې په کتاب امام موفق ج۲ ص ۳۵ کې د اسې عبارت باندې رانقل شوی دی: عن موسى بن نصرسمعت جريرًايقول كان المغيرة يلومنى اذالم احضرالى مجلس ابى حنيفة ويقول لى الزمه ولاتغب عن مجلسه فاناكنانجتمع عندحمادفلم يكن يفتح لنامن العلم ماكان يفتح له).

یعني جرير فرمايي چې په کومه ورځ باندې به زه د امام ابو حنيفة مجلس ته حاضر نه شوم نو حضرت مغيرة به سخت ملامته کولم او راته ويل به يې چې د ده مجلس سره لازم شه هيڅ وخت ترينه مه غائب کيږه ځکه مونږه به چې کله د حضرت حماد په خدمت کې حاضر شوه نو کوم اسرار د علم به چې حضرت امام ابو حنيفة ته معلوميدل هغه به حضرت حماد ته هم نه ملاويدل.

### (۲۲) شهادة الامام ياسين بن معاذ الزيات:

علامة ذهبی په خپل ميزان کې د ده په حقله ليکلي چې دا د کوفی په لوی کبار محدثينو او فقيهانو کې شمار شوی دی. د ده شهادة او بيان د امام اعظم رحمه الله به باره کې د اسې رانقل شوی دی: عن وزيربن عبد

الله قال سمعت یاسین الزیات بمکة وعنده عظیمة وهویصح باعلی صوته ویقول یاایهاالناس اختلفواالی ابی حنیفة واغتنموا مجالسته وخذوامن علمه فانکم لم تجالسوامثله ولن تجدوااعلم بالحلال والحرام واکرم منه فانکم ان فقدتموه فقدتم علماکثیراً. (کتاب موفق ج ۲ص۳۵)

یعني وزیربن عبدالله فرمایي چې مادیاسین الزیات نه چې په لوی جماعت کې وه او ریدل په لوړاواز سره یې غږکولو او فرمایل یې چې ای خلکو د امام ابو حنیفة خدمت کې حاضری کوی او دده سره مجلس او ناسته پاسته یو غنیمت وګڼی او دده نه علم حاصل کړی ځکه چې هیڅکله به تاسو دده غوندې شخص سره مجلس نه وي کړی او نه به هیڅکله په حلال او حرامو باندې لوی عالم دده نه بل څوک پیدا کړی او نه بل داسې دعزت خاوند که او س وقت کې د تاسو څخه دا ورک شو نه پوه شی چې تاسو دیر زیات علم ورکړو.

## (۲۳) شهادة الامام حفص بن غیاث القاضی الکوفی المتوفی ۱۹۴ھ:

دا ثقة او فقیه عالم دی او د امام احمد او اسحاق بن راهویه او ابن المدینی او دیحی بن معین استاذ دی او دصحاح په اعلی راویانو کې دی. دده شهادت او بیان د امام ابو حنیفة رحمه الله باره کې: عن موسی بن سلیمان الجوزجانی سمعت حفص بن غیاث یقول سمعت ابی حنیفة کبتـه واثـاره فمارایـت اذکی قلبامنه ولااعلم بمایفسدویصح فی باب الاحکام منه وفی روایة محمدبن سماعة عن حفص یقول ابوحنیفة نادرمن الرجال لم اسمع بمثله قط فی فهمه ونظره. (کتاب امام موفق ج ۲ص۴۰)

یعني موسی بن سلیمان فرمایي چې ماد حفص بن غیاث نه اوریدلي دي هغه به فرمایل چې ماد امام ابو حنیفة رحمه الله نه دهغه کتابونه او اثار اوریدلي دي ما دده نه دزیات صفا او ذکی زړه خاوند نه دی لیدلی او نه دده نه بل لوی عالم په حلال او حرام باندې شته او د محمد بن سماعه په روایت کې دی چې حفص فرمایلی دي چې امام ابو حنیفة رحمه الله یکتا دی په سړو کې ما دده دنظر او د فهم نظیر او مثال هیڅیري نه اوریدلی او نه مې لیدلی دی.

## (۲۴) شهادة الامام وکیع بن الجراح المتوفی ۱۹۷ھ :

دا امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله استاذ دی دده تعریف تقریب داسې کړی ثقة، حافظ، عابد. او دصحاح سته وو په اعلی روات کې دی دده شهادت د امام ابو حنیفة رحمه الله باره کې داسې رانقل شوی دی.

عن علی بن حکیم سمعت وکیعًا یقول یاقوم تطلبون الحدیث ولا تطلبون تاویله ومعناه وفی ذالک یضیع عمرکم ودینکم وددت ان یجتمع لی عشرفقه ابی حنیفة. (کتاب الامام کردری ج۱ ص ۹۷)

یعني دعلی بن حکیم نه روایت دی چې مادامام وکیع رحمه الله نه اوریدلي هغه به ویل چې ای قومه تاسو دحدیثو په تلاش کې مصروف یې او دحدیث دمعنی او تاویل تلاش او طلب نه کوی او په دې کې تاسو خپل عمر او دین ضائع کوی او زما زړه غواړي چې زماسره دامام ابوحنیفة دفقه که زیاته نوی نو لسمه حصه خو حاصله شي.

عن محمدبن طریف قال کناعندوکیع فقال یاایهاالناس لا ینفعکم سماع الحدیث بلافقه ولا تفقهون حتی تجالسوااصحاب ابی حنیفة فیفسروالکم اقاویله) یعني محدث محمدبن طریف چې دامام مسلم په اعلی رواتو کې دی، فرمایې چې مونږ د امام وکیع رحمه الله سره ناست وو هغه وفرمایل چې ای خلکو تاسو ته دحدیث اوریدل بغیر دفقه نه هیڅ کټه نه رسوي او تاسو فقاهت نشې حاصلوی ترڅو چې دامام ابوحنیفة رحمه الله داصحاب مجلس ته حاضر نشې چې هغوی درته دخپل امام اقوال تشریح او تفسیر کړی.

او په الخیرات الحسان ص۳۱ کې لیکلي شوی دی: وقال رجل عندوکیع اخطاءابوحنیفة فزجره وکیع وقال من یقول هذاکالانعام بل هم اضل یخطی وعنده ایمة الفقه کابی یوسف ومحمدوایمت الحدیث وعددهم وایمة اللغة والعربیة وعددهم وایمة الزهدوالورع کالفضیل وداودالطائی ومن کان اصحابه هؤلاءلم یکن لیخطی لانه ان اخطاءردوه للحق.

یعني یو شخص دحضرت وکیع په مخ کې وویل چې امام ابوحنیفة رحمه الله خطاشوی دی نو حضرت وکیع دغه شخص سخت تهدید کړو او زجرېې ورته ورکړه او بیایې ویل چې داسې وینا وي هرڅوک کوي دا څناور دی بلکې د دوی نه هم بدتر دي.

امام صاحب څنګه خطا شوی چې په فقه کې ورسره امامان دفقه لکه امام ابویوسف او امام محمد رحمه الله ورسره دي او دا رنګه ورسره دحدیث امامان دي او دهغوی تعداد یې بیان کړو او دلغتو امامان ورسره دی او دهغوی تعداد یې هم بیان کړو او په زهد او ورع کې دفضیل بن عیاض او داود الطایې غوندې اشخاص ورسره دی نو چاسره چې داسې ملګری وي نو هغه څنګه خطا کیږي که چرته خطا شوی وی نو دغه ملګرو به بیرته حق ته متوجه کړی وائی.

بس غیر مقلدین دي ددغه امام وکیع بن الجراح ریس المحدثین دفعل نه عبرت حاصل کړي چې څوک دامام صاحب گستاخي اوبي ادبي کوي هغوی سره مناسب ده چې ورتـه ځناور وویلي شي اوورتل شي اودمجالسونه وشړلی شي او ورسره مجلس خوراک شکاک ونه کړای شي او ورسره تگ راتگ بند کړی شي.

## (۲۵) شهادة الامام ابن ابی لیلی:

یعني محمدبن عبدالرحمن المتوفی ۱۴۸ھ کوم چې دسنن اربعه وو په اعلی رواتوکې شامل دي اوسره له دې چې دامام صاحب همعصره دی اوورسره یې ډیرې علمي مناقشی کړي اوباوجود ددې دهغه شهادت اوبیان په باره دامام صاحب کې داسې رانقل شوی دی.

عن علی بن الجعدقال سمعت ابایوسف یقول کنانختلف اولاًالی ابن ابی لیلی فوقعت الی منه جفوة فترکت الاختلاف الیه وجعلت الاختلاف الی ابی حنیفة فلقینی ابن ابی لیلی فقال یایعقوب کیف صاحبک فقلت صالح فقال لی الزمه فانک لم ترمثله فقهًاوعلمًا)(کتاب الامام موفق ج۲ ص۳۵ )

یعنې علی بن جعد فرمایې چې دامام ابویوسف رحمه الله نه مې اوریدلي دي هغه به ویل چې مونږ به اول کې ابن ابی لیلی ته راتلو دحدیث زده کړی لپاره بیایې راته څه نوعه سختی معلومه شوه اوپرې مې ښوداوامام ابوحنیفة ته راتلم لگ څه وخت بعدراسره دابن ابی لیلی ملاقات وشواوراته یې وویل چې یعقوب ستاصاحب اوملگری څرنگه دي ماورتـه وویـل چې صالح اوخیرخواه دی، نوراتـه یې وویـل چې دهغـه سره صحبت اوملگرتیالازم کړه ځکه چې وبه نه وینی ته دده مثل په فقه اونه په علم کې.

## (۲٦) شهادت الامام عبدالرحمن بن مهدی المتوفی ۱۹۸ھ :

تقریب دده تعریف په داسې الفاظوسره بیان کړی دی (ثقه، ثبت ، حـافظ،عارف بالرجـال) اوپه تذهیب کې ورته ابن المدینی اعلم الناس بالحدیث ویلی دي اوهم یې دده دحافظي څخه شل زره احادیث لیکلې دي دده شهادت اوبیان دامام اعظم رحمه الله باره کې په لاندې عبارت کې داسې رانقل شوی دي.

عن صدقة سمعت عبدالرحمن بن مهدی قال کنت نقالاًللحدیث فرایت سفیان الثوری امیرالمؤمنین فی العلماءوسفیان بن عیینه امیرالعلماءوشعبة عیارالحدیث وعبد الله بن المبارک صراف الحـدیث ویحیی بن سعید قاضی العلماءواباحنیفة قاضی قضاة العلماء.(کتاب الامام موفق ج ۲ص٤٥).

یعني صدقة فرمائي چې د عبدالرحمن بن مهدی نه اوریدلي دي ویل به ئی چې زه صرف ناقل الحدیث یم او سفیان ثوری مي امیر المؤمنین فی العلماء وپیژندلو او سفیان بن عیینه مي امیر العلماء وپیژندلو او عبد الله ابن مبارک مي هراف الحدیث وپیژندلو او یحی بن سعید القطان می قاضی العلماء وپیژندلو او شعبة مي په عیار الحدیث وپیژندلو او امام ابو حنیفة رحمه الله مي په قاضي قضاة العلماء یعني د علماء او و د قاضیانو قاضی) په لقب کې وپیژندلو نو لګ فکر کولو نه بعد د انسان عقل پدې فیصله کوي چې ددې شخصه خونور فوق بل توثیق او شهادت نشته کوم چې عبد الرحمن بن مهدی د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله کړی دی.

## (۲۷) شهادة الامام عفان بن سیارالقاضی المتوفی ۱۸۱ھ :

دادلوی محدثینو نه دی او د نسایي په او چتو رواتو کې شامل دی دده شهادت او بیان د امام ابو حنیفة رحمه الله باره کې: عن اسحاق بن ابراهیم قال سمعت عفان بن سیاریقول مثل ابی حنیفة مثل الطبیب الحاذق یعرف دواء کل داء. (کتاب الامام موفق ج۲ ص۴۹) یعني اسحاق بن ابراهیم فرمایي چې د عفان بن سیار می اوریدلي دی هغه به ویل چې د امام ابو حنیفة رحمه الله مثال دیو حاذق او ماهر طبیب دی چې د هر مرض دواء او علاج پیژني.

## (۲۸) شهادة الامام فضل بن موسی السینانی المتوفی ۱۹۲ھ:

ثقة او ثبت او د اسحاق بن راهویه په اساتذه وکې او د صحاح په اعلی شیوخ کې شامل دی دده بیان او کواهي د امام ابو حنیفة رحمه الله په باره کې: عن احمد بن یحی الباهلی سمعت الفضل بن موسی السینانی یقول کنا نختلف الی المشائخ بالحجاز والعراق فلم یکن مجلس اعظم برکة ولا اکثر نفعًا من مجلس ابی حنیفة. (کتاب الامام موفق ج۲ ص۵۰). یعني احمد بن یحیی نه روایت دی چې وایي ما د فضل بن موسی نه اوریدلي چې هغه به ویل چې مونږ د حجاز او د عراق مختلفو مشائخو مجلسو ته حاضریدلو لیکن هیڅ یو مجلس دلوی برکت خاوند او د زیاتی فائدې واله د حضرت امام ابو حنیفة رحمه الله د مجلس نه بل نه وه)

## (۲۹) شهادة الامام زهیربن معاویة الکوفی المتوفی ۱۷۳ھ :

داثقة او ثبت او دائمة صحاح په اعلی شیوخ کې شامل دی او په تذهیب کې د شعیب بن حرب په قول باندې دادشلولوی کبار علماء الحدیث جماعت کې زیات احفظ وه.

دده بيان اوشهادت دامام اعظم رحمه الله باره کې په لاندې ډول دی: عن خلادالکوفی قال جئت یومًاالی زهیربن معاویة فقال لی من این جئت قلت من عندابی حنیفة فقال و الله لمجالستک ایاه یومًاانفع لک من مجالسی شهرًا. (کتاب الامام موفق ج۲ ص ۲۵)

یعنې خلادکوفی چې دترمذی په راویانو کې دی فرمايلي چې زه یوه ورځ دزهیربن معاویة مجلس ته حاضرشوم اوهغوی راته وویل دکومه ځای راغلی ماورته وویل چې دامام ابوحنیفة رحمه الله دمجلس نه یاهغه وویل چې په الله قسم چې دهغه سره ستایوورځ مجلس اوناسته زمونږدیومیاشتې مجلس اوناستی نه درته ډیره فائدمنده ده.

**(۳۰) شهادة الامام ابن السماک رحمه الله:**

یعنې محمدبن صبیح الکوفی المتوفی ۱۸۳ه کوم چې دکوفی په لویومحدثینو کې دی اودهشام بن عروة په تمامو شاګردانو کې یوبهترین مؤثرواعظ وه په المیزان کې دامام ذهبی رحمه الله په قول باندې دابیان دی چې یوورځ دهارون الرشید په مجلس کې یې وعظ شروع کړوترډې چې ده باندې دبې هوشي حالت عارض اوطاری شوه دده ګواهي اوبیان دامام ابوحنیفة رح په باره په لاندې ډول سره ده: عـن يحـيى بـن ايـوب العابدسمعت ابن السماک یقول اوتادالکوفة اربعة سفیان الثوری ومالک بن المغول وداودالطائی صاحب ابی حنیفة وابوبکرالنهشلی وکلهم جالس اباحنیفة وحدث عنه)( کتاب الامام موفق ج۲ ص۳۹ )

یعنې یحیی بن ایوب عابدچې دادمسلم اوأبی داودپه اعلی روات کې دی ده فرمايلي دي چې دابن السماک نه مې اوریدلي چې دکوفی ستنی څلوردي سفیان ثوري اومالک بن مغول اوداودالطائی اوابوبکرنهشلي داڅلورواړه دامام ابوحنیفة دمجلس نه مستفیداوفائده اخستونکې دي اودهغه نه یې احادیث اوریدلي دي

**۳۱-۳۲-۳۳-۳۴-۳۵:** مجموعه ؤشهادت دلاندې پنځولوی لوی محدثینوکوم چې ده صحاح سته وؤپه اعلی رواتو کې دی ددوی بیان اوشهادت دامام اعظم ابوحنیفة رحمه الله باره په لاندې عبارت کې داسې رانقل شوي دي.

ذكرالسمعاني عن شدادبن حكيم عن زفرقال كبراء المحدثين مثل ذكريابن ابي زائدة وعبدالملک بن سليمان والليث بن ابي سليم ومطرف بن ظريف وحصين بن عبدالرحمن وغيرهم يختلفون اليه ويسالونه عمانابهم من المسائل وماشتبه عليهم من الحديث (كتاب الامام كردري ج۲ ص۱۱۰)

يعنې حافظ عبدالكريم السمعاني المتوفى ۵۶۲ھ كوم چې لوى محدث او مؤرخ دى دحكيم بن شدادنه يې روايت كړى چې زفرفرمايلي دي چې لوى لوى محدثين مثلاً ذكريابن ابى زائدة المتوفى ۱۴۷ھ او عبدالملک بن سليمان المتوفى ۱۴۷ھ اوليث بن ابى سليم ۱۴۹ھ ۱۴۸ھ المتوفى ۱۴۸ھ اومطرف بن ظريف المتوفى ۱۴۳ھ اوحصين بن عبدالرحمن المتوفى ۱۳۶ھ وغيرهم داټول په مختلف وختونوكې امام ابوحنيفة ته تلەراتله اودهغه مشكلو مسئالو چې دوى ته به راپيښى شوى دي دهغوي دحل پوښتنې به يې ترينه كولى اوكوم احاديث چې به په دوى مشتبه شوى وه دهغوى معلومات به يې دامام صاحب نه كولو.

## (۳۶) شهادت الامام ابوسفيان سعيدبن يحيى الحميرى المتوفى ۲۰۲ھ:

دادلوى پرى محدث اسحاق بن راهويه استاذاو دامام بخارى اوترمذى په اعلى روات كې دي ددې بيان اوګواهي دامام اعظم ابوحنيفة رحمه الله باره داسې ده:

عن ابن ابى شيخ سمعت اباسفيان بن يحى الحميرى الواسطى يقول انه خيرالامة تهياله مالم يتهيا لاحد من كشف المسائل الفقهية وتفسيرالاحاديث المبهمة)(كتاب الامام كردرى ج۱ ص ۱۰۰)

يعنې ابوسفيان فرمايې چې امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله ددې امت لوى امام اودفقهى مسائل په حل اوكشف اووضاحت اودمبهمو احاديث په تفسيركې چې دته الله تعالى كومه درجه وركړى وه هغه هيچاته نه وه حاصله.

## (۳۷) دنضربن شميل النحوى المتوفى ۲۰۳ھ :

داهم ثقة اوثبت اودصحاح سته په اعلى شيوخ كې شامل دى دده شهادت اوګواهي اوبيان دامام ابوحنيفة په باره كې داسې دى : روى الخطيب عن الحسن بن الحارث قال سمعت نضربن شميل يقول كان الناس ينام فى الفقه حتى ايقظهم ابوحنيفة بمافتقه وبينه ولخصه. (تبيض الصحيفة ص ۲۰).

يعنې حسن بن حارث فرمايې چې مادنضربن شميل نه اوريدلي دي ويل به يې چې ټول خلک دفقه باره كې اوده وو ترڅو پورې چې امام ابوحنيفة رابيدار كړل اوتمام اموريې ورته واضح اوبيان او خلاصه كړه.

**(۳۸) شهادة الامام یحیی بن ادم المتوفی ۲۰۳ھ:**

دده تعریف تقریب داسې کړي ثقة ،حافظ،فاضل،اودا دائمه صحاح په روات کې هم شامل دی دده بیان دحضرت امام ابو حنیفة رحمه الله باره داسې دی: عن محمدبن المهاجرسمعت یحیی بـن ادم یقـول اجتهـدفی الفقه اجتهاداً لم یسبق الیه احد فهدی الله سبیله وطریقه وانتفع الخاص والعـام بعلمـه. (کتـاب الامـام کردری ج۱ ص۹۸).

یعنې محمدبن مهاجروایې دیحی بن ادم نه مې واوریدل هغه ویل چې امام ابو حنیفة رحمه الله په فقه کې داسې اجتهادوکړوچې دده نه پخواهیچانه وؤکړی اوالله تعالی ورته داجتهادلارې داسې کلاوکړی وې چې هرخاص اوعام ترینه مستفیدشوه.

عن یحیی بن ادم قال کان جریربن معاویة من کبراءالکوفة فی الحدیث والفقه اذاذکره عظمه ومدحه فقلت له مالک اذاذکرت غیره لم تمدحه مثل هذاقال لان منزلـةً لیسـت کمنزلتـه فیمـاانتفع بـه النـاس فاخصه عنده ذکره لیرغب الناس فی الدعأله. (مناقب کردری ج۲ ص۱۰۳)

یعنې یحی بـن ادم وایې چې جریـربن معاویـة چې دکـوفی پـه اکابرمحدثینواوفقهاووکې دې دده په حضورکې به چې کله دامام ابو حنیفة رحمه الله تذکره اویادوشونوده به دهغه زیات تعظیم اومدح اوصفت بیانولوماورته وویل چې څه باعث دی چې ستاپه حضورکې دامام ابو حنیفة نه بغیربل څوک ذکراویادشي ته یې مدحه اوصفت نه کوې هغه وویل ځکه چې هیڅ یوتبه دده درتبه په شان نه ده ځکه دده دکتابواودعلم نه الله پاک ډیره زیاته نفعه اوفائده خلکوته رسولې ده نوددې وجې نه چې دده یادوشي نوزه ئې خاص مدح اوصفات ذکرکوم چې دخلکواومینه پیداشي ده سره اودعاوې ورته وکړي رغبت وکړي.

عن اسحاق بن ابی اسرائیل سمعت یحی بن ادم قال اتفق اهل الفقه والبصرانه لم یکن احدافقه من ابی حنیفة ) (کتاب موفق ج ۲ص۴۱)

یعنې اسحاق بن ابی اسرائیل وایې چې مادیحیی بن ادم خبره اوریدلی ده چې دټولو اهل فقه اوداهل بصیرت په دې اجماع ده چې دامام ابو حنیفة رحمه الله نه بل هیڅوک لوی فقیه نشته.

(عن یحی بن اکثم سمعت یحی بن ادم یقول کان کلام ابی حنیفة فی الفقه لله ولوکان یشـوبه شی مـن امر الدنیا لم ینفذکلامه فی الافاق کل هذا النفاذ مع کثرة حساده ومتنقصیه)

يعني يحيى بن اكثم چې دترمذی په رواتو کې دی روايت کړی ديحی بن ادم نه چې هغه به فرمايل چې په فقه کې دامام ابو حنيفة کلام محض دخدای درضالپاره وه او که چيرته يو زره معمولی شائبه ددنياوی امر يکې وي نو بيا دده کلام سره ددې نه چې دده حاسدان اونقص بيانوونکې زيات دی اطرافو او اکنافو دعالم او دنيا ته به نه رسيدلو.

## (۳۹) شهادة الامام يزيدبن هارون المتوفی ۲۰٦ھ :

دده تعريف تقريب په ثقة، متقن، عابد، الفاظو سره ليکلي دي او تذهيب کې په احد الاعلام الحفاظ المشاهير سره ليکلې دي او دصحاح سته په اعلى رواتو کې دي دده بيان په باره دامام ابو حنيفة رحمه الله کې داسې رانقل شوی دی.

عن احمدبن اسماعيل البغدادی سمعت يزيدبن هارون سئل متى يحل للرجل ان يفتى فقال اذاكان مثل ابی حنيفة قال فقيل له ياباخالدتقول مثل هذافقال نعم ولااکثرمن احدافقه منه ولااورع منه. (کتاب موفق ج۱ ص۹۱)

يعني احمد بغدادی وايې چې ديزيد بن هارون نه چاپوښتنه وکړه چې دفتوی ورکولو جواز کوم شخص جائزدی هغه وويل هرڅوک چې دامام ابو حنيفة غوندې شي بل وخت ورته چا وويل چې ای ابوخالد تا داسې خبره کړی هغه ورته وويل هو - بلکه دده نه بل هيڅوک زيات فقيه او تقوادار ه نشته.

عن عبد الله بن ابی لبيدقال کناعنديزيدبن هارون فقال المغيرة عن ابراهيم فقال رجل حدثناعنه عليه السلام فقال يزيديا احمق هذا تفسيرقوله ﷺ وماتصنع بالحديث اذالم تفهم معناه ولکن همتکم للسماع ولوکانت همتکم للعلم لنظرتم فی کتب الامام واقاويله فزجرالرجل واخرجه من مجلسه )(مناقب کردری ج۱ ص۱۰۱).

يعني عبدالله بن ابی لبيد وايی چې مونږه ديزيد بن هارون سره مجلس کې وو چې حضرت مغيره دابراهيم النخعی نه يو قول رانقل کړو يو کس ورته وويل چې مونږته دپيغمبر Δ حديث بيان کړه پدې وخت کې دغه کس ته يزيدبن هارون وويل ای احمق دامغيره چې بيان کړو دا دحديث الرسول Δ تفسير او تشريح وه ته چې دحديث پرمعنی اومفهوم باندې پوه نشې نو په الفاظ الحديث باندې څه کوی ستاسو کوشش او محنت او همت ټول فقط

داوریدودی که چرته ستاسو همت او کوشش دعلم لپاره وي نوتاسو به دامام اعظم ابو حنیفة رحمه الله په کتابونو او اقوالو کې نظر کړی وی بیائې دغه شخص ورتلو او تهدیدئې کړو او دخپل مجلس نه ئې وشړلو.

**(۴۰) شهادة الامام امام الجرح والتعدیل یحیی بن معین رحمه الله المتوفی ۲۱۰ھ:**

دادمحدثینو لوی پیشوا او اعلی مقتدا دی دده تعریف تقریب داسې کړی ثقة، حافظ، مشهور، دده شهادت او کواهي دامام اعظم رحمه الله په باره کې داسې ده: قال الامام الحافظ الناقد یحیی بن معین الفقهاء اربعة ابوحنیفة وسفیان ومالک والاوزاعی القراءة عندی قراءة حمزة والفقه فقه ابی حنیفة علی هذا ادرکت الناس. (الخیرات الحسان ص۳٤)

یعنې امام المحدثین یحیی بن معین فرمایې چې فقهاء څلور دي ابو حنیفة سفیان امام مالک او اوزاعی رحمه الله او بیایې وویل چې زما په نیز قراءة معتبره د حضرت قاری حمزة او فقه د حضرت امام ابو حنیفة رحمه الله ده او په هم دې باندې مې تول خلک موندلی دي چې پدې قراءة او فقه باندې عمل کوي نو لک فکر کول مناسب دی چې امام یحی بن معین په اندازه او طریقه باندې امام صاحب ته په نورو فقهاء ترجیح ورکړه ده.

**(۴۱) شهادة الامام علی بن عاصم المتوفی ۲۱۱ھ :**

دادامام احمد او علی بن المدینی استاذ او دابوداود او ترمذی او ابن ماجه په اعلی رواة کې دی او د تذهیب په قول دده درس مجلس په کې به دیرش زرو څخه زیات طالبان حاضروه دده کواهي او توثیق دامام ابو حنیفة باره کې داسې دی: عن ابی العباس سمعت علی بن عاصم یقول لووزن علم ابی حنیفة اهل زمانه لرجح علم ابی حنیفة. (کتاب الامام موفق ج۲ ص۴۷)

یعنې علی بن عاصم فرمایې که چرته دامام ابو حنیفة رحمه الله دزمانی د تولو خلکو علم دده دعلم سره موازنه کړای شي نو دامام ابو حنیفة رحمه الله علم به پرې غالب شي.

(عن محمدبن المهاجرسمعت علی بن عاصم یقول اقاویل ابی حنیفة تفسرالعلم فمن لم ینظرفی اقاویله احل بجهله الحرام وحرم الحلال وضل الطریق.

یعنې محمد بن مهاجر فرمایې چې دعلی بن عاصم خبره مې اوریدلې چې ویل به یې چې دامام ابو حنیفة رح اقوال دعلم لپاره تفسیر او وضاحت دی کوم شخص چې دمسائلو حل دده داقوالو په رڼا کې ونه کړي نو دیر حرام به حلال کړی دجهل په وجه او حلال به حرام کړي او داسلام سیده لاره به ترینه ورک شي.

نوامام المحدثين يوه قاطعه فيصله وکړه چې ديرځله دعدم فقاهت په صورت کې اودعدم علم په فقه دامام اعظم ابوحنيفة باندې به يو شخص حلالو ته دحرامو او حرامو ته دحلالو فتوى ورکوي او ځان به صراحةً دضلوا اواضلو مصداق جوړوي.

**(۴۲) شهادة الامام ابوعاصم النبيل المتوفى ۲۱۴هـ:**

دده تعريف تقريب داسې کړى ثقة،ثبت،اودصحاح سته په اعلى رواتو کې شامل دى دده بيان او کواهي دامام ابوحنيفة په حقله داسې رانقل شوى ده.

عن بشربن يحيي قيل لابى عاصم النبيل ابوحنيفة افقه ام سفيان قال هوو الله افقـه مـن ابـن جـريج مارات عينى رجلاًمثله اشداقتداراًعلى الفقه )(كتاب كردرى ج١ ص١١٦ )

يعنې بشربن يحيى وايې چې دابوعاصم نبيل نه چاپوښتنه وکړه چې فقاهت دامام ابوحنيفة زيات وه اوکه دسفيان ثوري هغه ورته وويل په الله قسم چې امام ابوحنيفة دابن جريج نه هم زيات افقه وه(دادمکې مکرمې يو فقيه او مجتهد وه)اوزما سترګو تر اوسه پورې داسې شخص نه دى ليدلى چې دهغه قدرت په فقاهت باندې زيات وى.دامام ابو حنيفة رحمه الله دفقاهت نه.

**(۴۳) شهادة الامام عبدالعزيزبن ابو رواد المتوفى ۱۵۹هـ :**

دبخارى اودسنن اربعه په اعلى شيوخ او اساتذه وو کې دى دده تقريب کې داسې تعريف بيان شوى دى صدوق عابد،دده شهادت او کواهي او توثيق دامام صاحب په حق کې: وقـال الحـافظ عبـدالعزيزبن ابى رواد من احب اباحنيفة فهو سنى ومن ابغضه فهو مبتدع وفى رواية بيننا وبين الناس ابوحنيفة فمن احبه وتولاه علمناانه من اهل السنة ومن ابغضه علمناانه من اهل البدعة.(الخيرات الحسان ص٣٥)

يعنې عبدالعزيزبن ابى روادفرمايې چې څوک دامام ابوحنيفة سره مينه لرى هغه سنى دى او څوک چې ورسره بعض او حسد لري هغه بدعتى دى اوپه يو روايت کې داسې دى چې زمونږ او دخلکو ترمنځ فرق امام ابوحنيفة رحمه الله دى څوک چې ورسره مينه او دوستى لرى نوزمونږ په علم کې هغه اهل السنة دى اوچې څوک ورسره بعض ساتي زمونږ په علم کې هغه اهل البدعته دى.

قال ابراهيم بن معاوية الضريرمن تمام السنة حب ابى حنيفة وقال كان يصف العدل ويقول به وبـين للناس سبيل العلم واوضح لهم مشكلاته.

يعني دابراهيم بن معاوية قول دى چي داهل السنة والجماعت كمال امام ابوحنيفة سره مينه ده هغه به دعدل بيان كولو اودعدل نه ډكي فتوى به يې وركولي اوخلكوته يې دعلم لاري پرانستى وي اودهغوى تمام مشكلات يې ورته اسانه كړى وه.

## (۴۴) شهادة الامام عبدالله بن داودالخريبى المتوفى ۲۱۳ھ:

ثقة، عابد، اودامام بخاري اودسنن اربعه وويه روايت كړي دى دده شهادت اوتوثيق دامام اعظم ابوحنيفة باره كې په لاندې ډول دى: روى الخطيب عن محمدبن سعدالكاتب قال سمعت عبد الله بن داودالخريبي يقول يجب على اهل الاسلام ان يدعوا الله لابى حنيفة فى صلاتهم قال وذكرحفظ عليهم السنن والفقه. (تبيض الصحيفة ص١٤).

يعني محمد بن سعد چې دمسلم اوسنن اربعه وو شيوخ څخه دى فرمايلي دي چې ما دعبدالله بن داود الخريبى څخه اوريدلي چې هغه به ويل چې په ټولو مسلمانانو باندې فرض ده چې په خپلو مونځونو كې امام ابوحنيفة ته دعاوي وكړي وريسې داخبره هم ياده كړه چې هغه ټولو اهل سلام لپاره پوره احاديث اوفقه محفوظ كړى.

اوپه الخيرات الحسان ص ۳۶ كې داسې وينار انقل شوي ده چې (وقيل لبعض الائمة مالك تخص اباحنيفة عندذكره بمدح دون غيره قال لان منزلته ليست كمنزلة غيره فياانتفع الناس بعلمه فاخصه عند ذكره ليرغب الناس بالدعاء له)

يعني بعض امامانو ته چې دامام ابوحنيفة تعريف اومدح كولونو ورته به وويل شو چې ته ولي دده مدحه كوي اودنوروامامانو نه كوى هغه به ورته وويل چې دده رتبه دنوروپه شان نه ده ځكه چې دده دعلم څخه خلكو ډيرى لوى فائدې اخيستي دي اوزه خاص دده مدحه اويادونه ددې لپاره كوم چې دخلكو رغبت اومينه پيدا شي په دُعاءكولو كې دده لپاره.

## (۴۵) شهادة الامام مكى بن ابراهيم المتوفى ۲۱۵ھ :

چې ثقة، ثبت، اودصحاح سته وو په اعلى روات كې دى دده شهادة اوبيان دامام ابوحنيفة باره كې په لاندې شكل دى:

روى الخطيب عن اسماعيل بن محمدالفارسى قال سمعت مكى بن ابراهيم ذكراباحنيفة فقال كان اعلم اهل زمانه)(تبيض الصحيفة ١٤)يعني اسماعيل الفارسى فرمايي چې دمكي بن ابراهيم نه مي واوريدل كله يې چې دامام ابو حنيفة تذكره اويادونه كوله چې امام ابو حنيفة په خپل وخت كې دتمام اهل زمانى نه لوى عالم وه) اوپه كتاب موفق ج ١ص٢٠٣ كې داسې بيان رانقل شوى دى: هومكى بن ابراهيم البلخى امام بلخ دخل الكوفة سنه ١٤٠ھ ولزم اباحنيفة وسمع منه الحديث والفقه واكثر عنه الرواية وكان يحب اباحنيفة حبًا شديداً).

يعني دامكي بن ابراهيم بلخي چې دبلخ امام وه داپه كال ١٤٠ھ كې كوفى ته داخل شو اودامام ابو حنيفة صحبت اوملكرتيايې اختياركړه اودهغه نه يې حديث اوفقه واوريدله اوزيات حديث يې ترينه روات كړى اودده دهغه سره ډيره زيات دزړه دكومې محبت اومينه وه په كمالات امام ابو حنيفة رحمه الله ٤٣١ كې دبشربن اسماعيل بيان دى بشربن اسماعيل دزمانې چې يو ځل مونږه دمكى بن ابراهيم مجلس كې ناست وومكى بن ابراهيم ووفرمائيل چې حدثنا ابو حنيفة يعني امام ابو حنيفة رحمه الله راته حديث بيان كړى نويو كس دغه مجلس كې وويل چې حدثنا عن ابن جريج ولاحدثنا عن ابى حنيفة يعني مونږه ته دابن جريج په حواله حديث بيان كړه ندابو حنيفة رحمه الله په حواله – جواب كې مكى بن ابراهيم وويل چې (انا لانحدث السفهاء)

يعني مونږ احمقو او بى وقوفو خلكو ته حديث نه بيانه وو بيا مكى بن ابراهيم ترهغه وخته پورې حديث بيانول بند كړل چې ترڅو دغه بى وقوف سړى مجلس كې وو چې كله وتلو بيائې شروع وكړه اووى فرمايل (حدثنا ابوحنيفة ومرّ فيه).اوس هم ددې بى وقوفه اواحمق اولاد شته چې يوه برخه ئې غيرمقلدين دي.

## (٤٦) شهادة الامام خلف بن ايوب العامرى المتوفى ٢١٥ھ :

دامحدث اوفقيه اوهم دامام ترمذى په دوات كې شامل دى دده بيان اوګواهي دامام ابو حنيفة په باره كې په لاندې عبارت كې داسې بيان شوى ده: عن وهب بن ابراهيم القاضى قال خلف بن ايوب الكوفى كنت اختلف الى مجالس العلماء فربماسمعت شيئالااعرف معناه فيغمنى ذالک فاذا انصرفت الى مجلس ابى حنيفة سالت عماكت لااعرفه فيفسرلى ذالک فدخل فى قلبى من بيانه وتفسيره النور) (كتاب امام موفق ج ٢/ ص٤٠).

يعني خلف بن ايوب ويلي دي چې زه به دعلماء مجالسو ته تلم راتلم او حاضري به مې پکې کوله بيا به مې ډير ځله داسې خبري واوريدلې چې زه به يې په معنی باندې نه پوهيدلم او دهغه نه به ما ته يو غم حاصل شو خو بيا به چې کله دامام ابو حنيفة مجلس ته حاضر شوم او دهغه نه به مې پوښتنه وکړه نو دهغه دبيان او تفسير او وضاحت نه به مې په زړه کې روښنايي او نور داخل شوه.

## (۴۷) شهادة الامام على بن المدينى المتوفى ۲۳۴ھ :

دادامام بخاری استاذ او تقريب کې يې دتعريف داسې شوی دی (ثقة، ثبت، امام، اعلم اهل عصره بالحديث وعلمه حتى قال البخاری مااستصغرت نفسی الاعنده )

يعني دايو لوی ثقة او امام او دخپل زماني لوی ماهر او لوی عالم دحديثوه دنورو ټولو محدثينو نه تردې چې امام بخاری دده باره کې ويلي چې ما خپل ځان بغير دابن المدينی نه دبل هيچا مخ کې حقير او وړوکی نه دی حساب کړی) نو دداسې شخص ګواهي او توثيق دامام ابو حنيفة رحمه الله باره کې په لاندې طور را نقل شوی دی. (قال الامام على بن المدينى ابوحنيفة روى عنه الثورى وابن المبارک وحمادبن زيدوهشام ووکيع وعبادبن العوام وجعفربن عون وهوثقة لاباس به )(الخيرات الحسان ص ٧٤)

يعني على بن المدينی فرمايي چې دامام ابو حنيفة رحمه الله نه امام ثوری او عبد الله بن مبارک او حمادبن زيد او هشام او وکيع او عبادبن العوام او جعفربن عون رحمهم الله دغه ټولو احاديثو روايت کړی دی او په اخر کې فرمايي چې هو (امام ابو حنيفة، ثقة لاباس به )

نو لک دانصاف نظر يکاردی چې دامام بخاری رحمه الله استاذ او اعلی شيخ دامام ابو حنيفة رحمه الله څرنګه صاف او واضح توثيق کړی چې دامام صاحب په ثقاهت کې هيڅ کوم شک او احتمال ندې پاتې شوی او لويو مسلمو محدثينو ترينه دحديثو روايت کړی دی.

## (۴۸) شهادة الامام اسحاق بن راهويه المتوفى ۲۳۸ھ :

تقريب کې دده تعريف داسې شوی ثقة، حافظ، مجتهد، او په تذهيب کې دي چې امام احمد رحمه الله فرمايي چې ما داسحاق نظير ندی ليدلی هغه زمونږ دايمة المسلمين څخه دی) او دادصحاح سته وو په اعلی شيوخ کې دی دده بيان او ګواهي دامام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په باره کې داسې را نقل شوی دی.

عن علی بن اسحاق بن ابراهیم الحنظلی سمعت ابی یقول مارایت احداً اعلم بالاحکام والقضایامن ابی حنیفة رحمه الله. [کتاب الامام موفق ج۲ ص۵۸].

یعني علی بن اسحاق فرمايي دی چې مادخپل پلار اسحاق بن ابراهیم بن راهویه نه اوریدلی هغه به ویل چې مادامام ابوحنیفة نه بل هیڅ یولوی عالم په احکام اوقضایااووباندې نه دی لیدلی.

## (۴۹) شهادة الامام عبیدبن اسباط المتوفی ۲۵۰ھ :

دادابن ماجه اودترمذی په شیوخ کې راغلی دی دده ګواهي اوبیان دامام ابوحنیفة په باره کې په کتاب امام موفق ج۲ ص۴۲ کې داسې مروی دی: حدثنی عبیدبن اسباط قال کان ابوحنیفة سیدالفقهاءولم یغمزفی دینه الاحاسد وباغی شر. یعني عبیدبن اسباط فرمايلي دي چې امام ابوحنیفة سیدالفقهاء دی اودده دامور دینیه باره کې د حاسد او شریر نه بغیر بل هیڅوک نکته چینی اوچون وچرانه کوي.

## (۵۰) شهادة الامام خارجة بن مصعب:

خارجه بن مصعب فرمائي چې دزروعلماء ووسره می ملاقات شوی خوزیات هوښیارا وعقلمند می پکې درې یاڅلورپه نښه کړي دي چې یوپکې حضرت امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله دی اوخلیفة هارون الرشید رحمه الله فرمايلي دي چې امام ابوحنیفة رحمه الله دعقل په سترګوباندې کوم شیان لیدل نورو خلکو دسرپه سترګونه لیدل (تذکرة النعمان وسیرت ائمة اربعة)

چشم بداندیش که برکنده باد عیب نمایدهنرش درنظر

## دطالب العلم منصوراحمدعرف کاکاجان ابن فیروزجان وینا دامام ابوحنیفة رحمه الله په باره کې:

شان د امامت او د عظمت لري

ښکلی فقاهت او ثقافت لري

لوی مجتهدین ئې اجتهاد مني

شاگردانو کې ابو یوسف اومحمد لري

وکیع بن جراحه اویحی بن معین ئې چې توثیق کوي

بل په شاگردانوکې حضرت مکي اوابن المبارک لري

امام شافعی اواحمدبن حنبل ئې چې تعدیل کوي

نور دشیخ رحیم غوندې اشخاص ترجمانان لري

دالرخواره متعصب غیرمقلدین ئې چې تنقیص کوي

دمنصور احمد په څیر به تر ابده خادمان لري



بسم اللہ الرحمن الرحیم

الحمدللّٰہ وحدہ والصلوۃ والسلام علي من لانبي بعدہ۔

محترمو مسلمانانو! لکه څرنګه چې داهل سنت والجماعت پدې باندې پوره یقین او ایمان دې چې لکه څرنګه چې زمونږ پیغمبر محمد ﷺ د ټولو پیغمبرانو څخه بهتر دی نو همدارنګه داهل سنت والجماعت په دې باندې هم پوره یقین او ایمان دی چه زمونږ د پیغمبر ﷺ صحابهٔ کرام رضی اللہ عنہم د نورو پیغمبرانو د صحابه وو څخه بهتر دی، زمونږ پیغمبر ﷺ ازواج مطهرات د نورو پیغمبرانو دازواجو څخه بهتر دی، په اهل بیتو کې یو حضرت امام حسین رضی اللہ عنہ دی د حضرت امام حسین رضی اللہ عنہ فضایل په مختلفو الفاظو باندې په احادیثو کې راغلي دي.

مثلاً: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ داحدیث تقریبًا د اتو صحابه وو څخه روایت دی:

| | |
|---|---|
| ۱-حضرت ابوسعید خدری رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | مسنداحمد |
| ۲-حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ۳- حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ٤-حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر |
| ٥-حضرت ابوهریرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ٦- حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | طبرانی فی الاوسط |
| ۷-حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | طبرانی فی الاوسط |
| ۸-حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | ابن عدی |

همدارنګه رسول اللّٰه ﷺ فرمایي چې: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ ، وَأَبُوهُمَا خَيْرٌ مِنْهُمَا داحدیث تقریبًا د څلورو صحابه وو څخه روایت شوی دی.

| | |
|---|---|
| ۱- حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا | ابن ماجه،مستدرک |
| ۲- حضرت مالک بن حویرث رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | طبرانی فی الکبیر |
| ۳-حضرت قرة بن ایاس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | طبرانی فی الکبیر |
| ٤- حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | مستدرک |

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي چې: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ الا ابنى الخالة عيسي بن مريم ويحى بن زكريا و فاطمة سيدة نساء أهل الجنة الا ما كان من مريم بنت عمران. دا حدیث تقریبًا دریو صحابه وو څخه روایت شوی دی:

| ۱-حضرت ابوسعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | مسنداحمد، صحیح ابن حبان، مسندابي یعلی |
|---|---|
| ۲- حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | مجمع الزوايد |
| ۳-حضرت امام حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | مجمع الزوايد |

په دې کې بعضې احادیث صحیح او بعضې حسن، او بعضې د ضعیف په مرتبه کې دي، حافظ سیوطي رحمه الله د دې حدیثونو مضمون ته متواتر ویلی دی، همدارنګه په نورو احادیثو کی د حضرت امام حسین رضی الله عنه فضایل مختلفو مضمونو سره بیان شوی دی.

د دی عظیم صحابی د شهادت واقعه دومره دردناکه ده چی د دی په اوریدلو باندې یواځې مسلمان نه بلکې غیرمسلمان ئی چی واوری هم دریږی لکه نن سبا په مسلمانانو کې یوه د خوارجو ډله داسې هم راپیدا شوی ده چې هغوی دې مظلوم شهید او د ده فدائي ملګروته ملامته وائي او د دوی په خلاف باندی د دوی د قاتل (یزید) مدحې کوي داسی مسلمانان به څرنګه حضرت امام حسین رضی الله عنه په سرداری کې د حشر په انتظار وي؟ د دوی حشر به د اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ مطابق- د یزید او د یزیدیانو سره وي.

## افراط اوتفریط

یوه ډله د روافضو ده چې دا عملي یزیدیان دی او بله ډله د روافض پلوو ده چی دوی زباني یزیدیان دي. په خوله باندی یزید ته کافر وائی لکن اعمال د یزید په شان کوی یزید شراب خور وو دوی هم شراب خوري یزید د بیت الله شریف غلاف وسوزولو او په بیت الله شریف باندی یې د هغه وخت توپونه (په منجنیق کی تیګی) وورولې او روافضو هم لږه زمانه مخکی د بیت الله شریف سره همداسې وکړل، او روافض پلوه خلک په ژبه د یزید مدحې کوي. او د یزید او د روافضو په دغی مشترکو اعمالو باندی د عملي رضا اظهار کوي.

په دی رساله کی به د الله جل جلاله په توفیق باندی مونږ د دی یزیدیانو خارجیت په لنډو الفاظو کی الم نشرح کړو، د دی رسالی مضامین به په یوولسو (۱۱) عناوینو کی راخلاصه کړو.

(۱) د حضرت امام حسین رضی الله عنه اجمالی تعارف...

(۲) مختصر سوال او جواب...

(۳) دیزید نام نهاد حکومت او دده ظلمونه...

(۴) د یزید په خلاف د حضرت امام حسین رضی الله عنه خروج.

(۵) د حضرت امام حسین رضی الله عنه شهادت...

(٦) د حضرت امام حسین رضی الله عنه د قاتلانو انجام...

(۷) دیزید په فسق بندی اتفاق...

(۸) په یزید باندی دلعن په باره کی دری قولونه...

(۹) دیزید په تکفیر او عدم تکفیر...

(۱۰) د امارة الصبیان د حدیث تشریح...

(۱۱) د مغفور لهم د حدیث تشریح...

## دحضرت امام حسین رضی الله عنه اجمالی تعارف

حضرت امام حسین رضی الله عنه په څلورم کال د هجرت باندی د شعبان به میاشت کی پیدا شو، کله چی نبی اکرم ﷺ د ده د ولادت مبارک څخه خبر شو نو تشریف ئی راوړو په غوږ کی ئی ورته د توحید الهی اواز پورکړو، بیائی د نوم په باره کی پوښتنه وکړه چا ورته ووې چی نوم مو ورباندې (حرب) ایښی دی د رسول الله ﷺ دا نوم خوښ نه شو نو دا نوم ئی ورته په حسین باندی بدل کړو.

د رسول الله ﷺ ورسره ډیره زیاته مینه وه اکثر وخت به د دوی دواړو ورونو دلیدلو لپاره د بی بی فاطمی رضی الله عنها کور ته ورتللو لکن په اووه کلنی کی ترینه د نیکه د شفقت سوری او چت شو.

د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په زمانه کی بالغ شوی نه وو د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خلافت په اخرو کلونو کی د شعور عمر ته رسیدلی وو د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کی پوره ځوان وو او د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کی ئی په سنهٔ (۳۰ھ) کی د طبرستان په معرکه کی شرکت وکړو، بیا چی کله د باغیانو له طرفه حضرت عثمان رضی الله عنه محاصره شو نو حضرت علی رضی الله عنه دا دواړه ورونه د حضرت عثمان رضی الله عنه د حفاظت لپاره مامور کړل، باغیانو چی کله د دروازی له طرفه لاره پیدا نکړه نو د دیوال د شاله لاری پټ ورغلل او حضرت عثمان رضی الله عنه ئی شهید کړو کله چی حضرت علی رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت څخه

خبرشونو دخپلو دوارو زامنو سره ئی تشدد وکړو چی ستاسو په موجوده ګی کی څرنګه باغیانو حضرت عثمان رضی الله عنه شهید کړو؟

په سنهٔ (۴۰ھ) دهجرت باندی چی کله په حضرت علی رضی الله عنه باندی قاتلانه حمله وشوه او حالت ډیرنازک شول نوحضرت علی رضی الله عنه خپل دواړه ځامن راوغوښتل او مفید نصیحتونه ئی ورته وکړل، بیا د پلار دشفقت دسوري څخه هم محروم شول.

بیا دحضرت امیر معاویه رضی الله عنه په زمانه کی په سنهٔ (۴۹ھ) کی د حضرت امام حسن رضی الله عنه کورودانې (جعده) حضرت امام حسن رضی الله عنه ته زهرورکړل چی ددی په نتیجه کی دمشر ورور سوری هم ترینه اوچت شو.

بیا په سنهٔ (۶۱ھ) دمحرم په میاشت کی شهید شو.

سوال: آیاحضرت امام حسین رضی الله عنه ته سید الشهداء ویلی شو؟

جواب: مولنا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی چی سید الشهداء لفظ لقب نه دی بلکه صفت دی لهذا دحضرت حمزه رضی الله عنه څخه ماسوی بل چاته هم دسید الشهداء دلفظ استعمال جایزدی لکه په یو حدیث کی حضرت جعفربن ابی طالب رضی الله عنه ته هم سید الشهداء ویلی شوي دي کنزالعمال: ج: ۷/ ص: ۲۸).

## دحضرت امام حسین رضی الله عنه دشهادت وړاندوینه

(۱) قَالَتْ ام الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ فَدَخَلْتُ يَوْمًا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ فِي حِجْرِهِ ، ثُمَّ حَانَتْ مِنِّي الْتِفَاتَةٌ ، فَإِذَا عَيْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُهْرِيقَانِ مِنَ الدُّمُوعِ ، قَالَتْ : فَقُلْتُ : يَا نَبِيَّ اللهِ ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي مَا لَكَ ؟ قَالَ : أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ الصَّلاَةُ وَالسَّلاَمُ ، فَأَخْبَرَنِي أَنَّ أُمَّتِي سَتَقْتُلُ ابْنِي هَذَا فَقُلْتُ : هَذَا ؟ فَقَالَ : نَعَمْ ، وَأَتَانِي بِتُرْبَةٍ مِنْ تُرْبَتِهِ حَمْرَاءَ. [مظاهرحق :ج۵/ ص:/۳۷۳ و المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم :۴۸۱۸ و قال هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ.و رواه السيوطي فى الخصائص الكبرى فى باب إخباره {صلى الله عليه وسلم} بالشهاده لثابت بن قيس بن شماس).

حضرت ام الفضل بنت الحارث رضی الله عنها فرمائی چی یو ورځ مې حضرت امام حسین رضی الله عنه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته وروړلو او دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم په غیږه مبارکه کی می کینبودلو بیا زما بل طرفته مخ شو نوچی بیرته متوجه شوم د

رسول اللهﷺ د سترګو څخه اوښکې روانې وې. ماورته وویل چې یا رسول اللهﷺ! زما مور او پلار دې در څخه قربان شي ولې ژاړې؟

نبي اکرمﷺ وفرمایل چې اوس راته حضرت جبرئیل علیه السلام راغلو او خبرئې راته راکړو چې زما امت به په نیزدې وخت کې زما دا ځوی قتل کړي، ماورته ویل چې دا ځوی؟ نبي اکرمﷺ راته وویل چې هو همدا ځوی به مې قتل کړي بلکې حضرت جبرئیل علیه السلام د هغې ځمکې خاوره هم ماته راوړه په کومه ځمکه کې به چې دا شهید یږي او هغه خاوره سره وه.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فِيمَا يَرَى النَّائِمُ نِصْفَ النَّهَارِ أَشْعَثَ أَغْبَرَ، مَعَهُ قَارُورَةٌ فِيهَا دَمٌ ، فَقُلْتُ : يَا نَبِيَّ اللهِ ، مَا هَذَا ؟ قَالَ : هَذَا دَمُ الْحُسَيْنِ وَأَصْحَابِهِ لَمْ أَزَلْ أَلْتَقِطُهُمْ مُنْذُ الْيَوْمِ قَالَ : وَأُحْصِيَ ذَلِكَ الْيَوْمَ فَوَجَدُوهُ قُتِلَ ذَلِكَ الْيَوْمَ. ( مظاهرحق:ج:(٥)ص:(٣٧٣ و المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم : ٨٢٠١ و قال هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ مسلم ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ و قال الذهبي في التلخيص : على شرط مسلم و رواه الإمام أحمد بن حنبل فى مسنده رقم : ٢٥٥٣ و قال شعيب الأرنؤوط : إسناده قوي على شرط مسلم و رواه البيهقي فى المعجم الكبير رقم : ١٢٦٦٦ و رواه الإمام أحمد بن حنبل فى فضائل الصحابة رقم : ١٣٨٩).

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې یو ورځ مې په غرمه کې نبي اکرمﷺ په داسې حالت کې په خوب کې ولیدلو چې بربرسرئې وو او په ګردونو ککړوو او په لاس کې ئې یو بوتل وو په هغې کې وینه وه، نو ماورته وویل چې یارسول الله! زما مور او پلار دې ستا څخه قربان شي دا څه شی دی؟

نبي اکرمﷺ راته وویل چې دا د حضرت امام حسین رضي الله عنه او دده د ملګرو وینه ده، د سهر څخه ئې تر اوسه پورې د حضرت امام حسین رضي الله عنه د شهادت ګاه څخه را ټولوم.

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې کله چې زه د خوب څخه را بیدار شوم نو دا وخت مې د ځان سره یاد وساتلو، بیا چې د حضرت امام حسین رضي الله عنه د شهادت خبر راغلو نو بالکل په هغه وخت شهید شوی وو په کوم وخت کې چې ما خوب لیدلی وو.

سوال: آیا د حضرت امام حسین رضي الله عنه سره (علیه السلام) د لفظ استعمالول جایز دی؟

جواب: (۱) د علماو په دي کی اختلاف دی چی د انبیاو څخه علاوه د بل چا لپاره د صلوة او د سلام د الفاظو استعمال جایزدی او که نه؟ جمهور علماء فرمائی چی د دی الفاظو استعمال تر انبیاو پوری خاص دی.

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چی د انبیاو څخه ماسوی د بل چا لپاره خلاف الاولی دی بعضی علماو ورته مکروه او حرام هم ویلی دی لکن صحیح خبره داده چی د غیر نبی لپاره ابتداءً د صلوة او د سلام استعمال مکروه تنزیهی دی ځکه چی د بدعتیانو شعار دی او د ابنیاو سره یوځای جایز دی مثلا چی داسی ووائی چی صلی الله علی محمد وعلی آله واصحابه وسلم. [مظاهر حق: ج/۱/ ص/ ۵۹۶].

قاري محمد طیب (رح) فرمایي : د حضرت امام حسین رضی الله عنه په باره کی د علیه السلام د لفظ په استعمال کی اصلی شی فتوی ده په فتوی باندی شرعی مسئله را معلومیږی چی جایزدی او که نه؟

لکن د دی سره یو بل شی همشته چی عرف عام دی- عرف هم په شرعیت کی د حجت مرتبه لری لهذا په عرف کی د علیه السلام لفظ د نبی لپاره استعمالیږی.

او د صحابی لپاره د رضی الله عنه لفظ استعمالیږی د علماو د امت لپاره او د صلحاو لپاره د رحمت الله علیه لفظ استعمالیږی نو زما په خیال د عرف رعایت بهتر دی، البته بعضی خلک د محبت د غلبی له وجی د اهل بیتو لپاره علیه السلام لفظ استعمالوی لکه څرنګه چی زمونږ د بعضی اکابرو په تحریراتو کی هم لیدل کیږی نو دا بدصرف د جایز په مرتبه کی وی او یا به په غلبة الحال باندی ورحمل وی نو د عرف رعایت اولی دی

شهادت د حسین رضی الله عنه: ص: (۲۹۳) محمد طیب مهتمم دار العلوم دیوبند هند،

**سوال:** آیا حضرت حسین رضی الله عنه ته د امام د لفظ استعمالول صحیح دی؟

**جواب:** د امام معنی پیشوا او مقتدا ده نو اهل سنت والجماعت په دی معنی باندی ټولو صحابه وو رضی الله عنهم بلکی بعضی تابعینو ته هم امامان وائی لکن دا خبره په یاد لری چی د شیعه ګانو په نیز باندی د امام معنی ده عالم الغیب او معصوم عن الخطاء په دی معنی هیڅ صحابی وغیره ته امام ویل صحیح نه دی نو د حسنینو رضی الله عنهما د نومونو سره د امام د لفظ په استعمالولو کی چونکی د شیعه ګانو د معنی ایهام دی له دی وجی د دی د استعمال څخه احتراز پکار دی خیر الفتاوی: ج: (۱) ص: (۱۴۰) مفتیان خیر المدارس.

## مختصرسوال اوجواب

**اول سوال:** دیزید دمسئلي په راپورته کولو کې څه فایده ده؟ یزید که هرڅرنگه وی زمونږ څخه بیاهم بنه دی.

**جواب:** همیشه مسئله هغه څوک راپورته کوی چې نوی اختلاف شروع کوی، څوک چې دفاع کوی هغه دمسئلي د راپورته کولو نسبت غلط دی مثلا غیرمقلدین نوي نوي اختلافات راپیداکوی، نوپه غیرمقلدینو باندی ردکول دمسئلي راپورته کول نه وی.

پاتی شوه داخبره چې یزید زمونږ څخه بنه دی نو دا صحیح خبره نده دیزید یوه گناه چې دحضرت حضرت امام حسین رضی الله عنه قتلول دی دټولو مسلمانانو په گناه باندی حاوی ده.

**دوهم سوال:** یزیدته فاسق ویل دشیعه گانو پیروی ده؟

**جواب:** یزیدته فاسق ویل داهل سنت والجماعت پیروی ده لکه څرنگه چې دا روان کتاب دمطالعی څخه معلومیږی، د روافضو پیروی نه ده ځکه چې روافض خو یزیدته کافروائی.

**دریم سوال:** یزید تابعی دی اوتابعی ته فاسق ویل نه دی جایز؟

**جواب:** یزید تابعی نه دی، ځکه چې تابعی خو هغه څوک وی چې صحابه ئې لیدلی وی اودهغوی اتباع اوپیروی ئې کړی وی اویزید خو دصحابه وو اتباع اوپیروی نه ده کړی بلکه صحابه رضی الله عنهم اود دوی اولادونه ئې په ډیری بیدردی سره شهیدان کړل.

**څلورم سوال:** یزید ته فاسق و یل دحضرت امیرمعاویه رضی الله عنه په خلاف باندی خلکوته جرئت ورکول دي.

**جـــواب:** داهـل سنت والجماعـت مسـلک د اعتـدال مسـلک وی روافـض دیزیـد سـره دحضـرت امیر معاویـه رضی الله عنه پسـی هـم بـد او رد وائـی او خـوارج دحضرت امیرمعاویـه رضی الله عنه دصفائی سره دیزید صفائی هم کوی، لکن اهل سنت یزیدته فاسق وائی اودحضرت امیرمعاویه رضی الله عنه صفائی بیانوی.

**پنځم سوال:** یزیدپه خیرالقرون کې تیرشوی دی او نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دخیرالقرون صفت کړیدی نو د دیوبند علماء څرنگه ورته فاسق وائی؟

**جواب:** مخکی مونږ وویل چې تابعي دی ته وائی چې د صحابه و دلیدلو سره سره ئې دصحابه وو پیروی کړې وی او یزید نه یوائې دا چې دصحابه وو پیروي یئې نه ده کړې بلکه صحابه وو او دصحابه وو بچې ئې شهیدان کړی دی.

او پاتې شوه دا خبره چې نبی اکرم ﷺ د خیرالقرون صفت کړی دی نو دا داکثر په اعتبار سره دی.

شاولی الله رحمه الله فرمائی چې: ولا یمکن تفضیل کل احد من القرن الفاضل علي کل احد من القرن المفضول کیف ومن القرون الفاضلة اتفاقًا من هومنافق اوفاسق ومنها الحجاج ویزیدبن معاویه رضی الله عنه. [حجة الله البالغه:ص/ ۲۱۵/ مبحث الفتن]. نو وروسته به ته ولولی چې یزیدته اول نبی اکرم ﷺ ظالم اوقاتل ویلی دی بیا ورته صحابه وو ویلی دی او بیا ورته دامت اسلافو ویلی دی،د دیوبند دعلماو و فیصله بعینه دنبی اکرم ﷺ او دصحابه وو او دامت دا سلافو فیصله ده.

## دیزیدنام نهادحکومت اودده ظلمونه

ددی مضمون په تفصیل کی به دخپلو جملو په ځای اکثر دخپلو اکابرو تحریرات رانقل کړو، ددی تحریر اتو څخه به داصل واقعی ټول جزئیات رابنکاره شی، ان شاء الله تعالي.

## دحضرت امیرمعاویه رضی الله عنه وفات اودیزید په تحت باندی کیناستل

د رجب په میاشت کی حضرت امیر معاویه رضی الله عنه په سنهٔ د(۶۰هـ)کی وفات شو ددی څخه وروسته یزید په تخت باندی کیناستلو.

## مولناقاسم نانوتوی رحمه الله

مولناقاسم نانوتوی رحمه الله فرمائی چې:

ازاول ولی عهدی یزید بحث میکنیم بعدازآن درشهادت حضرت سید الشهداء علیه وعلی آباءه السلام حرف می زنیم تاوقتیکه حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه یزید پلیت را ولی عهد خود کردند فاسق معلن نبود اگرچیزی کرده باشد درپرده کرده باشد که حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه را ازآن خبرنبود،علاوه براین حسن تدبیردرجهادآنچه که ازو مشهورشد مشهوراست، مکتوب القاسمی.). (اول دیزید د ولیعهدی څخه بحث کوم ددی څخه وروسته دسید الشهداء علیه وعلی آبائه السلام په شهادت باندی بحث کوم – په کوم وخت کی

چی حضرت امیر معاویه رضی اللہ عنہ یزید پلیت خپل ولیعهد مقرر کړو، نوپه هغه وخت کی یزید علانیةً فاسق نه وو که کوم کارئی کړی وی نوپه پرده کی به ئی کړی وی چی حضرت امیر معاویه رضی اللہ عنہ به وربانذی خبرنه وو علاوه لا داچی په جهاد کی د یزید حسن تدبیر مشهوررو.

## شیخ الاسلام مفتی محمدتقی العثمانی رحمہ اللہ

دعلماء وو راجح قول دادی چی ولیعهدي دیو تجویز حیثیت لری بیا د خلیفه دوفات څخه وروسته دامت داهل الحل والعقد اختیاردی چی ولیعهد خلیفه جوړوی اوکه دمشوری څخه وروسته کوم بل یو خلیفه جوړوی، لهذا دحضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ دوفات څخه وروسته دیزید خلافت ترهغه وخته پوری نه منعقد کیدلوترکومه پوری چی دامت اهل حل اوعقد منظوری نه وه ورکړې. حضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ اورتاریخی حقایق:ص:(۱۱۱):

## مفتی شفیع رحمہ اللہ

دحضرت عثمان رضی اللہ عنہ دشهادت څخه وروسته چی کله دخلافت سلسله حضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ ته ورسیدله نو په حکومت کی دخلافت راشده هغه مثالی رنګ نه وو پاتی کوم چی دخلفاء راشیدینو حکومت ته حاصل وو، خلکو به حضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ ته مشوره ورکوله چی دیره سخته دفتنو زمانه ده نوتاسو دخپل ځان څخه وروسته څه انتظام وکړئی چی په مسلمانانو کی بیاتوره راونه وزی اواسلامی خلافت دټوټه ټوټه کیدلو څخه بچ شی دحالاتو تقاضی سره تراوسه پوری کومه غیر معقوله اوغیرشرعی کارهم نه وو شوی، لکن ددی سره ئی دخپل ځوی یزیدنوم هم دراروان خلافت لپاره پیش کړی وو دکوفی څخه څلوېښت مسلمانان راتلل اویارا لیږل کیدل چی حضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ ته درخواست وکړی چی ستاسو څخه وروسته ستاځوی یزید څخه بل زیات څوک دملکی سیاست په چاروکی ماهرپه نظرنه راځی که دی وجی د ده لپاره دخلافت بیعت واخلئ، په ابتداء کی حضرت امیرمعاویه رضی اللہ عنہ یو څه ناڅه متردد وو، دخپلو خاصو خاصو ملګروسره ئی مشوره وکړه په دوی که اختلافات وو چا دموافقت اوچا دمخالفت رایه ورکوله په دغه وخت کی دیزید فسق اوفجورهم ښکاره نه وو آخرئی اراده وکړه چی دیزید لپاره بیعت واخلی. شهید کربلا :ص:(۱۲)ازمفتی شفیع رحمہ اللہ.

